د محبت خان د دوه سوم تلین په مناسبت

۱۲۲۳-۱۴۲۳ هـ ق

# دنواب محبت خان پښتو دیوان

سریزه او سمون

د

سرمحقق زلمي هیواد مل

۱۳۸۴

د نواب محبت خان دوه سوم تلین

۱۲۲۳ - ۱۴۲۳ هـ. ق

# د نواب محبت خان بړيڅي
# پښتو ديوان

سريزه، سمون او لغتنامه

د

سرمحقق زلمي هیواد مل





**خپروونکی**

د افغانستان د علومو اکادمي

د ژبو او ادبیاتو مرکز

د پښتو ادبیاتو انستیتوت

۱۳۸٤ هـ ش

# اهدأ

ګران استاد کاندید اکاډمسین پوهاند میر حسین شاه ته چې: په لومړي ځل يې د نواب محبت خان د پښتو ديوان په باب معلومات او دده يو پښتو غزل د افغانستان په مطبوعاتو کې خپاره کړل .

## د کتاب پېژندنه:


❖ **د کتاب نوم** : د نواب محبت خان بړيځی پښتو ديوان

❖ **شـــاعـــر** : نواب محبت خان بړيځی

❖ **مـــــدون** : سرمحقق زلمی هيواد مل

❖ **ډيزاين او کمپوز**: د نشراتو درياست د کمپيوټر څانګه

❖ **دکمپوزدچارو متصدی**: محمد جاويد امان

❖ **د چاپ کـال** : ۱۳۸۴ هـ . ش ۲۰۰۵ م

❖ **دچاپ شمېر** : ۱۰۰۰

❖ **دچـاپ ځای** : د پوهنې مطبعه، کابل

# مننه او کورودانی

دافغانستان د لنډ مهالي اداري د ۱۳۸۱/۳/٦ نېټي د (۴۰) گڼه فرمان پر بنسټ د افغانستان د علومو اکادمي ته دنده ورکړه شوې وه چې د څلورو ژبو (پښتو، پارسی، اردو،عربی ) د شاعر او لیکوال نواب محبت خان د دوه سوم تلین (۱۲۲۳- ۱۴۲۳ هـ ق) د نمانځنې په مناسبت په سیمه ییزه کچه یو دوه ورځنی علمی — څېړنیز سیمینار جوړ کړي او همدارنگه د دغه سیمینار په ویاړ یو شمیر آثار په ځانگړې توگه د نواب محبت خان پښتو او دری دیوانونو د چاپ سپارښتنه هم شوې وه، چې له نیکه مرغه د نورو بریاوو ترڅنگ په دې بریالي شوو چې د افغانستان د علومو اکادمي د ژبو او ادبیاتو د مرکز د علمی غړي او په فرهنگي چاروکې د دولت د سلاکار وزیر ښاغلي سر څېړونکي زلمي هیوادمل په نه ستړي کیدونکي هاند او هڅو او ځانگړې پاملرنې په پایله کې د نوموړي نواب «رياض المحبت» او «پښتو ديوان» ترلاسه کړو.

ښاغلی هیوادمل صاحب چې د سیمینار د تدویر د عالی کمیسیون غړی هم و، له زیاتو مصروفیتونو سره سره یې تیاری وښود چې د نواب محبت خان د پښتو دیوان متن به له سمونو وروسته چاپ ته چمتو کوي نوموړي دا کار وکړاو یوه مفصله او مغتنمه سریزه یې پرې ولیکله، ویې پانگه او د اشعارو فهرست یې ترتیب او اثریې په بشپړه توگه چاپ ته آماده کړ، په دې برسیره یې داثر د درست او صحیح چاپ په منظور د اهتمام چارې هم په خپله ترسره کړې او د ترس په اصلاح او سمونه کې یې پوره پوره زیار پرځان ومانه چې دادی د نوموړی دانشمند وزیر د هر اړخیز زیارثمره «دنواب محبت خان بریخی پښتودیوان» زمونږ په لاس کې دی، چې له هره حیثه د ځانگړي ارزښت لرونکی دی. زه د

افغانستان د علومو اکادمي د رئيس ښاغلی د سرڅېړونکی مرستيال عبدالباری راشد او مشرتابه هيأت په استازيتوب؛ په فرهنگی چارو کې د سلاکار وزير ښاغلي سرڅېړونکی زلمي هيواد مل څخه چې له پريمانه فرهنگی او اداري مصروفيتونو سره سره يې دغه ارزښتمن اثر د چاپ ډگرته راوايست؛ ډيره مننه کوم. په داسې حال کې چې دده فرهنگی مينه ستايم، ده ته د لوی ښتن (ج) له دربار څخه د افغانی فرهنگ د غوړيدو په لارکې د لازياتو برياوو هيله هم کوم .

**و من الله التوفيق**

**د سرڅېړونکي مرستيال نصرالله ناصر**

**د افغانستان د علومو اکادمی علمی منشي**

بسم الله الرحمن الرحيم

## سریزه

په ۱۴۲۳ هـ ق کال د پښتو، دري، عربی او هندي ژبو د شاعر او دریاض المحبت دلیکوال نواب محبت خان د مړینې دوه سوه کاله پوره شول. د افغانستان د حکومت له فرمان سره سم د افغانستان د علومو اکادمی ته وظیفه ورکړل شوه چې دنواب محبت خان د دوه سوم تلین په مناسبت دې یو منطقه یي سیمینار جوړ کړي.

د نواب محبت خان د تلین په مناسبت د سیمینار جوړ ولو په حکومتی فرمان کې داهم راغلی وو، چې ددغه تلین په مناسبت دې دده دري او پښتو دیوانونه هم چاپ شي.

دتلین د نمانځنې د علمي چارو د تدارک کمیسیون د نواب محبت خان د پښتو دیوان د چاپ چارې ماته راوسپارلې وې او د اکادمی دریاست درسمي لیک له مخې ژه‌د سیمینار د علمي چارو د تدارک د کمیسیون له دې فیصلي خبر شوم.

دنواب د پښتو دیوان یوازینی معلومه نسخه د بریتانیا په کتابخانو کې وه، ما سملاسی په کابل کې د بریتانیا سفارت ته دده د پښتو دیوان د فوتو کاپي دراليږلو په باب وليکل او ورسره مې دده دپارسی دیوان او رياض المحبت د مایکرو فلم غوښتنه هم ترې کړه. زما له غوښتنی درې څلور میاشتې وروسته په کابل کې د بریتانیا سفارت، دانډیا آفس لایبریری له ذخیرې — چې اوس په برټش لایبریری کې ساتل کیږي — درياض المحبت او دفارسی دیوان په نامه دیوې بلې نسخی مایکرو فلمونو راواستول. هغه وخت په کابل کې د مایکرو فلم لوستو ماشین فعال نه و او نه چا داحوصله درلوده چې د ریاض المحبت په شان د پنځه کتاب مایکرو فلم دې په ماشین کې ولولي، نو ځکه د اکادمی د غوښتنې له مخې ما د دوکتور فاروق وردک په وساطت د UNDP له موسسې څخه وغوښتل چې د ریاض المحبت د مایکرو فلم فوتو ستیټ نسخه تهیه کاندي.

څه موده وروسته دUNDP له خوا فوتوستیټ شوې نسخه د څیړنې لپاره اکادمی ته وسپارله شوه؛ د پارسي دیوان په نامه چې کوم مایکرو فلم راغلی و له دې مایکرو فلم څخه اکادمی په خپل لګښت عکسی نسخه تهیه کړه، خو کله چې عکسي نسخه ولیدل شوه، نومعلومه شوه، چې دا د محبت خان پارسی دیوان نه، بلکه د خیالات زمانی نسخه ده.

اما د پښتو دیوان معضله حل نه شوه. د ۱۳۸۱ هـ ش کال په مني کې مې بیا د بریتانیا سفارت ته ولیکل چې ستاسو په راکړل شویو مایکرو فلمونو کې دنواب محبت خان پښتو او پارسی دیوانونه نه وو،داخل مې د دوکتور میکنزی له فهرسته د پښتو دیوان د خطی نسخې د ضبط نومره او د کتابخانې نوم او نور مشخصات ټول وروليکل اوداخبره مې هم پرې زیاته کړه،چې دنواب محبت خان د دوه سوم تلین د سیمینار جوړیدل همدې دیوان ته معطل دي.

له پرله پسی یادونو او مکررو غوښتنو سره سره د ۲۰۰۳ م کال په مارچ کې د فوتوسټیټ نسخې پرځای د پښتو دیوان مایکرو فلم کابل ته راورسید او د بریتانیا هغه وختني سفیر جلالتمآب RonNash دا مایکرو فلم پخپله راوړ او په ډېره مهرباني یې ماته وسپاره.

د مایکرو فلم دلوست د ماشین نشتوالي له یوې خوا او زما ورځنی مصروفیتونه له بلې خوا، بیاهم زه مجبور شوم چې دا مایکرو فلم هم عکس کړم. د ښاغلي کاوون کاکړ په مرسته د محبت خان د پښتو دیوان د مایکرو فلم عکسي نسخه جوړ شوه او ماپرې خپل کار پیل کړ. شاو خوا پنځه میاشتې مې پردې متن له یوې خواکار کاوه اوله بلې خوا مې کمپیوټر ته د کمپوز لپاره سپاره.

ترکمپیوټر او تصحیح وروسته دادی چاپ ته تیار شو او اوس داسریزه پر کارم، خومخکې تردې چې پدې سریزه کې د نواب محبت خان پرژوند، آثارو او دده پر دیوان څه خبرې وکړم، په کابل کې د بریتانیا د هغه وختني سفیر جلالتمآب RonNash ؛ دوکتور فاروق وردک، ښاغلي کاوون کاکړ،د Bodleian Library له مسوولینو د زړه له کومې مننه کوم چې د نواب محبت خان د دیوان او نورو آثار د مایکرو فلمونو د عکسي نسخو په تهیه کې یې له ماسره مرسته کړې ده.

ترمننو وروسته اوس ددې وار رارسیدلی دی چې پر نواب محبت خان دشوي کار جاج واخیستل شي او هغه مآخذ ارزیابی شي چې پدې سریزه کې ترې استفاده کیږي.

**پر محبت خان دشوي کار جاج او د مآخذ و ارزیابی :**

دمحبت خا پرژوند دده احوالو هندی تذکرو ته لاره پیداکړېده؛ ده پر خپل ژوند خپل آثار د شرقی هند د کمپنی ځینو افسرانو ته ورکړي او د نولسمی

پیړۍ په لومړۍ نیمایی کې اروپا ته رسیدلی وو. اما دده په پلرني وطن افغانستان کې د شلمې پیړۍ د څلویښتو کلونو د لومړۍ نیمایی ترورروستیو لسیزو پورې چا دده نوم نه پیژاند او نه یې فرهنگی او علمی شخصیت ورمعلوم و.

دغی لندې توضیح ته په پاملرنه پر نواب محبت خان دشوی کارجاج په لاندی ډول اخیستل کیږي:

(۱) په هندی تذکره نگارانو کې میرحسن په لومړنیو کسانو کې شامل سړی دی، چې په خپله ( تذکرۀ شعرای هندی) نومې تذکره (۱) ( د ۱۱۸۸ هـ ق تالیف) کې یې محبت خان د شاعر په توگه یاد کړی دی.

د اسرار محبت د مقدمې لیکوال دوکتور نسیم احمد په میر حسن پسې دگلزارابراهیم (۱۱۹۸-۱۲۰۱ هـ ق تالیف)لیکوال نواب علی ابراهیم خان خلیل دویم سړی بللی دی، چې دشاعر په توگه یې د محبت خان یاد په څه تفصیل سره کړی دی؛ د نواب ریخته دیوان او اسرار محبت دواړه یې یاد کړي دي او د اسرارمحبت نمونه یې هم راوړې ده، اما که د تقدم مسأله په پام کې ونیسو نو د طبقات الشعراء ( ۱۱۸۸-۱۱۸۹ هـ ق تالیف) لیکوال مولوی قدرت الله شوق باید د گلزار ابراهیم تر لیکوال د مخه یادکړو، ځکه دده تذکره د میرحسن سره همزمانه تالیف شوې ده، خو البته دایوه خبره پکې شته، چې مولوی قدرت الله دنواب محبت خان شرح حال په تفصیل سره نه دی راوړی؛ سره له دې چې دده د مرتب دیوان د موجودیت یادونه یې نه ده کړې، خو دنواب ۱۲۳ بیته یې دده د کلام د نمونې په توگه راوړي دي.[۳] د اسرار محبت د مقدمې لیکوال، سرور[۴] او مصحفی[۵] هم د نواب معاصر تذکره نگاران ښوولي دي چې د نواب احوال یې راوړي دي، خود ( دیوان محبت) او ( اسرار محبت) یادونه یې نه ده کړې. له مصحفی او سرور سربیره بهگوانداس هندی هم دنواب معاصر و او

دنواب پرژوند یې دده احوالو ته په خپله تذکره کې ځای ورکړی دی. بهګوانداس لیکلی دي : ((با مولف ربط دوستی دارند)) دا یادونه په دې ګواهي لي چې بهګوانداس د نواب محبت خان پروژند دده احوال په خپله تذکره کې راوړي دي.

له دغو یادوشویو تذکرو سره په نورو ډیرو زړو تذکرو کې هم د نواب احوال راغلي دي، لکه د میرزا علی لطف په ګلشن هند (۷)دمیر قدرت الله قاسم په مجموعهٔ نغز ( د اختتام کال ۱۲۲۱ هـ ق ) . دلته ما یوازې څو تذکرې یادې کړې،که نه وې دغسې تذکرې خو را زیاتې دي؛ داتذکرې د نواب د ژوند پیښو او احوالو په باب ډیر څه نه لري، زیاتره دده د سخاوت،مروت، اخلاقو او زیرکی په باب بیانونه لري؛ په ځینو کې یې د پلارنوم نه دی ښوولی او په ځینو کی یې لکهنو ته دراتګ ذکر نه دی شوی، ځینو یې د آثارو یادونه نه ده کړې، ځینو یې بیا په آثارو کی یوازې دیوان ریخته ښودلی دی، ځینو د دیوان ریخته تر څنګه ذسیسی او پنون د قصې یادونه هم کړې ده. په عام ډول دا تذکرې د نواب د احوالو او آثارو په باب تکرار خبرې ډېرې لری او ډیر څه مورته نشی راکولای، خو په خاص ډول کولای شو ددغو تذکرو له ځینو نکتو او یادونو دنواب د شرح حال د بشپړ تابه په مراتبو کې کارواخلو.

په لرغونو آثارو کې له تذکرو سربېره د روهیلکهند په تاریخ پورې ځینو مربوطو تاریخی او نورو کتابونو کې هم د نواب محبت خان په باب ځینې یادونې او بیانونه شته، لکه په ګلستان رحمت، د عجایب اللغات مقدمه، سیرالمتاخرین، عمادالسعاده، ګل رحمت، اخبار الصنادید او د نواب پرکور نی لیکل شوي ځینې نورتاریخي آثار.په معاصردوران کې ځینوهندې لیکوالو د نواب محبت خان په باب مقالې کښلې او د نواب حافظ رحمت خان او روهیکهند په باب کښل

شو یو کتابونو کې هم دنواب محبت خان په باب ځینې بیانونه راغلي دي، لکه : دالطافبریلوی په حیات حافظ رحمت خان او د مفتي ولي الله په عهد بنګش کې .

دمعاصرانو لیکنې د ځینو ناسمو خبرو تر څنګه د نواب د احوالو، آثارو او سیرت په باب د کار خبرې هم لري او سرې‌کولای شي د محبت خان په باب څېړنو کې ښه استفاده ځنې وکړي .

د معاصر دوران نورو هندي آثارو او حیات حافظ رحمت خان نومي کتاب کې چې د نواب محبت خان په باب څه معلومات راغلي دي، د دولسمې دا واخرو او دد یارلسمې پیړۍ د تذکرو له موادو په مراتبو زیات دي، اما په هند کې د نواب پر ژوند او آثار و له ټولو یادونو، بیانو نو او مقالو نسبی بشپړه لیکنه د دوکتور نسیم احمد ده چې د نواب محبت خان د اسرار محبت د مثنوي په پیل کې د مقدمې په توګه چاپ شوې ده.په دې مقدمه کې ده دنواب محبت خان په باره کې د لیکلو شویو- ده ته په لاس ورغلیو- آثارو نقادانه ارزیابي هم کړې ده اودنواب دژوند اوادبی سیرت په باب یې مستنده څېړنه وړاندې کړې ده.

(۲) زیاد معلومات و له مخې دنولسمې پیړۍ په مستشرقینو کې پروفیسور برنارد دورن ( ۱۸۰۵ – ۱۸۸۱ م ) او هاتری جارج راورټي (۱۸۲۵– ۱۹۰۶م)دنواب محبت خان له نامه سره آشنا وواودده ریاض المحبت یې لیدلی و او د ریاض المحبت په باب لنډې تبصرې لري.

دیو دلیان لاییربري د خطی نسخو دفهرست په لومړی او دویم ټوکونو کې او د پروفیسور وبلومهارت د برټش میوزیم د خطی نسخو په فهرست کې د نواب محبت خان د آثارو د ځینو خطی نسخو د معرفی په شرح کې دده د ژوند او آثارو په باب ښې د کار یا دونې هم راغلې دي.

په معاصرو مشرقينو کې دوکتور ميکنزي په خپل فهرست کې د نواب د پښتو آثارو هغه خطي نسخې معرفي کړې دي، چې د بريتانيا په کتابخانو کې محفوظې دي؛ فقيد ولاديمير واسيلو ويېڅ کوشيف ( ۲۰۰۱ م) درياض المحبت مطالعه کړې او په خپلو دواړو فهرستونوکې يې دده دځينو آثارو خطي نسخې معرفي کړې دي[۱۰]

(۳) د افغانستان مطبوعاتو ته د نواب محبت خان نامه دشلمې پيړۍ د لومړۍ نيمايي په وروستۍ لسيزه کې لاره پيداکړې ده.

لوی استاد اروانباد پوهاند عبدالحی حبيبي ( ۱۳۲۸-۱۴۰۴ هـ ق ) په خپله يوه رساله نومور کي مورخين کې نواب محبت خان د يونو مورکی مورخ په توګه پرمورړ راوپيژاند. د استاد دا رساله لومړی ځل په کابل کالنی کې چاپ شوې ده، او دويم ځل له څه اضافو سره په ۱۳۵۹ هـ ق کال په مستقل ډول د کابل پوهنتون له خوا چاپ شوه. په دې چاپ کې د نواب محبت خان د ژوند پېښنو په باب نورې اضافي خبرې هم راغلي دي؛ دده د فارسي شاعرۍ يوه لنډه يادونه يې کړې او يو پارسي غزل يې هم ورته را وړی دی. دلته ددې خبرې يادول لازم دي، چې نواب محبت خان مورخ نه و او نه دده کوم تاريخي اثر تراوسه ليدل شوی دی، دا نظريه – چې دی مورخ بسيي هم د مستشرقينو او ځينو خېړونکو له غلط بيانيو را زيږ يدلی ده، البته پدې شک نشته چې د رياض المحبت د ځينو توکيو په تشريح کې تاريخي خبرې راغلی دی، خو داکتاب تاريخي کتاب نه، بلکه يو فرهنګ دی. ځينو څېړونکيو رياض المحبت په دريو وبر خوويشلی دی او ويلی يې دی چې په يوه برخه کې يې د پښتنو د تاريخي احوالو بيان راغلی دی؟ اصلی خبره داده چې نواب محبت خان د رياض المحبت د دويم باب په بيلا بيلو رديفونو کې د نورو لغاتو ترڅنګه د ځينو پښتني

قبیلو او سیمو نومونه هم راوړي دي او لنډه شرح یې ورتـه لیکلـی ده چـې دانـه کومه جلا برخه او نه ریاض المحبت درېیمه برخه لري، بلکه دانومونـه د دویمـی برخې په ترڅ کی توضیح شوي دي.

دغه راز استاد حبیبی چې د بلومهارټ د فهرست د پښـتو خطـی نسـخو ( دلندن میوزیم) ترجمه د شلمو کلونو په کابل کالنیو کـې د پښـتو ادب ورکـې پاڼی په نامه نشر کړه، پدې ترجمه کې هم د نواب دشرح حـال پـه بـاب لنـډې، خودکار خبرې راغلي دي او دده د ریاض المحبت د برټش میوزیم خطـی نسـخه یکې معرفی شوې ده. ددې ترجمې له یادونو هم چا استفاده نه ده کړي.

د پوهاند صدیق الله رښتین ( ۱۲۹۸-۱۳۷۸ هـ ش ) د پښـتو ادبیـاتو تاریخ غالباً دویم مستقل اثر دی، چې د نواب محبت خان په بـاب یکـې لولـو : نواب محبت خان د حافظ رحمت خان زوی دی، یو عـالم سـړی و، پـه عربـی، اردو، فارسی او پښتو ژبو کښې یې اشعار درلودل، وایي چې پـه سنسـکریت هـم پوهیده او په فارسی کښې هم ځینی تالیفات لري، ده په پښتو کښې پـه ( ۱۲۲۱ هـ ق ) د ریاض المحبت په نامه یو خورا مهم کتاب لیکلی دی، دا کتاب د پښتو یو مهم لغت دی او د افعالو ګردانونه هم لري. راورټی انګریز لیکلی دي چـې دا کتاب د پښتو یو لغوي او ګرامري کتاب دی [۱۱]

نوموړی استاد رښتین په خپلو نورو متفرقو نو شتو کې د نواب پـه بـاب ځینی یادښتونه نه نشر کړي دي او په خپل بل مستقل اثر د پښتو نثر هنـداره کـې یې هم ځای ورکړی دی [۱۲] د پښتو نثر هنداره نومي کتاب کې د نـواب محبـت خان راوړل پدې دلالت کوي، چې دی به د پښـتو نثـر نګـار و، خـو دده کـوم پښتو منثور اثر تراوسه نه دی لیدلی شوی، دی یې د ریاض المحبت د تـالیف پـر اساس د پښتو نثر نګار په توګه پدې کتاب کـې معرفـی کـړی دی، حـال داچـې

رياض المحبت د پښتو نثر کتاب نه دی، بلکه ټول تشريحات يې په پارسي ژبه دي .

کانديد اکادميسين پوهاند مير حسين شاه لومړنی عالم دی چې د شملې پيړۍ د شپيتمو کلونو په پيل کې يې په انگلستان کې د نواب محبت خان پښتو ديوان وکوت؛ يادښتونه يې ترې واخيستل او کله چې بيرته هيواد ته راستون شو، نوېې دانگلستان د کتبخانو له ځينو پښتو خطي نسخو د خپلو اخيستو يادښتونو د نشر په ترڅ کې د نواب محبت خان د پښتو ديوان په باب اخپل اخيستی يادښت په ورمه کې نشر کړ او دده يوه پښتو غزله يې هم راوړه (۱۳)

د استاد مير حسين شاه له دې يادښته څخه يوازې د ۱۳۷۰ هـ ش کال په يوه څېړنه کې استفاده شوې ده او نور نوچا ترې استفاده نه ده کړې .

بل منظم اثر چې د نواب محبت خان په باب بيان لري، روهيله پښتانه نوميږي. د نواب په باب ددې کتاب ليکنې ترنورو افغانی ليکنو يو څه زياتې دي خوټولې پر خارجي منابعومتکی دی، هغه تيروتنې چې د مولف په منابعو کې راغلې دي دغه اثر ته يې هم سرايت کړي دی (۱۴)

له دې سربيره په متفرق ډول په ځينو نورو کتابونو او مقالو کې هم د نواب محبت خان په باب يادونې راغلې دي. دا يادونې زياتره د نواب محبت خان د رياض المحبت په باره کې دي. په ۱۳۵۶ هـ ش کال کې د رياض المحبت په باب د کوشيف څېړنه په پښتو ترجمه او په کابل کې چاپ شوه (۱۵).

له ۱۳۵۶ هـ ق کال راپديخوا زما په ځينو آثارو کې د نواب محبت خان او دده د آثارو په باب ځينې يادونې راغلی دي، لکه :

په فرهنگ زبان و ادبيات پښتو لومړی ټوک کې، د هغه کتاب له غوښتنو سره سم د نواب په باب پوه يادونه راغلې ده؛ کومې خبرې چې ماد نواب په

باب دفرهنگ په لومړی ټوک کې راوړې دي،هغه زیاتره دحیات حافظ رحمت خان د کتاب د خبرو لنډیز دی؛ په آثارو کې مې یې یوازې ریاض المحبت او آمدنامه ښوولي دي [١٦] د دیوانونو او اسرار محبت یادونه مې یې نه ده کړې .

- د هند د کتابخانو پښتو خطی نسخې نومي اثر په متن کې مې د هند په کتابخانو کې د ریاض المحبت درې موجودې خطی معرفی کړې دي او په تعلیقاتو کې مې د نواب محبت خان او ریاض المحبت په باب یوکوچنوټی یادښت راوړی دی [١٧] .

- په فرهنگ ادبیات دویم ټوک کې مې د نواب د پښتو دیوان او ریاض المحبت په باب یادښتونه خپاره کړي دي [١٨]

د پښتو دادبی تاریخ خطی منابع نومي اثر کې مې د ریاض المحبت دهغې نسخې پیژندنه راوړې ده چې د سنت پترزبورگ د ختیځپوهنی دانستیتوت په خطی نسخو کې موجوده ده.[١٩]

- دروانې هجری شمسي پیړۍ دشپیتموکلونو په پای کې ما دنواب محبت خان د پارسی شاعرۍ په باره کې یوه مقاله و لیکله، چې عنوان یې و ( نواب محبت خان دری پردازی از دیار هندوستان ) دا مقاله د ژوندون په مجله کې چاپ شوې ده. کله چې ما دا مقاله لیکله د نواب د پارسی دیوان د خطی نسخو په باب له ماسره معلومات نه وواو مقاله مې دده د متفرقو خپرو شویو پارسي آثار و په استناد لیکلې ده .

- په ١٣٦٩ هـ ش کال کې ماد سر محقق علمی رتبې ته د ترفیع لپاره په هند کې د پښتو ژبې او ادبیاتو د پیدایښت او پایښت د مسألې څېړنه د تبسس په توگه وټاکله او پردې موضوع مې کارپیل کړ. دا کتاب په ١٣٧٠ هـ ش کال

کې پشپړ شو ،پوره نوم يې دی : - په هند کې د پښتو ژبې د ايجاد او ودې پړاوونه – ددې کتاب د پشپړ تابه په مراتبو کې مې د نواب محبت خان د ژوند پيښو څېړنې ته هم اړتيا وه، د موجود اسناد و په رڼا کې يونسبې اوږده څېړنه دده د ژوند پيښو او آثارو په باب پکې راغله . د مرګ کال يې تصحيح شو؛ د پښتو ديوان په باب يې معلومات پکې راغلل؛ يوه پښتو غزله مې يې هم راوړه. د نواب حافظ رحمت خان په شهادت چې ده کومې تاريخي قطعې په پښتو، پارسي، هندي او عربي ژبو ويلي دي او دده وړور نواب الله خان ( ۱۲۴۸ هـ ق مړ ) د عجايب اللغات په مقدمه کې راوړې دي؛ زموږ ځينو څېړنو کې داقطعې په غلطه د نواب الله خان بلل شوي دي. زما په هماغه کتاب کې دا قطعې داصلي ويونکی نواب محبت خان و بلل شوې او دده په پښتو آثار و کې دې لاندې قطعې هم ځای ونيو:

چې حافظ رحمت شهيد شه په ژړاشه هرسړی
مـــردوزن له ډېـــره درده په ناروشه په هی‌هی
زه په فـــکر د تـــاريخ کې مســـتغرق وم
ناګهانه هاتف غږ که چې رحمت و دنبي دامت دی [۲۰]

زما د معلوماتو توله مخې په پښتو څېړنو کې دا قطعه لومړی ځل په ۱۹۷۲ م کال د پېښور د پښتو اکادمی د پښتو مجله کې د پروفيسور محمد نواز خان طاير په يوه خبره شوه مقاله کې [۲۱] د نواب الله خان وبلل شوه او له هغه ځايه بيا په روهيله پښتانه [۲۲] روهی ادب [۲۳] او پښتانه شعراء پنځم ټوک [۲۴] کې هم د نواب الله يار خان په نامه ضبط شوې ده. د نواب الله خان د عجايب اللغات د مقدمې له دقيق نه لوسته داتيروتنه پيښه ده، که نه وي نواب الله يار خان د عجايب اللغات په مقدمه کې ښکاره ليکلی دي : ((... تاريخهای

شهادت خان شهید تصنیف نواب محبت خان مرحوم هندی و پښتو و فارسی و عربی نوشته میشود)) [۲۵] پوهاند رښتین د عرفان مجلې د ۱۳۵۵ هـ ش کال د لسمې ګڼې په ٦٠ مخ کې دا قطعې د نواب محبت خان بللې دي، ځکه ده دنواب الله یار خان د عجایب اللغات مقدمه لوستی وه .- په روهیله پښتانه – کې د پښتو مجلې د یادې شوې په استناد دا قطعه د الله یار خان بلله شوې او د الله یار خان په بحث کې یې راوړې ده خو ورسره یې د استاد رښتین د مقالې حواله ورکړې او دایې ویلي دي چې رښتین داقطعه د محبت خان بولي.

- په ۱۳۷٦ هـ ش کال کې زمایو پارسی اثر ( رشد زبان و ادب دری درګسترهٔ فرهنګی پښتو زبانان) په پېښور کې خپور شو. ددغه اثر په یوه برخه کې هم د نواب محبت خان د پارسی شاعرۍ په باب لنډې خبرې راغلې دي [۲٦].

- په افغانستان کې چې د نواب محبت خان په باب کوم کارونه شوي دی، په ابتداء کې ټول په خارجي منابعو متکی وو. زیاتره دراورتی او ورپسې دحیات حافظ رحمت خان پرلیکنو. د نواب د خپلو آثار و په استناد لیکنې او یادښتونه له څلویښتمو کلونو زمونږ مطبوعاتو ته لاره پیداکړه. پوهاند میر حسین شاه په انګلستان کې دده پښتو دیوان و کوت؛ استاد رښتین هند ته په خپلو سفرونو کې د نواب محبت خان د ریاض المحبت او د نواب الله-خان د عجایب اللغات خطی نسخې وکتې؛ د شپیتمو کلونو په جریان کې هندوستان ته زما سفرونه وشول؛ ما هم په رامپور او کلکته کې د ریاض-المحبت درې نسخې وکتې او د عجایب اللغات نسخه مې هم وکتله نو همداوختونه د نواب په باب څه یادښتونو د داخلی منابعو په اسناد هم چاپ او خپاره شول. له څینو محدود ویادښتونو او آثارو پرته په افغانستان کې د

نواب محبت خان په بلره کې خپاره شوي يادښتونه، ضمني څيړنې او يادونې نيمګړې اوله تيروتنو سره ملې دي .

۴- په پښتو نخوا، پاکستان او ايران کې د شلمې پيړۍ د دويمې نيمايي لـه لومړۍ لسيزې د نواب محبت خان په باب ځينـې ليکنـې خپرې شـوې دي، داليکنې زياتره د کتابونو په ترڅ کې راغلې دي او په يوه نيمه مقاله کې هـم يادشوي دي.

- د ادبيات سرحد په دريم ټوک کې مونږ د نواب محبت خان په باب ځينـې خبرې مومو، چې زياتره د نويو معلوماتو په رڼاکې سمې نه خيژي اما بيـا هـم پدې سيمه کې دا کتاب لومړنی اثر دی چې نواب محبت خـان ديـواردوژبې شاعر په توګه مطرح کوي [۲۷]

- عبدالرؤف عروج په ۱۹۷۱ م کال په کراچی په اردو ژبه يوه تذکره جوړه کړې او چاپ کړې ده، چې ( تذکرهٔ فارسـی ګـو شـعرای اردو) نـوميږي. ددې تذکرې په ترڅ کې هم د نواب محبت خان لنډ شـرح حـال او دده د پارسـي شاعرۍ نمونې راوړل شوې دي [۲۸]

- په ۱۹۷۲ م کال په کوټه کې د چاپيدونکې ( اولـس مجلـې) د نـومبر او ډسمبر په ګڼه کې د اروانباد عبدالحليم اثر يوه مقاله چاپ شوه، په دې مقاله کې د نواب محبت خان په باب څه مطالب بيان شـوي دي. دا مطالـب هـم زياتره د مستشرقينو او ځينو نورو خارجی منابعو په رڼاکې ليکل شـوي او د نواب محبت خان په باب موجودې اشتباوې پکې تکرار شوې دي.

- په ۱۹۷۷ کال د پروفيسور محمد نواز خان طاير روهي ادب لومړی ځل په دووټوکونو کې چاپ شو. ددې کتاب په دويـم ټـوک کـې يـې د ريـاض- المحبت د معرفۍ په ترڅ کې دده پرژوند او احوالو هم څه خبرې کړې دي

د اردو او پارسي کلام ځيني ټوټې يې هم راوړې دي؛ په دويم چاپ کې يې هم دغه بحث راغلی دی.

- تاريخ شعرای روهيلکهنډ نومی کتاب په ۱۹۸۹ م کال په کراچی کې چاپ شوی دی، په دې کتاب کې د روهيلکهنډ د سيمی ديو شاعر په توګه دنواب محبت خان شرح حال راغلی دی : دکتاب مولف سيد تعظيم علی نقوی د ځينو هندی تذکرو په استناد دده پروژند او احوالو خبرې کړې دي او دده شاګردان يې هم ښوولي دي [۲۹]

- اروانباد پروفيسور افضل رضا په خپل يو اثر ( اردو کی قديم پشتون شعراء) کې د نواب محبت خان شرح حال د اردو ژبې د يو شاعر په توګه راوړی دی او دده دشرح حال په تکميل کې يې له پخوانيو اردو تذکرو او په اردو ژبه کښل شويو معاصر آثارو استفاده کړې ده او دده داردو شاعری ځينې نمونې يې هم راوړې دي [۳۰]

- په ايران کې د چاپ شوې دانشنامۀ ادب فارسی په څلورم جلد دربيمه برخه کې يې نواب محبت خان د پارسی ژبی د يو شاعر په توګه معرفی کړی دی. دده داردو، پښتو، او پارسی ديوانونو خطی نسخې يې ښوولې دي، د بوډليان د کتابخانې د فهرستونو او هندی تذکرو په استناديې د محبت خان داحوالو او آثارو په باب معلومات راوړي دي [۳۱]

داو، پر نواب محبت خان شوی کار چی ماېې لنډجاج واخيست، په دغو کارونو کې ځينې ښې ځيړنې او ليکنې شته او ځينې له غلطيو ډکې او تکراري ليکنی هم. ماېې ددغه جاج په ترځ کې ځينې تيروتنې يادې کړې او ځينې به يې د مقدمې په نورو مباحثو کې يادې شي .

( خوارلس )

زه په دې سريزه کې له دغو يادوشويو آثارو – چې په خارجي منابعو کې راځي – هم استفاده کوم او له ځينو داخلي منابعو چې دده خپل آثار دي هم ګټه اخلم، ددغو دواړو ډولو منابعو په مرسته زيار باسم دده د ژوند او احوالو يوانځور وړاندې کړم.دده آثار وښيم او په فکرې څه خبرې وکړم .

**کورنۍ او نسب** :

د نواب محبت خان پلار حافظ رحمت خان نوميده او نيکه يې شاه عالم خان، غورنيکه يې محمود خان او ترنيکه يې شيخ شهاب الدين مشهور په کوټه بابا و. نواب محبت خان ويلي دی : (( زما پلار حافظ الملک حافظ رحمت و )) دغه شيخ شهاب الدين د خلاصة الانساب لـه قوله : (( از مضـافات قنـدهار از موضع پشين و شوراوک که وطن اصلي ترين و بړيچ است بيجا شـده آمـده در ضلع اتک و لنګر کوټ استقامت نمود ...)) [۳۲]

نواب محبت خان هم په خپل ديوان کې دغې موضوع تـه داسـې اشـاره لري:

که اجداد مې د پښين د شوراوک وو *

روهيلی يم چې مې پلار راغی له روهه [۳۳] وايي چې شهاب الدين د قادريـه طريقې پيرو؛ د کشف او کراماتو خاوند و. شيخ شهاب الـدين دچـج هـزارې پـه شاهي ډير کې ښخ دی.

شيخ شهاب الدين درې زامن درلودل : پايي، محمود او آدم. پايي يې مشر له يوې؛محمود او آدم يې دبلې مور وو. محمود چې په مـوتي مشـهور و، د کمالزو له سردارانو سره يې قرابت ټينګ کړ، پـه شـهامت پـورکې يـې اسـتوګنه اختيارکړه اوهلته مړشو.له ده پنځه زامن پاتې شول چې يو يکې شاه عالم خان و [۳۴]

د شاع عالم پو توريالی، بهادر، عالم او حافظ زوی، لکه چې د مخه يې

بیان تېر شو نواب حافظ رحمت خان و، چې زموږ د شاعر نواب محبت خان پلار دی.

د نواب محبت خان کورنی بړیڅي په بړیڅو کې بدلزي او په بدلزو کې بیاددوی کورنی له شیخ کوټه بابا سره د نسبت په اساس په کوټه خیلو مشهوره ده، لکه چې نواب حافظ رحمت خان په خلاصة الانساب کې د شیخ شهاب الدین د احوالو په ارتباط کښلي دي: «جدامجد این جانب است که خیل وگروه مایان بدومنسوب است که آنهارا کوټه خیل میگویند».

بل ځل د خپل ځان په باره کې لیکی: «بنده عاصی پر معاصی امیدوار مغفرت، حافظ رحمت ابن شاه عالم کوټه خیل بدلزی، بړیڅ سړه بنی».

په دې ارتباط د نواب محبت خان خپله وینا داده:

زه په اصـــل کې بړیڅی شـرخبون یم
بدلزی هم کـوټه خیل یم وکـــړه پوهه
عـــزیزان مـــې کـــه ترین وابدالی دي
زه په شـــمار دیوســـفزویم له ګروهه

( خطی دیوان )

دنواب محبت دادوه لوړ بیته زما په پوهـه توضیح تـه اړه لـري، ځکـه حافظ رحمت خان ویلی: (بړیڅي سړه بنی) او نـواب محبـت خـان ویلي دي ( بړیڅـی شـرخبون) داخبـره داسې توضـیح کیـدای شـي چـې د پښـتنو پـه شجرة النسب کې د سړه بن د زوی شرخبون په اولاد کې بړیڅی هـم شـامل دی (۳۴) نوځکه داد واړی خبرې سمې دي، بړیڅـی سړه بنـی پښـتانه دی چـې د شرخبون په اولاده کې راځي. داخبره سمه ده چې په نسبی سلسلو کـې تـرین او ابدالی ( د ترین یوښاخ) د بړیڅو عزیزان دی خوده ویلي چې زه دیوسفزو

په ګروه کې شماریم. داخبره د حافظ رحمت خان په خلاصة الاسباب کې داسې توضیح شوې ده : «ودیگران که فرزندان و نبیره گان وی ( شیخ شهاب الدین ) از اول تا آخر در قوم یوسفزی خصوصاً در قوم منډړ معزز و مکرم بوده ذوی‌الاعتبار، منصبدارو جاگیردار بودند و باسرداران قوم منډړاکثر باکمالزی خویشی و دوستی داشتند» ( خلاصة الانساب خطی ).

په ادبیات سرحد دریم ټوک کې یې راوړي دی چې حافظ رحمت خان ( شیرانی) و ( ۱۳۷ مخ ) داخبره سمه نه ده؛ په همدی بحث کې تاسې ولیدل چې حافظ رحمت خان خپل ځان برېځی بللی دی.

د حافظ رحمت خان مشران زامن عنایت خان، محبت خان او عظمت خان دده د دویمې مایني له بطنه زوکړي دي چې د ملک خدا داد خان لور وه، ( حیات حافظ رحمت خان، ۳٦۵ مخ ) .

نواب محبت خان چې په ریاض المحبت کې د کمالزو د ښاخ په باب خپله تشریح لیکي، هلته کاږي : «کمال زیی : قومی است از اقوام افغانان که اجداد مادری مولف این کتاب از این قوم بودند» [٣٦]

په پښتو دیوان کې یې هم ویلي دي :

څه عجب کــه همه ډک یم له کماله
چې کمال می وه نیکه زه یې نوسی یم

پښت په پښت مې ټول نوسي د کمالزو دي
لـه پلـــوه د مـــور زه هـــم کمالزی یم

کمالزي په منډړو پورې نښلي او حافظ رحمت خان په دې باب لیکلی دي: «از منوبن منډړ دو فرزند به وجود آمدند یکـی عثمـان، دویـم اتمـان و از

عثمان بن منو نیز دوفرزند به وجود آمدند یکی امان که اولاد و یرا امان زی میگویند؛ دویم کمال که اولادویرا کمالزی میگویند»( خلاصة الانساب، خطی ).

**هندوستان ته د نواب محبت خان دکورنی تګ :**

د محمود خان یاموتی تر مړینې وروسته یې د زامنو ترمنځ دده د جایداد ترکې او تقسیم پرمهال شاه عالم خان ته داؤد خان نومی غلام هم په برخه کې ورسید. ده داوخت اولادنه درلود او داؤد خان یې د خپل زوی په دود وپاله. کله چې داؤد خان ځوانی ته ورسید، نو هندوستان ته د تګ شوق ورسره پیداشو. شاه- عالم خان یې هندوستان ته له تګ سره مخالف و، خو داؤد خان یوه ورځ په پټه له کوره و تښتید او د اورنګزیب ( ۱۰۶۸-۱۱۱۸ هـ ق ) د زوی بهادرشاه په زمانه کې کټهیر ته ورسید. په کټهیر کې له نورو افغانانو سره یوځای شو هغه مهال د هند مغولي حکومت ضعیف شوی و. راجاګان او جاګیرداران په خپلو کې سره په جنګونو اخته وو او ددې جنګي ماشین د چلولو لپاره سپاهیانو ته اړتیاوه ؛ هر راجا زیارایست چې ماهراوجنګیالی سپاهیان په خپلو لښکرو کې وګو ماري .

داؤد خان چې یو جنګیالی او زړه ورسړی و. هر جاګیردار او راجاې خواهښتي و. هغه مهال دی له ځینو ولایتی افغانانو سره یو ځای دبدایون دیوې پرګنې له یوزمیندار سره نو کر شو؛د نورو پرګنو له زمیندارو سره یی جنګونه کول او بری یې په برخه و. د همدې بلوسو او تاړاکونو په سلسله کې ده بانکولی نومي ځای هم لوټ کړ او ددې لوټ پرمهال ورته داوو یا اتو کالو په عمر یو هلک هم لاس ته ورغی. داؤد خان د زړه سوي او مهربانی سلوک ورسره وکړ او خپل متبنی ( زوی نیو ) یې ومانه؛ نوم یې علی محمد پر کښېښود،د ښوونې او روزنې لپاره یې ورته معلم مقرر کړ، ښه یې وروزه، د داؤد خان تر وژل کیدو وروسته د داؤد خان ملګرو سردار وټاکه او دغه علی محمد بیاد روهیلکهند د افغانی

ریاست بانی شو، دی د پښتو شاعر هم و ( په هندکې د پښتو ژبې او ادبیاتو د ایجاد او ودې پړاوونه، ۳۷۳-۳۷۴ مخونه ).

• د څوکلونو په دوران کې داؤد خان ډېر شهرت پیداکړ او دده دشان و شوکت خبرونه تروطنه پورې ورسېدل. له افغانستان نه ډېر افغانان ده ته د نوکری لپاره ورغلل، شاه عالم خان ته هم داوړ خبرونه ورسیدل، دی هم دحال د معلومولو لپاره هندوستان ته ورغی او په کتهیر کې یې له داؤد خان سره ولیدل، داؤدخان ډیرعزت ورکړتردرنې میلمه پالنې وروسته یې په ډیردرناوي رخصت کړ.

څوکاله وروسته بیا شاه عالم خان د داؤد خان دلیدو لپاره هندوستان ته ولاړ، داؤد خان بیا شاه عالم خان له ځان سره وساته او د رخصتېدو په وخت کې یې دده د کور د مصرف لپاره د کال دوه زره روپۍ ور مقررې کړې او دابې ورته وویل چې داروپۍ به تل ده ته رسیږي.

شاه عالم له داؤد خانه رخصت شو او دافغانستان خواته وخوځېد، کله چې د هلی نه ورسید د آسانو سوداګرو ونیو او د خپلو آسانو هغه پیسې یې ځنې و غوښتې چې دده زوی نیو داؤد خان ته یې وې.

شاه عالم خان ترڅه مودې پورې له دوی سره بندي و او دایې ورته ویل ترهغې چې ستا متبنی زموږ پیسې رانه کا، موږ تا نه پریږدو؟ شاعالم خان خپل هر څه دغو سوداګرو ته پریښوول او دی تش خالي لاس بیرته داؤد خان ته ورغی. د سوداګرو د آسونو د پیسودنه ورکړې له امله یې داؤدخان ډیرو راته او پیسې یې سوداګروته واستولې. دې پېښې پر شاه عالم خان ډېر ژور اثر وکړ او داؤد خان ته یې وویل چې پدې ملک ( هندوستان) کې ستاداوسیدو له امله د خدای (ج) پر مخلوق ظلم کیږي، نوځکه زه تا بیرته له ځان سره وطن ( افغانستان) ته بیایم، خوځنګه چې داؤد خان دلته پیسې پیداکولې او وطن ته

( نولس )

بیرته ستنېدو ته تیارنه و، نو ځکه په پټه یې د شاه عالم خان د وژلو تابیا وکړه او څلوروتنو ته یې دده دوژلو لپاره څه پیسې ورکړې ؛ دا قاتلان د شپې دده د خوب ځای ته ورغلل او دې یې وواژه، په سبایې داؤد خان څه نمایشي فریادونه وکړل او دشاه عالم خان جسدیې خاوروته وسپاره. د شاه عالم خان قبر د بدایون په څوفرلانګي کی د آنولې د سړک پرغاړه واقع دی، داپیښه د فرخ سیر په زمانه کې واقع شوې ده .

د شاه عالم خان له وژلو لا کال نه وتیر، چې داؤد خان د کمایون د راجا د ییی چند له خوا ووژل شو. او پرځای یې زوی نیو علی محمد خان د هغه ځای د افغانانو سردار شو د نواب محبت خان د نیکه – شاه عالم خان – د وژل کیدو پر وخت یې پلار حافظ رحمت خان (۱۱۲۰ هـ ق زوکړی) د څلورو کالو و او دپخوانی شرقی افغانستان په شهامت پورکې اوسیده. په لس کلنی کې یې قرآن عظیم حفظ کړ او لږ وروسته یې نور ضروری کتابونه او فقهه ولوستل، په ځوانی کې یې د آسونو له تجارت سره شرق پیداشو او له سوداګرو سره په آسانو پسې بدخشان ته ولاړ، آسونه یې له ځانه سره راوستل او بېرته خپلې سیمې ته راغی. دی د خپلو ذاتی سوخصایلو او د خپلې کورنۍ د اثر رسوخ له امله پرتو لوخلکو ګران و.

د تاریخ روهیکهند (۱۸٦٦ م کال چاپ) مؤلف نیاز احمد هوش لیکلي دي چې نواب علی محمد خان داسې فکر کاوه چې که اکثر روهیله افغانان ماته د داؤد خان د متبنی (زوی نیو) په سترګه ګوری او زما اطاعت نه کوي؛ له خپلو مشاورینو سره له مشورې وروسته دې نتیجې ورسید چې حافظ رحمت خان له افغانستانه را وغواړي نوبیا به روهیله دده له فرمانه هیڅکله هم سرغړونې نه کوي . نواب علی محمد خان په حافظ صاحب پسې متواتر لیکونه واستول او

دی یې هندوستان ته راوباله .

حافظ رحمت خان له خپلو ځینو نږدې کسانو او ملګرو، لکه شیخ کبیر، ګل شیر خان او ځینو نور وسره هندوستان ته ورغی، کله چې آنولې ته ورسید نواب علی محمد خان له خپلو خلکو سره دده مخې و ووت په ډیره ښه وضع او ځانګړي شان یې ده ته هر کلي ووایه او له خپله ځان سره یې دیره کړ.

په ګلستان رحمت کې راغلی دی : د نواب علی محمد خان زړه ته یوه روځ ورغلل نه چې حافظ رحمت خان د داؤد خان دځای ناستی په توګه د خپل پلار د قتل انتقام له ماواخلي ؟ او د کوم مقصد لپاره چې دی ما راغوښتی دی هغه فوت شی؟ نو د صفایی لپاره یې یوه ورځ د نورو افغانو په مخ کې حافظ رحمت خان را وغوښت او دا موضوع یې ورته په ډیر ادب په دې ډول یاده کړه:(( داؤد خان خپل پلار شاه عالم وواژه، سره دده چې زه د هغه اصلی زوی نه یم خو څنګه چې یې د زوی په توګه پاللی یم او اوس بالفعل دده مال او جایداد زما په واک کې دي، ددې لپاره چې د آخرت په ورځ کې داؤد خان ددې شنیع فعل له مواخذې څخه وژغورم نوله تا څخه هیله لرم چې له دې درې خبرو څخه یو منې.

۱- که بدل اخلي نو : (( اینک من واینک تو و اینک شمشیر))

۲- که خون بها غواړې د څوزره روپیو همیانی حاضرې دي قبولې یې کړئ.

۳- یایې خون وبخښئ .

د نواب علی محمد خان په ځواب کې حافظ صاحب په ډېره حوصله او سنجیده ګی وویل :

(( ستا او د داؤد خان ترمنځ کوم نسبت او قرابت نشته نو ځکه قصاص نشی جایز کیدای؟ ذ خون بها اخیستل د عالي همتو او عالی فطرتو لپاره بې

دی یې هندوستان ته راوباله .

حافظ رحمت خان له خپلو ځینو نـزدې کسـانو او ملگـرو، لکـه شـیخ کبیر، گل شیر خان او ځینو نور وسره هندوستان ته ورغی، کلـه چـې آنـولې تـه ورسید نواب علی محمد خان له خپلو خلکو سره دده مخې و ووت په ډیـره ښـه وضع او ځانگړي شان یې ده ته هر کلي ووایه او له خپله ځان سره یې دیره کړ.

په گلستان رحمت کې راغلی دی : د نواب علی محمد خان زړه ته یوه روغ ورغلل نه چې حافظ رحمت خان د داؤد خان دځای ناستی په توگه د خپـل پلار د قتل انتقام له ماواخلي ؟ او د کوم مقصد لپـاره چـې دی مـا راغوښـتی دی هغه فوت شی؟ نو د صفایی لپارهٔیوه ورځ د نورو افغانو پـه مـخ کـې . حـافظ رحمت خان را وغوښت او دا موضوع یې ورتـه پـه ډیـر ادب پـه دې ډول یـاده کړه:(( داؤد خان خپل پلار شاه عالم وواژه، سره دده چې زه د هغـه اصـلی زوی نه یم خو څنگه چې یې د زوی پـه توگـه پـالـلی یـم او اوس بالفعـل دده مـال او جایداد زما په واک کې دي، ددې لپاره چـې د آخـرت پـه ورځ کـې داؤد خـان ددې شنیع فعل له مواخذې څخه وژغورم نوله تا څخـه هیلـه لـرم چـې له دې درې خبرو څخه به یوه منې.

۱- که بدل اخلي نو : (( اینک من واینک تو و اینک شمشیر))

۲- که خون بها غواړې د څوزره روپیو همیانی حاضرې دي قبولې یې کړئ.

۳- یایې خون وبخښئ .

د نواب علی محمد خان په ځواب کې حافظ صاحب په ډېـره حوصـله او سنجیده گی وویل :

(( ستا او د داؤد خان ترمنځ کوم نسبت او قرابت نشته نو ځکه قصاص نشی جایز کیدای؟ ذ خون بها اخیستل د عـالي همتـو او عـالی فطرتـو لپـاره بـې

ارزښته دي؛ د خان شهادت نشان د قتل مواخذه له تاخخه اخيستل د شرعي او عرف له پلوه جواز نه لري که به داسي واى نو به مى له تاسره په رانه وچولى، خندا اوښه زړه ملاقات نه کاوه، زما د پلتنې له مخى دشاه عالم خان دقتل په پيښه کې ته لاس نه لرې او زه له ولايته هندوستان ته ستا دليدو او ملاقات لپاره راغلى يم؛ زه له څه غرضه پرته، خاص د خداى لپاره ؛ ستا د خاطر او ډاډ لپاره دا خون بخښم . د حافظ رحمت خان په دې شريفانه خبرو او عالي همتى نواب على محمد خان ډير خوشحاله شو او د حافظ رحمت خان محبت او عزت يې په زړه کې نور هم ډير شو. ( حيات حافظ رحمت خان، ۵۵-۵٦ مخونه) څه موده چې تېره شو حافظ رحمت خان افغانستان ته دبيرته تګ اجازه غنى وغوښته، خو نواب على محمد خان ترې بيلتون نه غوښت او په بيلا بيلو بانويې ټالاوه، بالاخر مجبور شو چې هندوستان ته د بېرته راتګ په شرط د تلو اجازه ورکړي.

په هندوستان کې تر درې کلن قيامه وروسته حافظ بيرته شهامت پور ته ولاړ، اما نواب على محمد خان دى چېرې پريښود، پرله پسې ليکونه يې ورته استول او دى يې هندوستان ته راباله .

حافظ رحمت خان خپلې پخوانى وعدې او دنواب على محمد خان پرله پسې ليکونو مجبور کړ چې بيا هندوستان ته ولاړشي. له افغانستانه بيا هندوستان ته روان شو اوآنولې ته ورسيد، داخل يې نواب على محمد خان ترلومړي ځله زيات قدر او عزت وکړ او دايې هم ورته وويل چې خپله کورنى له افغانستان راوغواړه او دلته مستقل و او سه .

د منتخب تاريخ افغانى دليکنو له مخې، حافظ رحمت خان د نواب على محمد خان ددې غوښتنې په وړاندې لاندى درې شرطونه بيان کړل:

۱ - ستا اولاد، خپلوان، عزیزان او نور افغانان چې ستا څه ډول خوشآمد کوي، ددغسې چلند توقع له ما څخه مه لرئ.

۲ - زه ستا دنورو نوکرو او چاکرو په شان رفتار نه خوښوم او نه ستا د فتر ته ځان ښکاره کوم.

۳ - ماسره په سخته ژبه خبرې مه کوه، زه د سختو او زشتو خبرو برداشت نه لرم.

د حافظ رحمت خان دغه شرطونه نواب علی محمد خان په ډیر احترام ومنل او تردې وروسته حافظ صاحب خپله کورنۍ هندوستان ته را وغوښته او په آنوله کې مقیم شو(۳۶).

زموږ د شاعر کورنۍ پدې ډول هندوستان ته راغله او پدې هیواد کې استوګنه شوه چې د راتلو لنډ د استان یې. ما لوږ بیان کړ.

**زوکړه او نوم** :

د نواب محبت خان په ماکتلو آثارو کې ما کومه داسې اشاره نه ده پیداکړې چې د هغې پراستناد دې زه دده د زوکړې نیټه وکارم. زما په لاس کې چې کوم مآخذ دي په هغو کې قدیم اثر چې د نواب محبت د زوکړې په باب معلومات راکوي هغه حیات حافظ رحمت خان ( د **۱۹۳۳** م کال تالیف ) نومی کتاب دی. د حیات حافظ رحمت خان په **۳۷۲** مخ کې راغلې دي چې نواب محبت خان د خپل پلار د شهادت پر کال د **۲۴** کالو و. حافظ رحمت خان په هغه جګړه کې شهید شوی دی، چې د **۱۱۸۸** هـ ق د صفر په **۱۱** مه په کره-میران پورکې پیښه شوې ده ( په هندکې د پښتو ژبی ... **۳۸۹** مخ ).

پدې حساب نو که موږ **۲۴** له ۸۸ څخه راوباسو **۶۴** پاتېږي او د نواب محبت خان د زوکړې کال باید ۱۱۶۴ هـ ق وبولو. د حیات حافظ رحمت خان

( **درویشت** )

مؤلف الطاف بریلوي د خپلو د غو خبرو مآخذ نه دی ښوولی او دایې نه دي ویلی چې د حافظ رحمت خان د شهادت پروخت د نواب محبت خان دعمر د څرنګوالی د اخبرې ده په کوم استناد کړې دي؟ اما د اسرار محبت د مثنوی مؤلف دوکتور نسیم احمد له کښبو داسې ښکاري چې د حیات حافظ رحمت خان د مؤلف د نواب محبت خان د عمر د څرنګوالي دا خبرې د سعادت یار خان په ګل رحمت خان کې راغلی دي. په ادبیات سرحد دریيم ټوک ۱۳۷ مخ کې يې د نواب د زوکړې سنه ۱۸۰۹ ښوولې ده چې سمه نه ده، عجیبه خولا داده، چې پدې کتاب کې يې دده د زوکړې او مړینې د کلونو د ښوولو لپاره همداد ۱۸۰۹ م کال سنه ورکړې ده ؛ خو غالب ګمان دادی چې دا به طباعتی تېروتنه وی. دانشنامهٔ ادبیات فارسی ۲۱۸۶ مخ کې يې دنواب د زوکړې کال ۱۱۶۵ هـ ق ښوولی دی چې زما په پوهه سم نه دی.

په څینو آثارو، لکه ادبیات سرحد دریېم ټوک اوله دې خایه په ( اردو کی قدیم پښتون شعراء) کې يې د نواب محبت خان د زوکړې څای پیښور ښوولی دی، داخبره هم سمه نه ده، خپله نواب په خپل پښتو دیوان کې ویلی دي:

روهيلي يم چې مې پلار راغی له روهه
پيدا شوی که هر څو په هندوستان يم

بله خبره چې پدې ارتباط په کولو ارزي، داده چې د نواب محبت خان پلار او نیکونه په پیښور کې نه، بلکه په چچ هزاره او بیا د مندړو او یوسفزو په سیمه شهامت پورکې اوسېدل. ما کتلو آثارو کې د شاعر نوم محبت خان راغلی دی: په پښتو،پارسی او اردو اشعارو کې يې د تخلص په توګه زیاتره (محبت)راوړی دی.خو په (مجموعهٔ نغز) نومې تذکره کې يې دده نوم محب الله خان کښلی دی او په حاشیه کې محبت الله خان راوړی دی [۳۷] خو د نواب محبت خان په

خپلو آثارو او دده د کورنۍ د غړیو او د نورو نویو او زړو لیکوالو په آثار و کې دده نوم محبت خان راغلی دی نه محبت الله خان یامحب الله خان .

**د پرورښت محیط** :

د محبت خان دزوکړې پروخت دهند مغلی امپراتورۍ د اضمحلال په حالت کې وه او په دهلی کې ناست مغل باچا حتی له ځانه دد فاع قدرت له لاسه ورکړی و، هرځای بغاوتونه او سرکشۍ وې؛ د محلی راجاګانو، مهاراجاګانو، جاګیردارو او زمیندارو ترمنځ جنګونه روان وو او یو دبل د پرګنو او جاګیرونو د نیولو لپاره یې یوپر بل لښکرې خیژولې؛ د هند په ګوټ ګوټ کې د محلی ریاستونو حکمرانۍ وې اودمرهټه ووډعروج اومخ پرزیاتیدونکي قدرت زمانه وه.

دهند په ځینوسیمو کې د شرقی هندد کمپنۍ تر پوښ لاندې د بریتانویانو د سلطې د پراختیا او ټینګیدو هڅې جاري وې او دهند په شمال غربی سرحدونو کې د افغانستان ځوان واکمن اعلیحضرت احمد شاه بابا درانی د افغانستان طبیعی سرحدات ټینګ کړي وو او دخپلو طبیعی سرحداتو د خوندې ساتلو لپاره یې لښکر کښی کولې.

د هند په ځینو برخو کې دنورو افغانی ریاستونو تر څنګ د روهیلکهنډ افغانی ریاست هم قایم و او د نواب علی محمد خان ( ۱۱۶۲ هـ ق مړ) له مرګه دوه کال تیرو و او د روهیلکهنډ رسمی نواب سعد الله خان و، خود ریاست ټولې چارې د محبت خان د پلار حافظ المللک نواب حافظ رحمت خان ترنظم لانې وې، تردې چې په ۱۱۷٦ هـ ق کال کې د نواب سعد الله خان ترمړینې وروسته د روهیلکهنډ د ریاست رسمی نواب همدا حافظ رحمت خان شو.

د محبت خان د زیږیدو پروخت په روهیلکهنډ کې یوښه او ګوارا فرهنګی محیط آماده و؛ په روهیلکهنډ کې د پښتنو شاعر انو یوه ډله موجوده

شوې وه، نواب علی محمد خان خپله هم د پښتو شاعرو. نواب حافظ رحمت-خان، محمود خان، عبدالصمد پیر زاده او مسکین د روهیلکهنډ په ریاست پورې تړلي شاعران وو، چې د پښتو نظمونو نمونې يې د عبدالقادر خان خټک د دیوان دیوې خطي نسخې – چې اوس په برټش لایبریری کې ساتل کیږي – په پای کې راغلي دي. دا نظمونه لومړی ځل ما د نومورې خطي نسخې له مایکرو فلم استخراج کړل او (په هند کې د پښتو ژبې او ادبیاتو د ایجاد او ودې پړاوونه) اثر په څلورم فصل کې نشر شول (۳٦۰-۴۷۱ مخونه) دغه وخت له افغانستان څخه هم ځینی شاعران او لیکوال روهیلکهنډ ته تللي وو او له دې نوابي سره منسلک وو، لکه: پیر معظم شاه د پیر فاضل شاه زوی؛ حافظ رکن الدین ابن منیر؛ کاظم خان شیدا او نور ... د هغه وخت اردو ژبیو شاعرانو هم له افغاني ریاست سره تړاو درلود.

د روهیلکهنډ نوابان (علی محمد خان او حافظ رحمت خان) سره له دې چې خپله شاعران او لیکوال وو، نور ادبیان او شاعران يې پالل؛ له علما وو یې سره یې مینه وه؛ دروهیلکهنډ په ټولو ښارونو کې یې مدرسې جاري کړې وې.

د حیات حافظ رحمت خان دلیکنې له مخې د حافظ الملک نواب-حافظ رحمت خان د حکومت په دوران کې په روهیلکهنډ کې پنځه زره علما او فضلا په مساجدو او سرکاري مدرسو کې په تدریس مشغول وو. مدرسینو او شاگردانو ټولو ته تنخواوې ورکول کیدې او پالنه یې کیده.

نواب سعادت یار خان په گل رحمت کې راوړي دي: «به استماع خبر قدرشناسی و دین پروری حافظ المللک صدها علمای معتبر مثل مولانا عبدالعلی لکهنوی و غیر هم در تمام شهر های کتهیر مجتمع شده مواجب کثیرهٔ زیادی از حاجات از سرکار می یافتند. در مدارس و مساجد که برای ایشان از سرکار

ترتیب یافته بود به فراغ خاطر بـه درس و تـدریس اشـتغال میورزیدنـد و در هـر مدرسه کتب ووظیفهٔ طلبا از سرکار تعین میبافت)) (۳۸)

محبت په دغسي سیاسی او فرهنگی شرایطو کې دیو سـر لښـکر او بیـا نواب په کور کې پرورښت و موند.

**زده کړې او مهارتونه:**

له لوړه تفصیله سرې پوهیدای شی چې محبت خان په داسې شرایطو کې وزوکېد او د خپلې کورنۍ په غیږ کې ستر شو او وروزل شو چې دده کورنۍ پـه اقتصادی او سیاسی لحاظ په مساعد و شرایطو کې واقع وه او فرهنگی محیط هم سالم و.

دوکتور نسیم احمـد لیکلـی دی چـې محبـت خـان د عربـي او فارسـي متداول تعلیم د هغه وخت د نومیالی عـالم مـلا بحـر العلـوم ترنگرانـی لانـدې د نظامی درس له نصاب سره سم پای ته ورسوه.

د الطاف علی بریلوی د کښنوله مخې محبت خـان د خپـل پـلار حـافظ الملک نواب حافظ رحمت خان د خاصې توجه له برکته پـه عربیـه علومـو کـې دومره مخته و چې له زیاتو علما وو بې میدان ووړ (حیات حـافظ رحمـت خـان ۳۷۲ مخ) پښتو یې مورنۍ ژبه وه، فارسي یې د رسمي او فرهنگې ژبې؛ عربی یې ددیني ژبې او اردو یې د مراو دې او محیط د ژبې په توگه تـردې حـده زده وې چې په دغو څلورو سروسرو ژبو یې شعروایه او لیکل یې پرې کول.

دکتـور شـاه عبدالسـلام لیکلـي چـې دده مـورنۍ ژبـه پښـتو او فارسـي وې(۳۷) دا خبره څکه سمه نه ده، چې مورنۍ ژبه دوې نه، بلکـه یـوه وي، د محبت خان مورنۍ ژبه پښتو وه؛ نورو څیړونکیو هم دا خبره کـړې اوویلـی یـې دي چې د محبت خان مورنۍ ژبه پښتو وه (د اسرار محبت مقدمه، ۱۲ مخ)

( اوه ویشت )

ویل کیږي چې له پښتو، فارسی، عربی او اردو سربېره په سنسکریت ژبه کې یې هم مهارت در لود؛ ډېر ذهین او ذکی سړی و ؛د آثارو له مطالعی یې ښکارې چې متداوله علوم یې لوستي وو.

له ژبو او علومو علاوه د سپه ګرۍ او موسیقی پرفنونو هم پوه و، دنواب محبت خان دپوهې،سخنورۍ اوسخندانۍ په باب دنواب الله یار خان په دې لاندې خبرو دابحث پای ته رسوم: « اعلم العلماء و افضل الفضلا و ملک الشعراء و جامع جمیع علوم و ماهر جمیع فنون، فخراین خاندان، بلکه جمیع قوم افغانان نواب محبت خان» د عجایب اللغات په مقدمه کې د الله یار خان له خوا محبت خان ته داور کړي القاب، دده په باب د نور تذکرو له کښښو هم ترډېره حده ثابتیږي، دوروروليی احساسات که یې یوې خوا ته کښېږدو زما په پوهه د محبت خان په باب د الله یار خان خبرې له وا قعیته لرې نه ښکاري.

**سیرت او عادات**:

د مخه مو ولوستل چې محبت خان د حافظ الملک نواب حافظ رحمت خان په کور کې وزوکید؛ دده د سردارۍ او نوابۍ په کور کې لوییده چې د زده کړو شو او د پلار په خاصه توجه ور وزل شو. مروجې زده کړې یې و کړې، ژبې یې زده کړې، د سپاهیګرۍ او حرب په فنونوېي ځان پوه کړ، او ورسره د موسیقۍ شوقمن او په موسیقي پوه سړی هم و.

ددغسې معنوی سیرت خاوند شخص دسیرت د ځینو نورو اړخونو او عاداتو په باب څو خبرې هم ښایي دده د شرح حال د بشپړیدو له جریان سره مرسته وکړي.

د محبت خان کومو معاصرو لیکوالو چې دده شرح حال لیکلی دی زیاترو لیکلی دي چې محبت خان یو وجیه، شکیل، سخي، خلیق او متواضع سړی

( اته ویشت )

وه. د سيرالمتا خرين مؤلف ليکلي دي : «محبت خان په صورت او سيرت د سرداری وړدی» د عمادالسعادت مؤلف ليکلي دي : « د نواب محبت خان په ځير غيرتی او دلياقت خاوندرئيس ښايي ډير لږ ترسترگوشی».

وايې يوځل جهاندار شاه له دهلي ځخه لکهنو ته راغلی و، آصف الدوله له جهاندار شاه سره دملاقات لپاره نواب محبت خان هم راوغوښت جهاندار شاه چې د نواب محبت خان و جاهت وليد، نو حيران پاتی شو، دده يې ډيره ستاينه وکړه، د مظفر الدوله او شهباز جنگ القاب يې ورکړل؛ يوه ورځ يې خاص ملاقات ته هم وباله. په هند کې کښل شويو زياترو زړو آثارو کې دده د نيک سيرت، ښو اخلاقو او متانت په باب يادونې، اشارې اوډېر بيا نونه مومو، له دې برسېره په کورنی کې هم له ځانگړي احترام برخوردارو، پرخپلو کشرانو مهربان او د کورنی د يووالی د ټينگښت حامی و. نواب الله يار خان د عجايب اللغات په مقدمه کې دده دسيرت دغه اړخ ته داسې اشارې لري : «نواب محبت خان در شفقت و يگانگيت مجسم بود» د هندي آثارو مطالعه دده دسيرت د لا ښوولو ترځنگه موږ ته داهم رابښيي چې محبت خان هم د خپل پلار په ځير له علماوو او شعراوو سره مينه درلوده، له ډيرو شاعرانو او ليکوالو سره يې قلمی مراوده موجوده وه (۴۰) ډير و شاعرانو يې کورته تگ راتگ کاوه او ډير و شاعرانو دده له درباره سره تړاو درلود.

دشيخ قلندر بخش جرآت دالاندې بيت ددې مدعا شاهدي لي:

بسکه گلچين تهے سدا عشق کے هم بستان کے

هوے نوکر بهی تو نواب محبت خان کے (۴۱)

دوکتور جميل جالبی په تاريخ ادب ادو کې ليکلي دي چې جعفر علی حسرت د استاد په حيث د نواب محبت خان له دربار سره منسلک و. کله چې

( نه ويشت )

نواب محبت خان د دا درسی لپاره له لکهنو څخه کلکتې ته تللی و، نوېي حسرت په و صف کې یوه قصیده وویله؛ دا قصیده د حسرت په دیوان کې شته. پدې قصیده کې حسرت له نواب محبت خان سره د خپل عقیدت او محبت اظهار کړی او له ده څخه دلبرې والي او مهجوری خبرې يې پکې راوړې دي[۴۲]

دمحبت خان دواده په مبارکی کې دمیرعوض علی مدعا شاه جهان آبادي ویلې قصیده، د دوی له کورنی سره د هغه دوران د شاعرانو د پیوند ښکارند وېي کوي، د مدعا د قصیدي یو بیت دادی:

جشن نواب فلک رتبه محبت خان هے

جس کی شادی می هی سب جمع بزرگ و کوچک [۴۳]

**د محبت خان د ژوند بحرانی حالات**:

محبت خان د خپل عمر ځلیریشت کاله د خپل پلار د سرداری او نوابی په ماحول کې تېر کړل؛ د عمر په ځلیریشتم کال کې نه یوازې دی، بلکه دده ټوله کورنی له بحران سره مخامخ شوه. د ۱۱۸۸ هـ ق کال د صفر د میاشتې په ۱۱ نېټه د انګریزانو او شجاع الدوله له لښکر و سره په جګړه کې د محبت خان د بهادر او توريالی پلار حافظ الملک حافظ رحمت خان د شهادت واقعه پېښه شوه.

ددې غمجنې واقعې له امله د روهیلکهند ټول افغانان، د حافظ خپلوان، دوستان او کورنی له ډیرو رنځونو، کړ اوونو او بدو ورځو سره مخامخ شول. ددې ناورین پرمهال زمونږ د شاعر نواب محبت خان حال، د تاریخی کتابونو له مخې داسې بیانیږي:

مولوی نجم الغنی خان رامپوری په اخبارالصنادید کې راوړي دي:

د پلار تر شهادته وروسته نواب محبت خان له شاه ابوالفتح — چې د هغه زمان له مشهورو مشايخو څخه و — سره يو ځای د يکشنبې نيمه شپه په پيلې بهيت کی له خپل استوګنځی څخه را ووت او شجاع الدوله ته يې د تګ اراده وکړه. د بلې ورځې نزدې ما ښام محبت خان دشجاع الدوله لښکر ته ورسيد؛ شجاع الدوله محبت خان ته مرتضی خان و استاوه او دملازمت ډيرې ته يې بوته. د صفر ۱۳ مه د دوشنبې ورځ سهار محبت خان له شجاع الدوله سره وکتل او په دې کتنه کې د محبت خان ورور ذوالفقار خان هم و. شجاع الدوله دوی دواړو ته وويل ښه وشول چې تاسې راغلئ ! بيا يې د ريا او تذوير په ډول زياته کړه: زما او د حافظ جيو ترمنځ ډير محبت و، دغه ورځ چې مخې ته راغله، ددې فکر هم نه کيده. حافظ جيوهم ملامت نه دی څه چې شوي داټول د عبيدالله خان کشميری او دحافظ جيو د خوريي خان محمد خان له لاسه دي، بيا يې دواړو وروڼو ته خلعتونه راوغوښتل. محبت خان ورته وويل سباته ستاسو لښکرې پيلی بهيت ته رسيږي. که مو زموږ سرفرازي منظور وي، نود ا خلعت هلته مرحمت کړئ چې زموږ قريبان دا حال ووينی، نو به ډاډه شي.

شجاع الدوله دا خبره ومنله او سملاسی يې محبت خان پيلی بهيت ته واستاوه. د محبت له روانيدو وروسته يې حبشی غلام شيدي بشيرته — چې د پيلی بهيت په لاره کې ديره و- احوال وليږه چې محبت خان پيلی بهيت ته روان دی، په هره پلمه چې وي دشپې يې له ځان سره وساته او سبا سهارېي له ځان سره بوزه او پيلی بهشت محاصره کړه، هيچاته د دوتلو اجازه مه ورکوه.

شيدی بشيرد حکم مطابق د صفر په ۱۴ مه پيلی بهيت محاصره کړ، د ښار هغه اوسيدونکي چې د مخه وتلی وو هغه بچ شول ، پاتې خلک په بلاکې کښيوتل.

شجاع الدوله خپله له انګریزی فوجونو سره یوځای په دوو دریو کوچونو کې د صفر په ۱٦ مه پیلی بهیت ته ورسید او د هغې کلاتر څنګه یې خیمې و درولې چې د حافظ رحمت کورنی پکې محصوره وه.

په ټول ښار کې ډنډوره ورغږېده چې ښاریان دې آسونه او وسلې سپاهیانوته ورکړي او دوی دې له ښاره ووزي، خپل مال اواسباب دې نه پټوي- د شیدي بشیر سپاهیانو د خلکو مال اواسباب ځنې واخیستل ډېر یې له ښاره وایستل او ځینې یې قید کړل، تردې وروسته شجاع الدوله محبت خان ته حکم واستاوه چې د حافظ صاحب خزانه را وښیه.

محبت خان ځواب ورکړ: (( که خزانه وای، نو دې ورځې ته نوبت نه رسیده؟)) تردې وروسته شجاع الدوله بل حکم ورکړ چې د یوې دوو ورځو لپاره محلسرا خالي کړه، ټول متعلقین له ځانه سره لښکر ته راوله، د ښځینه وو ګانې او جامې پرېږدئ، څو زموږ سړی د خزانې تلاش وکړي؛ له تحقیقاتو وروسته به تادهر ډول احساناتو سره د پیلی بهیت په کلاکې ځای پرځای کړم)) .

له دې حکم سره سم محبت خان دصفر په ۱۸ مه دمحلسرادښځینه وو، بچو او خپلوَ ورو نو څخه زروزیور. اسبابونه او نور هرڅه واخیستل او شیدي بشیرته یې وسپارل، داغوستو جامې یې په کوروکې پرېښودې، خپله په آس سورشو. دشیدي بشیر له سړیو سره د شجاع الدوله کمپ ته ورغی، تردې وروسته د شیدي سړیو د حافظ رحمت خان کورنی، ښځې او کوچنیان په ډېره بې حرمتی له حویلی څخه وایستل او هغې ډېرې ته یې ورسول چې د شجاع الدوله په کمپ کې وه .

له دې بندوبسته وروسته محبت خان ته د رضاخان په وسیله، د شجاع الدوله دا پیغام ورسید: ((مانن غوښتل چې تاته د سرلوړی خلعت

درکړم، خود هغې ناروغی له وجې چې له تېرې شپې راپیداشوې ده، طبیعت مې ښه نه دی نارام یم که په یوه دوه ورڅو کې ښه شوم، نو پخپله وعده به وفا کوم)).

شجاع الدوله د امهال د حافظ رحمت خان هر څه ضبط کړل، شیدی بشیرې له خپلو سروسره د پیلی بهیت د چور – تالان لپاره پرېښود او خپله له انګریزی فوجونو سره بریلی ته روان شو او دحافظ صاحب کورنی یې له ځانه سره بوتله .

شجاع الدوله او دده سرې خورو لښکرو په پیلی بهیت، بریلبی، آنوله او بسولي کې د ټولو نامورو افغانانو کورونه لوټ کړل او په پای کې یې د حافظ رحمت خان او دوندی خان کورنی، ښځې او کوچنیان له نورو ډېرو بې ګناه سردارانو، عالمانو او فاضلانو سره په کراچیو کې کښېنول او د سالار جنګ ترنګرانی لاندې یې له بسولي څخه آله آباد ته ولیږل او دا له آباد په کلاکې یې قید کړل. محبت خان هم داسیرانو له کاروان سره آله آباد ته ولیږل شو؛ د ټولو اسیرانو د لګښتو نو لپاره د ورځې سل روپی مقررې شوې (۴۴) چې پدې مقررو شویو روپیو کې د محبت خان او نورو وروڼو، عظمت خان، منګل خان، حرمت خان، محمد یار خان، الله یار خان ، غلام مصطفی خان او اکبر خان برخه ۴۰ روپی وې .

داله آباد په کلاکې د روهیله کورنیو ترنظر بندی وروسته شجاع الدوله د ګړهوال غرونو ته متوجه شو، ځکه داوخت د نواب علی محمد خان زوی نواب فیض الله خان په لال ډانګ نومی ځای کې د پاتې روهلیه افغاني فوجونو پر تنظیم او د جنګ پرتیاری بوخت و.

که څه هم شجاع الدوله افغانانو ته د ماتې او د دوی د لښکرو د انتشار اراده درلوده، خو نا څاپه يې په فوج کې د طاعون و با خوره شوه، خپله هم ناروغه و او د موسم د خرابۍ په وجه دده ناروغي هم زور شوه او له ناچارۍ يې فيض الله خان ته د سولې پيغام وليږه او ورسره يې د محبت خان د غوښتلو لپاره د اله آباد حاکم ته پروانه واستوله ( د دوکتور نسيم احمد په قول ) او غوښتل يې چې محبت خان د نواب فيض الله خان په وړاندې و درو ي او د روهيله وو زور مات کړي؛ خومولوی نجم الغنی خان بيا په اخبارالصناديد کې د روهليکهنډ ګزيټر په حواله ليکلي دي چې د شجاع الدوله او نواب فيض الله خان ترمنځ د سولې د معاهدې په وخت کې روهيله وو د حافظ رحمت خان او دوندي خان د کورنۍ پر خوشي کولو ډيرتاکيد کاوه، نو ځکه شجاع الدوله يې د خوشي کېدو حکم وکړ او محبت خان يې له اله آباده راوغوښت، خو د سولې کاروايي دده تر واپسۍ پخوا سرته رسيدلې وه.

دلال ډانګ د معاهدې تر لاسليک وروسته شجاع الدوله بې ځنډه له خپل لښکر سره دخپل پايتخت فيض آباد له لوری رهی شو؛ د لارې په اوږدو کې چې کله دی سنبهل ته ورسيد نو د ۱۱۸۸ هـ ق کال درجب ۲۲ مه وه او محبت خان چې يې پخواله له آباد راغوښتی و، په سنبهل کې ورسره يوځای شو او شجاع الدوله له ځانه سره روان کړ او د ۱۷۷۴ م کال د دسمبر په ۵ مه فيض آباد ته ورسېدل.

د توقع پر خلاف شجاع الدوله له محبت خان سره ډير ښه سلوک وکړ او د مهر بانۍ په ډول يې دده د خرڅ لپاره د مياشتې زر روپۍ مقررې کړې او د زرو سپرو ديوې رسالې د عنايت وعده يې هم ورکړه، خو مرض يې ورځ تربلې شدت پيداکاوه، تردې چې شجاع الدوله د ۱۱۸۸ هـ ق کال د ذيقعدې په ۲۴-

مه د ۱۷۷۵ م کال د جنوری په ۲٦ مه ومړ او دده مشرزوی آصف الدوله یې پر ځای کښینوست.

آصف الدوله د فیض آباد پر ځای لکهنو خپل پایتخت وټاکه؛ د نورو امراوو او وزیرانو په څیر محبت خان هم له آصف الدوله سره یوځای له فیض آباده لکهنو ته راغی؛ وایي چې قلندر بخش جرآت او خواجه حسن هم پدې سفر کې له محبت خان سره ملګري وو.

له شاهي روایاتو سره سم آصف الدوله د خپلې تخت نشینی په ویاړ غریبانو او مسکینانو ته خیراتونه او صدقې وویشلې او ورسره یې څه بندیان هم خوشې کړل، خو د نواب حافظ رحمت خان او دوندي خان له کورنیو سره یې هیڅ رعایت ونه کړ، بلکه ددوی سرکاري اخراجات یې بندکړل او برسیره پر دې یې د محبت خان او ذوالفقار خان د نیولو او بېرته د اله آباد کلاته د لیږلو اراده هم درلوده، خو د سالار جنګ دورور مرزا علي په مشوره آصف الدوله خپله دا ارداه پریښوده.

آصف الدوله د حافظ رحمت خان د کورنۍ جایز حقوق هغوی ته نه ورکول، خود ایسټ انډیا کمپنۍ په مداخله او دجان برسټ، په منځګړ توب مجبور شو چې د حافظ رحمت خان اولادې ته د کال ٦۵ زره او د دوندي خان اولادې ته د کال ۳۵ زره روپۍ منظورې کړې.

تردې وروسته محبت خان په لکهنو کې داودهٔ د سلطنت د وظیفه خوار او د کمپنۍ دوسیله دار په توګه استوګن شو. ( د اسرار محبت مقدمه ۱۱-۱۲ مخونه) د نواب حافظ رحمت خان ترمړینې وروسته محبت خان د خپلې کورنۍ مشرو.

( پنځه دیرش )

نواب الله یارخان دعجایب اللغات په مقدمه کې په دې باب کښلي دي :

(( اخوی صاحب مشفق قدردان، سراپا شفقت و احسان نواب محبت خان که به مصحلت وقت اقامت در شهر لکهنو انداخت، بعد از شهادت خان شهید رئیس این خاندان بودند)) ( د عجایب اللغات مقدمه ).

**په لکهنو کې د محبت خان مشاغل** :

داسې ښکاري چې نواب محبت خان په لکهنو کې له استوګن کېدو وروسته ټول ژوند د کتابونو په مطالعه، لیکلو، لوستلو او شعرویلو تېر اوه؛ له شاعرانو، ادیبانو او علما وو سره یې ناسته ولاړه او او مراوده درلوده او د لکهنو په علمي او ادبي محافلو کې محشور و.

د ( حیات حافظ رحمت خان ) مؤلف الطاف علی بریلوي کښلي دي چې نواب محبت خان ته د شعر وسخن شوق غالباً، په لکهنو کې له میشتید و وروسته پیداشوی دی ( د ۳۷۲ مخ حاشیه ) مګر ماته داسې نه ښکاري، ځکه د خپل پلار د شهادت کومې تاریخي ټوټې چې ده په څلورو: عربي، فارسي، اردو او پښتو ژبو ویلي دي، د اښکاروي چې د نواب محبت خان د شعرویلو استعداد په لکهنو کې له میشتیدو پخوا غزونې کړې وې او پدې لاره د مخه روان شوی و؛ له شاعرانو او ادیبانو سره یې روابط تردې وخته پخوا قایم شوي وو. د نواب د شاعرۍ په باب د ( ګلزار ابراهیم) دالیکنه : (( او در سن شعور شعرو شیوهٔ سخنوری را مرغوب داشتند)) موږ ته داراښیي چې محبت له تنکۍ ځوانۍ د شعرویلو او سخنورۍ خواته رغبت درلود او د خپل استعداد د ازمیښت پرمیدان ورګډشوی و

داخبره باید ضرور ومنو چې په لکهنو کې د استوګنې پرمهال ده ډېر فارغ وخت درلود چې مطالعه وکړي؛ په ادبي محافلو کې برخه واخلي، شعر

ووايي او آثارو وليکي، ده خپل ټول آثار په لکهنو کې بشپړ کړي دي.

محبت خان د څلوروو ژبو شاعر او ليکوال و، څه چې لـه ده مـوږ تـه راپاتې دي، نه يوازې د پښتو، بلکه د سيمې د ځينو نورو ژبو د ادبياتو په تـاريخو کې ده ته د مطالعې ځاى ورپه برخه کوي اوس نو داوخـت رارسـيدلى دى، چـې دده را پاتې آثاردر وپيژنو او خبرې باندې کړو.

(۱) **عربي آثار**:

د ځينو تاريخي آثار و کښنې او دده موجـود و پښـتو، فارسـي او اردو آثارو مطالعه دارابښيي چې نواب په عربي ژبه تسلط درلود او پدې ژبه يې شعر هم وايه، گلستان رحمـت وايـي چـې محبـت خـان پـه عربـي ژبـه شـعر ويلـى دى؛ الطاف علي بريلوي د ( حيات حافظ رحمت خان) په ۲۸۸ مخ او ۳۷۴ مخ کې د محبت خان دوې عربې منظومې ټوټې راوړې دي، چې يوه يې د حافظ رحمت د شهادت تاريخي ټوټه ده او د نواب الله يار خان د عجايب اللغات په مقدمه کـې هم راغلې ده، نور عربي آثار يې ماته نه دي ښکاره.

دوکتور سيد لطيف اديب په خپل اثر ( چند شعراى بريلى) کې ويلي دي چې داناډيا آفس لايبريرى ( اوس برټش لايبريري) د مخطو طانو پـه شـعبه کـې د محبت خان د کلياتو يوه نسخه موجوده ده چې په دې نسخه کي د محبت خـان له اردو او فارسى کلام سربيره دده زيات پښتو او عربي اشعار هم راغلي دي. دا خبرى داسرارمحبت په مقدمه( ۱۴ مـخ )کـې هـم اخيسـتل شـوې دي. تـردوى دمخه مفتي ولى الله هم په انډيا آفـس لايبريـرى کـې د محبـت خـان د ديـوان د نسخې د موجوديت يادونه کړې ده ( عهد بنگش ۴۱۳ مخ) او ما په خپـل اثـر ( په هند کې د پښتو ژبې ..) ( ۴۰ مـخ ) کـې د مفتـى ولـى الله خبـرې د د يـوان ريخته په برخه کې اخيستې دي ، نه هغه وخت او نه اوس د انډيا آفس لايبريـرى

( اوه ديرش )

فهرست راته میسر و، چې مې ددې خبرې زیات تحقیق کړی وای. اوس صرف د همدغو خارجي منابعو په استناد دومره ویلای شو، چې د انډیاآفس په نسخه کې – که وي – د نواب محبت خان عربي شعرونه هم راوړل شوي دي.

د یادونې وړ ده، چې د لندن په انډیا آفس لایبریری کې د محبت خان د کلیات دنسخی د موجودیت تایید دوکتور شاه عبدالسلام په خپله مقاله ( دیوان نواب محبت خان محبت ) کې کړی دی او دایې هم ویلي دي چې پدې کلیات د عربی، فارسی، پښتو او اردو شعرونه راغلي دي.

(۲) **اردو آثار** :

تر اوسه پورې د نواب محبت خان دوه مستقل د اردو اثره لیدل شوي دي:

الف : اردو دیوان : ددې دیوان یوه خطی نسخه په رامپور رضا لایبریری کې خوندي ده، چې ټول مخونه یې ۲۲۰ دي او په هر مخ کې یې دوې غزلې راغلې دي. دا دده د اردو غزلومجموعه ده. د ګلزار ابراهیم د لیکنې له مخی دا دیوان په ۱۱۹۶ هـ ق کال تدوین شوی و؛ په ګلزار ابراهیم کې راغلی دي: (( کلا مش درسایر اقسام نظم ریخته مدون است)) د انګلستان د بودلیان لایبریرۍ کې چې دده د اردو دیوان کومه خطی نسخه شته پدې نسخه کې غزلې، رباعیات، قصیدې او قطعات راغلي دي او په پای کې یې د اسرار محبت مثنوی هم شته. دوکتور نسیم احمد لیکلی دي چې محبت خان د اردو شاعرۍ په ټولو مروجو اصنافو کې خپله طبع ازمویلې ده. دده د اردو دیوان یوه خطی نسخه په بنګال ایشیاټک سوسا یټی کې هم شته. دده د اردو دیوان منتخبات ډیر و تذکرو کې راغلې دي، مګر بشپړ نه دی چاپ شوی.دی په اردو شاعرۍ کې د جعفر علی خان حسرت شاګردو ( دانشنامه، ۴ / ۲۱۸۶ ) اما میر حسن په تذکرهٔ شعرای هندی کې لیکلی دي چې له خواجه حسن او میا حسرت څخه

( اته دیرش )

اصلاح اخلي، زیاتره پخواني تذکره لیکونکي او اوسنی تذکره نګاران په اردو شاعرۍ کې د محبت خان استاد حسرت بولي، الطاف علی بریلوي دده اردو کلام سلیس او روان ښوولی دی.

ب : اسرار محبت : د نواب محبت بل مستقل اردو اثر، اسرار محبت نومیږي. دا اثر په اصل کې د هندوستان په فوکلور پورې مربوطه کیسه ده، چې نواب د رچرود جانس انګریز په غوښتنه په اردو مثنوی کې نظم کړې ده. دامثنوی په ۱۱۹٦ هـ ق کال کې نظم شوې، خو له بیا کتنې یې په ۱۱۹۷ هـ ق کال کې فارغ شوی دی او داکال یې په خاتمه کې هم د نظم کال ښوول شوی دی. ددې مثنوي ټول بیتونه ۵۹۲ دی؛ دا مثنوی یوځل ډیر پخوا به ډبرین چاپ، چاپ شوې ده. تحقیقی متن یې دخطی او چاپي نسخوله مخې دوکتور نسیم احمد برابر کړ دی او په ۱۹۹٦ م کال د انجمن ترقی اردو (ی) هندله خوا په دهلی کې چاپ شوی دی. پر دې متن دوکتور نسیم احمد یوه علمی او تحقیقی مقدمه هم لیکلې ده، چې زما د معلوماتو له مخې د محبت خان په باب د شویو کارونو په لومړي صف کې د دریدو ځای لري. د نوموړي دوکتور نسیم احمد وینا ده، چې : د اردو ادب په تاریخ کې د محبت خان نوم د اسرار محبت د مثنوی په وجه ژوندی او ځلیدونکی دی ( د اسرار محبت مقدمه، ۱۴ مخ ).

**(۳) فارسی آثار** :

نواب محبت خان د فارسی ژبې لیکوال او شاعر دی، مانداچې په فارسی یې نظم او نثر دواړه لیکلی دي : په عربي، اردو او پښتو ژبه مونږ دده یو ازې منظوم آثار لرو، د نواب په فارسی آثارو کې معلوم کتابونه دادي:

الف : دیوان : د محبت خان د فارسی دیوان د یوې غنیمت نسخې په باب اطلاعات مونږ ته دوکتور شاه عبدالسلام راکوي ؛ دانسخه په رامپور رضا-

لایبریري کې خوندي ده.

دده د فارسي دیوان دانسخه ۶۷۳ مخونه لري او په دې بیت پیل شوې ده:

عطاکردی چوگویایی خداوندا محبت را بذکرخویشتن کن هرنفس گویا محبت را

د رامپور نسخه پر ۵۸۵ غزلو او ۱۹ قطعو مشتمله ده؛ دانسخه نور شعری ډولونه نه لري؛ په پای کې یې دا عبارات راغلي دي: (( قد تم هذا الدیوان من تصنیف نواب مستطاب معلی الالقاب ذوالشوکت و الاقبال صاحب الحشمة و الاجلال فرمان روای کشور معانی، کشور کشای ممالک سخندانی، حافظ الملک محبت خان، بهادر دام اقباله وضاعف اجلاله به خط اضعف العباد نذیر الدین حسن شایق فی نصف محرم الحرم ۱۲۱۰)).

وایي چې ترلوړې افتتاحیه لیکنې وروسته، د دیوان د تکمیل تاریخی قطعه راغلي ده چې د مقاله نگار د دوکتور شاه عبدالسلام په قول له وروستی مسری : ( گفتا که بگو و الادیوان محبت خان) څخه د دیوان د بشپړ تا به تاریخ راوزي.

د محبت خان د فارسی دیوان یوه بله نسخه د انگلستان په بودلیان لایبریری کې خوندي ده. د دانشنامهٔ ادب فارسی په قول دانسخه د محبت خان په خپل خط ده، چې په ۱۲۱۵ هــ ق خطاطی شوې او شاعر خپل دوست گوراوزلی ته په لکهنو کې ورکړې ده. په دې نسخه کې، لکه د رامپور نسخه غزلې اولړ ټوټې راغلې دي.

د فارسی دیوان بله خطی نسخه یې تر اوسه ماته نه ده معلومه، دده د فارسی اشعارو منتخبات پدې وروستیو دووسو و کالو کې په تذکرو کې چاپ شوي دي، خو فارسی دیوان یې بشپړ نه دی چاپ شوی، دی په فارسي شاعری کې د میرزا محمد فاخر مکین شاگرد بنوول کیږي . ( دانشنامه ۲۱۸۶/۴)

( خلوینبت )

الطاف علی بریلوی لیکلي دي چې دده په فارسی شاعری کې بلاغت او مضمون آفرینی دلیدو وړده. د محبت خان فارسی غزل د قدیم فارسی غزل روایات خپل کړي دي او کره وره یې په دولسمه پیړی کې دهند د فارسی شاعری دي، پر ځینو غزلویې د تصوف رنګ غالب دې.

پروفیسور شریف حسین قاسمی په خپله یوه مقاله ( فرزندان حافظ رحمت خان کی فارسی تصانیف ) کې د نواب محبت خان د فارسی شاعری د خصوصیاتو د څرګندولو په ترخ کې داهم ویلي دي: (( د محبت خان کورنی چې له کومو لوړو څوړو تېره شوه، د دِ غو حوادثو نقش دده پر ذهن او دماغ ډیر ژور دی، دده په اشعارو کې ددې حوادثو اغیزې ډیرې څرګندې دي)).(۴۵)

پروفیسور قاسمي د خپلې دغې مدعاد اثبات لپاره ده له فارسي دیوانه دا لاندې بیتونه انتخاب کړي دي :

اهل خرابه را به تماشا چه احتیاج
ویران دلي چو هست به صحرا چه احتیاج

نفع و ضرر نماند به بازار او مرا
سودم زیان شده است به سودا چه احتیاج

چشمم ای ماه شب وروززبس گریان است
خلق گویند که امسال عجب باران است

در محبت تو مرا آه ندانی صادق
باوجودی که مرا نام محبت خان است

ز سرگذشت محبت هر که پرسیدم
به عارض اشک پیاپی چکید و هیچ نگفت

( یوځلویښت )

اروابښاد استاد حبیبی په فارسی شاعری کې دده استادي منی ( نومور کي مورخين، ۳۷ مخ ).

دده دالا ندې فارسی غزل دلوستو ده :

| | |
|---|---|
| گر کشش من اثر داشتی | یار به سویم گذری داشتی |
| آن که جهان را به نگه زنده کرد | کاش به ما هم نظری داشتی |
| زیستی بی تو اگر مثل تو | مادر گیتی پسری داشتی |
| دانهٔ مهرار بدلش سرزدی | نخل امیدم ثمری داشتی |

گررخت از پرده برون آمدی
شام محبت سحری داشتی

ب : آمدنامه : په حیات حافظ رحمت خان او عهدبنګش کې یې راوړي دي، چې محبت خان د آمدنامې په نامه د فارسی ژبې د قواعدو یو کتاب لیکلی و. ما خپله داکتاب نه دی لیدلی، دا کتاب ما صرف په دې لاسوند چې د فارسی ژبې قواعد ښيي، په فارسي آثارو کې وښود، کیدای شی د ارائې ژبه یی اردو وي.

ج: ریاض المحبت : د پښتو یو فرهنګ دی، خو دا رائې ژبه یې فارسي ده، نوځکه مې دده په فارسي آثارو کې راووړ.

نواب محبت خان د ریاض المحبت په مقدمه کې ددې کتاب معرفي داسې کړې ده:

(( این رساله مشتمل بر دو باب، باب اول در مشتقات و باب ثانی در متفرقات و هر واحد متضمن بربیست و هشت روضه و هر روضه منقسم بر فصول و ابحاث هر قدر که باشند .))

له مستشرقانو نیولی تر ډیرو پخوانیو او اوسنیو څیړنکیو پورې ددې کتاب په باب مختلفې خبرې شوې دي، چاګرامر او د قواعدو کتاب، چا فرهنګ

( دوه خلويښت )

چا ګرامر او فرهنګ او ځینو بیا درېیمه برخه هم ورپورې تړلي ده او درېیمه برخه یې ورته تاریخي ښوولې ده.

د نواب محبت خان ورور، نواب الله یار خان دعجایب اللغات په مقدمه کې لیکلي دي: (( چنانچه در قاعدهٔ این زبان ( پښتو ) کتابی که موسوم به ریاض المحبت است))

پروفیسور ډورن چې د خپلې خریستوماني (( د پښتو اشعارو منتخبات)) په مقدمه کې پر ریاض المحبت کوم انتقاد کړی دی، دا انتقاد د ژبې په ګرامري مسایلو پورې اړه لري، نه په لغوی، ده لیکلی دي: (( ریاض المحبت ... دا اثر لکه څومره چې د ژبې له اصلی ویونکي څخه هیله کیدای شي دافغاني ژبې په باره کې بشپړ او ډاډ وړ معلومات نشي ورکولای او ددې ژبې د افعالو پر کړکیچن او مشکل جوړښت باندې دړناچولوپه برخه کې مناسب خدمت نشي کولای...)) [۴۶] د دورن دا لوړې خبرې خپله پدې شاهدي ورکوي چې دی ریاض المحبت ته د ګرامر په ستر ګه ګوري.

هانری جارج راورټي د خپل پښتو ګرامر په مقدمه (۴۷) کې اساساً ریاض المحبت د عجایب اللغات په څیریو فرهنګ ښيي. خود ریاض المحبت کومه لړ معرفي چې یې کړې ده،هلته ئې ویلی دي : (( دا یوغټ او جامع کار دی، په ځانګړې ډول دا کتاب د پښتو افعالو ( صرف) ته وقف شوی دی، دا افعال د خپلې بې قاعده ګۍ له امله نهایت ګران دی )).

سرمحقق عبدالله بختانی د نواب محبت خان د دوه سوم تلین د سیمینار په مناسبت د مقالې لپاره، ددې کتاب مطالعه کړې ده او دخپلې مطالعې په نتیجه کې د ریاض المحبت په باب وایي :

د ریاض الحبت دواړي برخې ( لومړی باب او دویم باب) یې دیوه

( دري څلوېښت )

فرهنګ يا لغتنامې دوه بابه دي.

په لومړی باب کې يې ( چې مؤلف مشتقات بولی) اوترې مشتق شوي افعال او صفات يې توضيح کړي دي او په دويم باب کې چې د مؤلف په قول متفرقات دي، اکثر اسماء، صفات او لږ مصادر او افعال هم راوړي او د دويم باب خصوصيت دادی چې په دې باب کې مؤلف د افغانی اقوامو او اماکنو د نومونو معرفی او لږ و ډير شرح کوی، (۴۸) رياض المحبت په پيل کې يوه مقدمه لري، چې ترحمد و نعت او د کتاب د تاليف د اسبابو له ښوولو سربېره يې له کتاب سره تړلی ځينې ضروري مطالب پکې توضيح کړي دي.

لنډه داچې رياض المحبت په لوی سرکې د فرهنګ په بڼه ترتيب شوی دی، لغات يوازی معنی شوي نه دي، بلکه د هر لغت ګرامری خصوصيات يې هم ښوولي دي، دې کارته يې په لومړی برخه کې ډيره توجه کړې ده، ياپه بله وينا رياض المحبت يوداسی فرهنګ دی، چې فرهنګ نګار د مشتقاتو په باب کې د خپلو راوړيو توکيو ګرامری تجزيه او تشريح په داسی ډول کړې ده، چې د فرهنګ دا برخه يې د عملی تشريحی ګرامر درجې ته رسولې ده، همدا علت دی،چې پروفيسورميکنزي داکتاب ګرامروفرهنګ بللی دی.سرمحقق عبدالله بختانی هم په خپله مقاله کې دې موضوع ته داسی اشاره کړې ده : ((مؤلف در اکثريت لغات صيغه ها و اشکال صرفی کلمات را از قبيل جمع، مذکر و مؤنث، زمانه در فعل، صفت و غيره را نيز شرح داده و ضبط نموده است و باذکر خصوصيتهای ګرامری قاموسش را از دايرۀ ترجمۀ لغت به لغت فراختر ګردانيده و خواننده را با خصوصيتهای ګرامری کلمات نيز آشنا ساخته است)) ( خراسان، ۵۱ ګڼه، ۳۷-۳۹ مخونه) په رياض المحبت کې دموادودتشريح ډول داوړ دی:

اچول : بآ الف ممدو ده وجيم عجمی وو و هر دو مفتوح ولام ساکن

به معنی انداختن، مصدر متعدی است ؛ نه اچول بزیاتی نون نفی مفتوح به سرکلمه باقی حروف حرکات مذکوره به معنی نه انداختن مصدر منفی است .

بحث فعلی ماضی معروف و مثبت و منفی : اچولی و به معنی انداخته بود، صیغهٔ مفرد مذکر غایب مثبت؛ اچولی نه و، نینداخته بود، صیغهٔ مفرد مذکر غایب منفی . اچولی وو، انداخته بود چیزها را.

استاد رښتین یو ځای لیکلی دي چې د ریاض المحبت لومړۍ برخه :
(( د هر مصدر ټول مشتقات او افعال بیانوي؛ ددې ګرامریو عجیب صفت دادی چې اصطلاحات یې داوسني وخت سره سم دي. د مثال په ډول: ختلی به وي ماضی مشکوک فیه بولي، ختلی دی قریبه بولي؛ وخوت مطلقه بولي))
ریاض المحبت محبت مؤلف په ۱۲۲۱ هـ ق کال پشپړ کړی دی او د بشپړ تا به تاریخی قطعه؛ مؤلف د کتاب په پای کې ویلې ده، چې ۱۲۲۱ هـ ق کال ترې را وزی. همداد کتاب د تالیف کال دی، بله توجیه پکې زما په فکر ځای نه لري.
د پښتو نثر هنداره ( ۱۶۸ مخ )کې چې درياض المحبت دليکلو کال ۱۲۲۰ هـ ق راغلی دی غالباً طباعتي تېروتنه ده، ریاض المحبت تر اوسه نه دی چاپ شوی، درې خطی نسخې یې په هندوستان کې [۴۹]؛ یوه یې دروسیې پتربورګ د ختیځپوهنې په انستیتوت [۵۰] او څلورېې په برټش لایبریري کې خوندې دي، چې د برټش لایبریرۍ تر تاسیس د مخه له هغو څلورو څخه درې په انډیا آفس لایبریري کې او یوه په برټش میوزیم کې وه [۵۱]

(۴) **پښتو آثار** :

دده په مستقلو پښتو آثارو کې تراوسه دده یو دیوان موږ ته معلوم دی؛ دا دیوان او دده پښتو آثار، لکه څنګه چې ښایې تراوسه په پښتو څېړنو کې نه مطرح شوي او نه څېړل شوي دي. په پخوانیو هندي تذکرو کې چا د نواب

محبت خان د پښتو شاعرۍ یادونه نه ده کړې؛ دده د کورنۍ له ځینو لیکوالو پرته چا دا ویلي هم نه دي چې نواب پښتو شعرونه ویلي دي، په هند کې اوسیدلي پښتانه قاسم علی خان افریدی ( ۱۲۴۱ هـ ق مړ) په خپل دیوان کې د نورو پښتو شاعرانو ترڅنګه محبت خان هم داسې یادکړی دی :

که نواب محبت خان که کریم خان وو

او که بل و کاظم خان معروف شیدا ( ۲۵۲)

پدې کې شک نشته چې د پښتني فرهنګ ته مربوطو آثارو کې دده په باب ځینې متفرقې یادونې راغلې دي، خودی تراوسه په پښتو منظمو تذکرو کې دیوه پښتانه شاعر په توګه نه دی معرفي شوی او نه یې د پښتو کلام نمونې خپرې شوې دي .

څنګه چې ما د مخه ددې مقدمې په پیل کې وویل، زموږ ځیړنو کې تر اوسه، دده یوه پښتو غزله او یوه تاریخي قطعه – چې یې د خپل پلارپرګ ویلې – او د میکنزي له فهرسته دده دیوان د پیل دوه بیته چاپ شوي دي؛ د پښتنو په فرهنګي حلقو کې د نواب د پښتو شاعرۍ دنه مطرح کیدو او دده له شاعرۍ د خلکو دنه خبریدو و یوه عمده او اساسي دلیل دادی چې دده د پښتو دیوان نسخې نه دهند په نیمه وچه کې اونه افغانستان کې لیدل شوې دي.د خوشحالۍ خبره ده، چې د افغانستان د علومو اکادمي دا توفیق وموند، چې دده پښتو دیوان چاپ کړي اودپښتو شعرعلاقمندان او ځیړونکې دده له پښتو وینا او افکارو خبر کاندي .

د نواب محبت خان د دیوان یوازینۍ معلومه نسخه د انګلستان دبودلیان د لایبریري د خطي نسخو په مجموعه کې ساتل کیږي [۵۳]

د دیوان دانسخه به غالباً د مؤلف په خپل خط وي دا نسخه یې د ۱۸۰۱ م کال داکتوبر په لومړۍ ورځ د سرګور اوزلی ته په لکهنو کې اهداء

کړې ده. د نسخې په پای د ګور اوزلي یادښت په انګریزي ژبه راغلی او لاندې ترې په فارسي لیکل شوي دي: « دیوان محبت در زبان پښتو، تصنیف نواب صاحب مشفق کرم فرما نواب محبت خان، پسر نواب حافظ رحمت خان مرحوم از دست مصنف به این جانب مرحمت شد» رقیمهٔ ګور اوزلی.

پدې نسخه کې د شاعر (۴۲۷) غزلې او په پای کې دوې چاربیتې راغلې دي؛ چاربیتی د پښتو ولسي شعریو ډیر مشهور شعری ډول دی، چې پښتنو له خانه سره هند ته هم وړی دی؛ کله چې د هند پښتنو خپله ژبه له لاسه ورکړله او اردو یې خپله کړه، نوبې بیاپه اردو کې هم چاربیتې وویلې، د هند په اردو شاعرۍ کې د چاربیتې صنف پښتنو شاعرانو رواج کړی دی.

د نواب محبت خان په غزلو کې زیاتره - د غزل له معمول قدیم شرقي معیار سره برابرې - دلړو بیتو لرونکې غزلی ډیرې دي او لږ پکې د ډیرو بیتو لرونکې اوږدې قصیده وشمه غزلې دي.

که د قافیو له ځینو تېروتنو – چې کله کله دایطاعیب ځینې مردایږي – تیرشونورنو داغزلې د دولسمې پیړۍ دا و اخرو او د د یار لسمې پیړۍ دا وایلو پښتو شاعرۍ کې د مروج غزل خوند رنګ لري او په هندکې پیداشوي او لوی شوي دې پښتانه شاعر، د شرقي شاعرۍ او د پښتو شاعرۍ در وایاتو حامله پښتو شاعري کړې ده.

دده د دیوان له مطالعې ښکاري چې ده د پښتو د ځینو زړو شاعرانو د دیوانونو مطالعه کړې وه خود ده په خپله یوه غزله کې یوازې د مرزا، خوشحال بابا او عبدالرحمن بابا یادونه په دې ډول کړې ده :

( اوه خلوینښت )

ځخو پوه شه په کـلام د شاعـــرانو
چې دهرشاعر په څه رنګه مـــقال دی

نصحیت رنګین رحمن لري په شعرکې
او مـــرزا لـــه تـــصوفه مالا مال دی

دخوشحال په سفینه څـــخو رندي ده
له شکوې دزمانې څه پکې قـــال دی

مـــحبت پـــه انداز چې ویـــل کاندي
هم رحمن دی،هم مرزادی،هم خوشحال دی

شـــاعر پـــه خپلـــه لـــوړه وینـــا کـــې صـــادق دی، د رحمـــان بابـــا ( ۱۰۴۲-۱۱۲۸ هـ ق ) نصایح او اخلاقی مضامین، د مرزا په څېر د عرفان پـه خم کې رنګېدلې خبرې او د خوشحال ( ۱۰۲۲ – ۱۱۰۰ هـ ق ) ځینې رندانه شو خې اومستۍ د محبت په دیوان کې ځای ځای خپل ځان ښکاره کوي.

د رحمان بابا د غزلو په زمکه ویل شوې غزلې د محبت پـه دیـوان کـې ډیرې موندلې کیږي؛ د خوشحال بابا او د مرزا له فکره متاثره غزلې هم لري. ده یوازې د خوشحال درندانه او مستانه غزلو په زمکه غزلې ویلې دي خو د بابـا لـه فکره، انقلابي روحیې او سترو عالي لوړو مفکورو نه دی متاثر؛ پـر محبـت خـان راغلیـو واقعـاتو او المیـو تـه پـه پاملرنـه بایـد دی د خوشحال لـه انقلابـي او عصیا نګرې شاعرۍ ډېر متاثروای، خود هند پرزمکو دیواو سیدلي شـاعر نـه دا توقع څه بعیده ښکاری او ددې بعد یود لیل هم ښایي شاعر تـه د خوشـحال بابـا هسې محیط او ماحول نه موجودیت وبولو.

د نواب محبت خان په دیوان کې د رحمان بابا د دیوان د لاندې غزلـو په زمکه ویل شوې غزلې موندلې کیږي :

( اته څلویښت )

رحمان بابا :

هــــغه ژوی چې مین وي څــــه به خوب کا
چې مجنون غونډې کړمن وي څه به خوب کا

*   *

چې په سترګو کې يې خاروي څه به خوب کا
چې په زړه يې غم ديار وي څه به خــــوب کا

*   *

کــــه په ګنج د شــــاهي فــــخر شــــهريار کا
عــــاشقان يې د دلــــبرو په رخــــسار کــــا

*   *

عــــاشقي مــــې يې پــــه زړه وکــــړ ګــــذربيا
بيلــــتانه مــــې لمــــبې بلــــې کــــړې په سربيا

*   *

زه داهــــسې ديوانه و مــــجنون چــــا کړم
له رواجــــه له رســــومه بــــيرون چــــا کړم

*   *

کــــه نــــظر کا څــــوک په کار د درويشــــانو
مــــدام او ســــه خــــريدار د درويــــشانــــو

**محبت خان :**

چې په خيال يې ستا جمال وي څه به خوب کا
چې جمال دې يې په خيال وي څه به خوب کا

*   *

( نه څلوېښت )

د گلزار ښښتن که حظ په خپل گلزار کا -
محبت د گلرخانو په رخسار کا

*

گدایان دیار د در په گدا يي کې
هغه فخر په شاهی چې شهریار کا

*

می د مینې کړم له ځانه بې خبربیا
او د عشق لنبې مې بلې کړې په سربیا
نه پوهیږم چې له عقله بیرون چا کړم
چامې هوش له سره یوړ مجنون چا کړم

*    *

همیشه دی تودبازار د درویشانو    مدام اوسه خریدار د درویشانو

د خوشحال د رندانه غزلو پرپله ویل شوې غزلې:

خوشحال بابا :

باغ وای د گلونو پکې ناست وای زه اوته
گل وای غوړیدلې باندې نماست وای زه اوته

*    *

توره چې تیریږې خو گوزار لره کنه
زلفې چې ولول شی خو خپل یار لره کنه

*

ما خوب لیده په خدای رو چې زه ته سره پخلایو
خوږې خوږې خبرې د زړه حال وبله وایو

*

ساقی تل به دا ساعت وي کــه به نه وي

له جـــهان به مـــهلت وي کـــه به نه وي

*

خسته زړه مې چې نګار هوری هورې وي

هـــــر بلبل مې چې بهار هورې هورې وي

*

خوږې شونډې دې شکرې نه دي څه دي

کښلي غـــابښ دې مرغلرې نه دي څه دي

**محبت خان :**

خوب مې لید بیګاه چې سره ملاست یوزه وته

کـــله په کټ څملو کله ناست یوزه او ته

ژبه چې پـــیداشوه خـــو ګفتار لره کـــنه

خدای چې زه ناطق کړم خو اشعار لره کنه

باري زه اویار د خدای له فضله چې پخلایو

هــره شپه کښینو ســره در از خــبرې وایو

زماستا به دا صـــحبت وي کـــه به نه وي

لـــه روز ګاره به مهلت وي که به نه وي

عاشقان چې معشوقان هورې هورې وي

بلبلان چې ګلستان هورې هـــورې وي

*

( یوپنځوس )

ستا خبرې که شـــــکرې نه دې څه دي

کـــه شکرې ستا خبرې نه دي څه دي

محبت خان چې د رحمان بابا له کلامه کوم برداشت درلـود، لـه خپـل برداشت سره سم یې د رحمن بابا د ځینو- دده پـر ذوق برابـر وغزلـو پـه زمکـه غزلې ویلې دي، خود خوشحال یې واقعاً هغه مستې او ډیرې رندی او له شـوخی ډک غزلې خوښې کړې او د هغو پرزمکه یې غزلـې ویلـې دي، امـا کـه سـړی د دواړو ویلي غزلې مقایسه کړي، نو د محبـت هغـې ورتـه نشـی رسـیدای، خـو شاعرانه ذوق یې د ستاینې وړ دی.

ما دلته د نمونې لپاره څوبیلګې راوړي، که نـه وي د محبـت خـان پـه ډیرو غزلو او بیتونو کې د الفاظو، تر کیبونو او شـعری جوړښـتونو د انتخـاب او مضمون له پلوه د دواړو بابا ګانو د غزلو او اشعارو روح چلیږي، اما شاعر خپله بیابله ادعا لري :

که خوشحال دی که رحمن دواړه بیان کوي د عشق

له دې دواړو ما اشــــعار د مـــحبت کړه انتخاب

*　　　*

قـــدردانه د مـــحبت به د کـــــــلام وو

که خوشحال ژوندی په دهر یارحمن وی

د محبت خان په دیوان کې عرفانی مضامین هم شته، خو دده په دیوان کې بیان شوې دا مفکورې هغه کړه وړه لري چې د روښایي شـاعرانو، لکـه ارزانـی، مرزا، دولت، مخلص، واصل او نورو په کلام کې یې مومو.

ارزاني وايي:

چې بې هسک خشک وتري ده
کوري غواړه بهتري ده
نحن اقرب الیه
نزدې من حبل الوريده

دولت ويلي دي:

مشرکان له نحن اقرب خبرنه شوه
حق وهر چاته نزدې حبل الوريددی

نواب محبت خان وايي:

عبث لرې لرې کوې تلاش
تر شهرگه ده شها قرينه ستا

ديوې بلې عرفاني غزلې مطلع يې داده:

يار د زړه په ستر گو وينه
که ديدار غواړې حق بينه

همداراز د دولت لواني ددې لاندې غزلې:

« زه اول هم ديوانه وم ديوانه يم لاتراوسه
له دلداره همخانه وم، همخانه يم لاتراوسه » (۵۶)

په زمکه هم محبت خان يوه غزله ويلې ده، چې مطلع يې دلته راوړم :

چې د مينې ديوانه وم ديوانه يم لاتر اوسه
پدې مې چې مستانه وم مستانه يم لاتراوسه

دلته دا يادونه ضروري گڼم چې که دنواب محبت خان په ديوان کې د

مرزا او دولت د غزلو په زمکه ویلې شوې غزلې مومو او یابې په عرفاني غزلو کې د روښانې تصوف رنګ وینو، داخبري ددې معنې نه لري چې ګویا محبت خان روښاني شاعرو،بلکه د هغې تصوفي لارې پیرو و چې درو ښانیانو تصوفي لارې ته څرمه وه، څینو نورو پښتو شاعرانو هم داډول افکار په خپلو اشعارو کې رانغښتي دي کیدای شی دا افکارئې یا دروښاني آثارو د مطالعې له لارې او یا هم د تصوف د نورو منابعو له مخې خپل کړي وي.

له یادوشویولرغونیوشاعرانوسربیره،ده دخپل نومیالي پلارحافظ رحمت خان دشاعرۍ مطالعه هم کړې وه اودخپل پلار یوه غزلهئې تضمین کړې هم دی،لکه دا لاندې غزل:

نن دپلار غزل رایادشه زړه مې وایي چې تضمین کړه

هغه کسر دادی واوره چې تضمین یې له ما کیږي

(( وحافظ ته دعا کانې چې هورې له سختو خلاص شي

ډیرنجات د ګنهکارو د مومن په دعا کیږي))

ده په خپل پښتو دیوان کې د شرقي شاعرۍ له عنعنې سره سم په کافي اندازه عربي او فارسي ترکیبونه او الفاظ راوړي دي، چې په عربي او فارسي ادب کې دده د مطالعې او پردواړو ژبو دده د لاسبري ښکار ندویې کوي.ده خپله شاعري یې د فارس د بلبل او دهند د طوطي ( امیر خسرو دهلوی) له شاعرۍ سره همسره ګڼلې ده :

عندلیب د فارس یا طوطي د هند دی

ډیر محظوظ د محبت شوم له کلامه

د محبت خان دپښتو شاعرۍ یوه بله ځانګړنه داده چې د شرقي فرهنګ ډیرې مشهورې اسطورې یې په خپل دیوان کې ځای ځای راوړې دي.

د محبت دا دیوان – چې اوس ستاسې مخې ته پروت دی – څینې مستانه غزلې

او د ځینو غزلو جانانه بیتونه یې په ربښتیا چې سرې محظوظـولای شي او هـر وخت ترې دیوښه شعر خوند اخیستلای شي.

**د دیوان د ترتیب په باب څوخبرې** :

کله چې د محبت د دیوان فوټـو سټیټ نسـخه تهیـه شـوه د نسـخې د سمون او چاپ ته برابر ولو وار راورسید. څنګه چې د متن نورې نسـخې نـه وې او د تهیه شوي فوټوسټیټ نسخې په هـر مـخ کـې د سـمون او حاشـیو د لیکلـو امکانات وو، نومې لازمه وبلله چې همدا فوټوسټیټ نسخه سمه او دکمپوز لپـاره واستوم.

د متن واحدې نسخې او د فوټو سټیټ د یوې ښې نسخې موجودیت که زه له یوې خوا د نسخې د نقل له مشکله وژغورلم- که بـه نسـخه دوې یـا درې وای نو مجبور وم چې متن پربل کاغذ نقل کړم — نوله بلې خوایې له معاصر روش سره د ردیفولوربړه هم را دمخه وه.

دا دیوان هم د پخوانیو شرقي دیوانونـو پـه دود او ډل شـوی و، چـې د ډیرو ردیفونو غزلې یې له معاصر دود سره سم د یاګانو ردیفوته تللې؛ نوزه مجبور وم چې لومړی ټوله نسخه په معاصر ډول ردیف بندی کړم؛ ددې کار لپاره مې د فوټوسټیټ نسخې ډیر مخونه غچې کړل او د هر ردیـف اشـعار خپـل ردیـف تـه یووړل شول او پدې ډول نسخه لوست او سمون ته برابره شوه.

ما په ردیف بندۍ کې زیار وایست چې د هر ردیف غزلې په خپـل مـنځ کې د تردیف تر قاعدې لاندې راشي خویو ځای رانه تېروتنه شـوې ده؛ د حاضـر متن ۱۱۷ مه غزله پر خپل ځای نه ده راغلې، ۱۱۹ مه باید د ۱۱۷ مې پرځـای راغلې وای او ۱۱۷ مه غزله د ۱۱۹ مې پرځای. ښایې یو ځای نیم بله هم داسې تېروتنه راڅخه شوې وي.

( پنځه پنځوس )

په ردیف بندي کې ماهر ځای پښتو الفبا کې د مروجو عربي ګرافیمونو تر راوړو وروسته د پښتو خپل ګرافیمونه په روڼ سره راوړي او په پای کې مې د یا دردیف غزلې د هرې (ی)، لکه : (ی)،(ې)،(ي) سره بیلې کړې دي .

د دیوان ټولو غزلو ته مې مسلسلې نومرې ورکړې، خود ردیف بندی لپاره د فوټو ستیټ متن غچی کولو او د ځینو غزلو د ټوټو سره پټلیسولو یوه ستونزه بله داراپیښه کړه، چې د غزلو د نومره بندی په وخت کې یوه غزله رانه هیره وه او هغه وخت ګوتوته راغله، چې کله ما د دیوان په ترس پیپر کې راوتلی متن له اصل سره کوت او ددې غزلې اضافه کولو یوه غټه ستونزه را پیښه کړه او د دیوان ځینې مخونه بیا له سره ترس شول او پاتې غزلې ته مې په خپل ردیف او خپل ځای کې د ( الف) په اضافه کولو سره ډبل نومره ورکړه .

ترنومره بندی وروسته مې د متن په لوست پیل وکړ، املامې یې داوسنې وخت له املا سره سمه کړه، څه تېروتنې که وې هغه مې په متن کې سمې کړې او د اصل شکل مې لمن لیکونو کې راوړ.

د اصلې نسخې په املا کې ګډ وډی شته او داګډوډی له دغولاندې خطاوو پیښې دي.

**د مثال په ډول**

د (ږ) ګرافیم کله په (ژ) او کله (ګ) لیکی؛ د (ڼ) ګرافیم په ټوله نسخه کې (نړ) لیکل شوی دی؛ د (ګ) ګرافیم یې (ک) ؛ د (ځ) یې د (څ) په بڼه راوړی دی او نور یې هم داوړ دي.

د مثال په ډول، (ښکل) په ځینو ځایو کې(خکلی) لیکلې او کله یې ښکولی‌هم راوړی؛ ( خبږي) (خیجی)؛( څخه)؛ (سخه)؛ ( ټینګې، ټینږې)؛ ( غمجمن)، ( غمژن) راوړي.

ددې متن يوبل ژبنی خصوصيت دادی، چې شاعر ډېر ځايه دوينا لـه ژبې کار اخيستی دی، لکه: ( اچوي)،(اچئ)؛( ورکوي)،( ورکئ) او نور پـې لـه عامه ګروه سره سم راوړي دي، ما دغسې موارد پر خپـل ځـای پريښـې دي، او مروج کتابی شکل مې يې په لمن ليکونو کې راوړی دی.

ما متن په دې ډول سم کړ او له دې مقدمې، دا شعار و له فهـرست.
او په پای کې له لغتنامې سره تاسې لوستونکيو ته وړاندې کېږي.

له اداري مصرو فيتونو سره سره د علمی او تحقيقی کارونو پرمخ بيـول خو را درانه تماميږي، خو له مسلک سره د علاقې ساتلو په خاطر ترې چاره هم نشته. که له ماددې ديوان د سمون، تدوين او تحقيـق پـه چـاروکې څـه تېروتنـې شوې وي — چې ضرور به شوې وي- له لوستونکيو هيله لرم چې د مهربـانی لـه مخې ماپرې خبر کړي.

**د شاعر مړينه او مزار:**

نواب محبت خان د عمر ترپايه په لکهنو کې پاتې و او د ۱۲۲۳ هـ.ق کال د صفر د مياشتې په ۱۳ مه په لکهنو کې وفات شو. د حيات حافظ رحمت خان مؤلف ليکلی دي چې وزير باغ ته متصل، کشـور ګـنج تـه قريـب خاورو تـه وسپارل شو ( ۳۷۱ مخ) اما دوکتور نسيم احمد بيـا وايـې چـې : ((د لکهنـو د کشـور ګـنج پـه محلـه کـې وزيـر بـاغ تـه متصـل خاوروتـه وسـپارل شـو)) ( داسرار محبت مقدمه، ۹ مخ) د تاريخ شعرای روهيلکهند مؤلف ويلی دي چـې په لکهنو کې کتره محبت خان دده يادګار دی ( ۱۱۰۸/۲۰ ) د نـواب محبـت خان د مړينې په تاريخونو کې هم توپيرونه ليدل کيږي.

دحيات حافظ رحمت خان مؤلف ليکلی دي چې د ۱۲۲۴ هـ ق کال د صفر په ۱۳ مه وفات شوی دی؛ ډيرو وروستيو ماخذو کې دغه سنه راغلې ده؛ په

قاموس المشاهیر کې یې دمحبت خان دمړینې کال ۱۲۲۲ هـ ق ښودلی دی
استادرښتین دپښتوادب تاریخ کې دنواب محبت خان د مړینی کـال ۱۲۲۵هـق.
ښوولي،چې ددغه کتاب په دریم چاپ کې هم دغسې راغلی دی [۵۷].

د نواب محبت خان وررور، نواب الله یار خان د عجایب اللغات په مقدمه کې لیکلی دي : ((در سنه ۱۲۲۳ هجری نواب معلی القاب درماه صفر از سرای فاتی بدار باقی سفر نمود)) ده یوازې د صفر میاشت ښوولې، خود حیات حافظ رحمت خان مؤلف ۱۳ صفر اوداسرار محبت مقدمه لیکونکې ۱٦ صفر راوړی دی.

مصحفی ( ۱۱۴٦-۱۲۴۰ هـ ق ) یې پرمړینه دالاندې قطعه په فارسي ویلې دی:

چومشاق کهن نواب جمجاه    قضا را گشته برخوان قضا حیف
بجستم از خرد تاریخ سالش    همین گفتا ( محبت خان کجا حیف
۱۲۲۳ هـ ق

قلندر بخش جرآت یې پرمړینه دا لاندې اردو قطعه ویلې ده؛

سخت بے دردی ہے جینا اس بغیر    اب وبال جان ہے جرآت زندگی
مصرع تاریخ ہے یه حسب حال    ( کیاہے خاک اب بے محبت زندگی)
۱۲۲۳ هـ ق

**شاګردان :**

په حیات حافظ رحمت خان کې یې لیکلي دي چې د استعداد خاوندان تل ته د مقدمو استادانو پر کلام د پوهېدو لپاره محبت خان ته راتلل. داخبرې مو ته دا افاده راکوي چې محبت خان په خپل فرهنګي ماحول کې د استاد حیثیت درلود او په ځینو مسایلو کې خلکو خپل مشکلات ترې حلول.

د تاریخ شعرای روهیلکهند په دویم ټوک کې یې دده دلاندې شاګردانو نومونه راوړي دي:

( اته پنځوس )

۱ - مست، نواب غلام مصطفی خان بریلوي: ۲ - عبرت، حکیم میرضیاء الدین؛ ۳ - عاشق، نواب اکبرخان بریلوی؛ ۴ - کرامت، نواب کرامت خان بریلوی؛ ۵ - عالم، نواب شاه عالم خان بریلوی؛ ٦ - شاعر، نواب فتح یاب خان؛ ۷ - مقیم، نواب مقیم خان؛ ۸ - مهر، نواب منصورخان؛ ۹ - ضیا، محمدحسین خان .

**اولاد:**

د حافظ الملک نواب حافظ رحمت خان پرژوند د نواب محبت خان واده، د بریلی ضلعې د فرید پور تحصیل داوسیدونکی عبدالستار خان کمالزي له لورسره شوی و. دی کثیرالاولاد سړی و، له لورانو سربیره ده اتلس زامن درلودل، چې نومونه يې: علی اکبر خان ؛ امام بخش خان؛ حیدر علی خان؛ شاه عالم خان ؛ منصور خان ؛ محتشم خان ؛ شمس الدین خان ؛ محمد یوسف خان ؛ محمد مقیم خان ؛ حافظ خان ؛ خسرو خان؛ مهدي علیخان؛ خدایار خان؛ لطف الله خان؛ شاه ولي الله خان؛ غیرت خان؛ محمد موسی خان او محمد نسیم خان وو.

دده په زامنو کي محمد منصور خان مهر او محمد مقیم خان مقیم؛ په لمسیو کې يې محمد حسین خان ضیا، احمد حسین خان او محمد سلیمان خان اسد؛ په کړوسیو کې يې عابد علي خان خورشید او محمد علی خان قمر شاعران او لیکوال تېرشوي دی.

**اروا دې يې ښاد او یاد دې يې تاندوي**

**حواشي او مآخذونه :**

۱ - د نواب محبت خان د مثنوي ( اسرار محبت ) مقدمه لیکونکی دوکتور نسیم احمد دمیر حسین د تذکرې نوم ( تذکرهٔ شعرای اردو) لیکلی دی اسرار محبت مقدمه، ۱۳ مخ) او د (تاریخ شعرای روهیلکهنډ) لیکوال سید تعظیم علی نقوی شایان بریلوی دا نوم ( تذکرهٔ شعرای هندی) راوړی دی

( تاریخ شعرای روهیلکهند ۱۱-۹ مخ ) ما خپله دا تذکره نه ده لیدلې، د ( تاریخ شعرای روهیلکهند) ضبط ماته سم ښکاري.

۲- دوکتور نسیم احمد : د مثنوی اسرار محبت مقدمه، انجمن ترقی اردو(هند)، ثمرآفسټ پرنترز، نوی دهلی ۱۹۹٦ م، ۱۳ مخ .

۳- شوق، مولوئ قدرت الله: طبقات الشعراء، دنثار احمد فاروقی په زیار، مجلس ترقی ادب، لاهور، مطبع عالیه، ۱۹٦۸ م، ۴۵۲-۴٦۴ مخونه .

۴-سرور، میر محمد خان: تذکرهٔ سرور، ادبی پرنټنګ پریس، بمبی، ۱۹٦۱م،٦٦٥-٦٦٦ مخونه .

۵- مصحفی : تذکرهٔ هندی گویان، به کوشش مولوی عبدالحق، جامع برقی پریس، دهلیې ۱۹۳۳ م، ۲۱۳ مخ .

٦-هندی، بهگوانداس: سفینهٔ هندی د عطا کاکوی په زیار، بهار لیتهوپریس، پټنه ۱۹۵۸ م .

۷- لطف، مرزا علی: گلشن هند، د مولوی شبلی په زیار، رفاه عام ستیم پریس،لاهور، ۱۹۰٦م، ۲۲۹-۲۳۰ مخونه .

۸- رښتین، پوهاند صدیق الله: د پښتو د ادب تاریخ، پښتو ټولنه، عمومی مطبعه، ۱۳۲۵ هـ ش، ۸۷-۸۸ مخونه.

۹- رښتین، پوهاند صدیق الله : د پښتو نثر هنداره، یونیورستی بک ایجنسی، پیښور، ۱۹۹۲ م،۱٦۷-۱٦۹ مخونه.

۱۰- پوهاند میر حسین شاه: پښتو قلمی نسخې، ورمه مجله، د ۱۳۴۱ هـ ش کال، ۳ مه گڼه، ۴۰ مخ.

۱۱- ځدراڼ، عبدالرحیم :روهیله پښتانه، پښتو ټولنه، د ښوونې او روزنې مطبعه، ۱۳۵۷ هـ ش ، ۴۹-۵۲ مخونه .

( شپېته )

۱۲- کوشیف،ولادیمیرواسیلوویچ: دریاض المحبت گرامري، لغوی لیکنه،ددوکتور زرغونه زیورپښتو ترجمه، وږمه مجله د ۱۳۵۶ هـ ش کال ۴ گڼه.

۱۳- هیواد مل، زلمی: فرهنگ زبان و ادبیات پښتو، جلد اول، د تالیف او ترجمې ریاست ، د ښوونی او روزنې مطبعه، ۱۳۵٦ هـ ش، ۴۲۳-۴۲۴ مخونه.

۱۴- هیوادمل، زلمی : د هند د کتابخانو پښتو خطی نسخې، پښتوټولنه، د ښوونی او روزنې مطبعه، ۱۳٦۳ هـ ش ، ۱۷۸-۱۸۴؛ ۲۹۳-۲۹۴ مخونه .

۱۵- هیوادمل ، زلمی: فرهنگ ادبیات پښتو، د چاپ او خپرولو دولتی کمیته، دولتی مطبعه، کابل ۱۳٦۵ هـ ش — ۱۱٦-۱۰۱ مخونه .

۱٦- هیواد مل ،.زلمی : د پښتو د ادبي تاریخ خطی منابع، پښتو ټولنه، دولتی مطبعه، ۱۳٦٦ هـ ش ، ٦۷-۷۰ مخونه.

۱۷- هیواد مل ، زلمی: په هند کې د پښتو ژبې او ادبیاتو د ایجاد او ودې پړاوونه، ملت پرنټرز، لاهور، ۱۳۷۳هـ ش، ۳۹۸-۴۰۵ مخونه.

۱۸- طایر، پروفیسور محمد نواز: د فرهنگ ارتضایی دریافت، پښتو مجله، پښتو اکادمی. پیښور، ۱۹۷۲ م. د جنوری گڼه ، ۷ مخ.

۱۹- روهلیه پښتانه ، ۴۵-۵۵ مخونه.

۲۰- طایر، پروفیسور محمدنواز خان : روهی ادب ( دویم چاپ) پښتو اکادمی، جدون پریس، پیښور، ۱۹۸٦م، ۴۴۱ مخ .

۲۱- بختانی، سرمحقق عبدالله : پښتانه شعراء ( پنځم ټوک)؛ پښتو ټولنه، دولتی مطبعه، کابل، ۱۳٦۷ هـ ش، ۲۹-۳۰ مخونه.

۲۲- نواب الله یار خان: د عجایب اللغات مقدمه، ( خطی)، د رامپور لایبریری نسخه.

۲۳- هیوادمل ، زلمی: رشد زبان و ادب دری در گسترهٔ فرهنگی پشتو-

( یو شیپنه )

زبانان، انجمن نویسنده گان افغانستان آزاد- تاپ پرنتېرز ، پشاور ، ۱۳۷٦ هـ ش.

۲۴- بخاری، فارغ: ادبیات سرحد( جلدسوم) اردو ادب، نیامکتبه پشاور، انشاء پریس لاهور- ۱۹۰۰ م – ۱۳۷-۱۳۸ مخونه.

۲۵-عروج ، عبدالرؤف: تذکرهٔ فارسی گو شعرای اردو- انجمن پریس، کراچی، ۱۹۷۱ م ، ۱۰۰-۱۰۳ مخونه .

۲٦- نقوی، سید تعظیم علی : تاریخ شعرای روهیلکهند ( جلددوم) خلورم چاپ، کراچی ، ۱۹۸۹ م ، ۱۱۰۸-۱۱۱۹ مخونه .

۲۷-رضا، پروفیسور افضل: اردو کی قدیم پشتون شعراء، پښتو اکادمی، پېښور، ملت ایجوکیشنل پرنترز، لاهور، ۱۹۹۸م،۹۹- ۱۰۱ مخونه.

۲۸-انوشه، حسن: دا نشنامهٔ ادب فارسی، جلد چهارم، بخش سوم ، وزارت اطلاعات و فرهنگ و ارشاد اسلامی، سازمان چاپ و انتشارات، ۱۳۸۰ هـ ش ، ۲۱۸٦ مخ .

۲۹- - حافظ رحمت خان: خلاصه الانساب ( خطی).

۳۰ نواب محبت خان : دیوان محبت ( پښتو) ، ( خطی).

۳۱- بریلوی، سید الطاف علی: حیات حافظ رحمت ( دویم چاپ) اکیدیمي آف ایجوکیشنل ریسرچ، کراچی ۱۹٦۲ ۴۷-۴۸ مخونه .

۳۲- محمد حیات خان : حیات افغانی، د فرهاد ظریفی او طالبی پښتو ترجمه، لومړی ټوک، د قبایلو وزارت، آریانا مطبعه، ۱۳۷۰ هـ ش ، ۱۲۴۰ او ۴۱۲ مخونو ترمنځ شجره.

۳۳- محبت خان : ریاض المحبت ( خطی) د برټش لایبریری نسخه.

۳۴- حافظ سید عرفان علی: روهیله سردار حافظ رحمت خان اور تاریخ افغانی، رضا لایبریری جرنل، ۴-۵ گنه ۱۹۹۹ م، ۲۵۲-۲۵۳ مخونه

( دوه شپېته )

۳۵- قاسم ، میر قدرت الله : مجموعهٔ نغز، مرتبهٔ محمود شیرانی، نشنل
کادمی ایگل آفست پرنترز، ۱۹۷۳ م، بخش دوم، ص ۱٦۰ .

۳٦- ندوی، ابوالحسنات: هندوستان کی قدیم در سگاهین ، امرتسر،
لکتریک پریس، ۱۳۴۱ هـ ق ، ۳۷-۳۹ مخونه.

۳۷- دوکتور شاه عبدالسلام: دیوان نواب محبت خان محبت ، رضا
لایبریری....، ۴-۵ گنه ۱۹۹۹م ، ۳۳ مخ .

۳۸- خلیل، نواب ابراهیم خان: تذکرهٔ گلزار ابراهیم ( تذکرهٔ گزار
براهیم تذکرهٔ گلشن هند) مرتبه دوکتور سید محی الدین قادری، مطبعه علی گرهـ
مسلم یونیورستی، ۱۹۳۴، ص ۴۱٦.( د اسرار محبت د مقدمې په حواله ).

۳۹- آزاد، مولوی محمد حسین؛ آب حیات، عشرت پبلشنگ هاوس،
لاهور،ص ۲۰۹.

۴۰- جالبی، دوکتور جمیل: تاریخ ادب اردو، جلد دوم، مجلس ترقی
ادب، لاهور، سعادت آرت پریس، ۱۹۹۴ م ، ص ۸۸۰.

۴۱- رشاد، پوهاند عبدالشکور : د مدعا په اردو قصیده کې پښتو
لفظونه، کابل مجله د ۱۳٦۷ هـ ش کال، ۱۱-۱۲ گنه، ۱-۸ مخونه.

۴۲- رامپوری، مولوی نجم الغنی خان : اخبار الصنادید، لومړی ټوک،
پنځم چاپ، ندیم یونس پریس، لاهور، ۱۹۹۸ م ۵۱٦-۵۲٦ مخونه.

۴۳- قاسمی، شریف حسین: فرزندان حافظ رحمت خان کی فارسی
تصانیف، رضالایبریری جرنل، ۴-۵ گنه، ۱٦۷ مخ .

۴۴-دورن،پروفیسور برنهارد:پښتو منتخبات( مقدمه )
دمحمد صدیق روهی ترجمه، پښتو ټولنه، کابل،دولتی مطبعه، ۱۳۵٦ هـ ش
خلورم مخ .

( دری شپیته )

۴۵- راورټي، هانري جارج: د پښتو ګرامر (مقدمه) دويم چاپ، لندن، ۱۸۶۰ م، ۳۴ مخ.

۴۶- بختاني، سرمحقق عبدالله : باب دوم کتاب رياض المحبت، خراسان ( مجله) ۵۱ ګڼه، تابستان سال ۱۳۸۲ هـ ش ، ۳۸-۳۹ مخونه .

۴۷- د هند د کتابخانو پښتو خطي نسخې، ۱۷۸-۱۸۴ مخونه.

۴۸- کوشيف ولاديميرواسيلوويچ: د ختيځپوهنې په انستيتوت کې پښتو خطي نسخې، مسکو، ۱۹۷۶ م ، ۱۷- ۲۴ مخونه .

۴۹- ميکنزي: د بريتانيا په کتابخانو کې پښتو خطي نسخې، لندن ۱۹۶۵ م ، ۵۳- ۵۵ مخونه .

۵۰- حبيبي، پوهاند عبدالحي: پښتانه شعراء، لومړی ټوک، پښتو ټولنه، عمومي مطبعه، کابل، ۳۲۰ ( هـ ش) ۳۷۰ مخ.

۵۱- د بودليان لايبريری د پارسي، ترکي،هندوستانی او پښتو نسخو فهرست دويم ټوک لندن، ۱۹۳۰ م ، ۳۰۶ مخ ؛ د ميکنزی فهرست، ۸۵ مخ.

۵۲- د عبدالرحمن بابا ديوان، دصبا خپرندويه اداره، ۱۳۸۰ هـ ش، ۷۶،۱۲،۱۳،۲۰،۶۰ مخونه.

۵۳- د خوشحال خان کليات، لومړی ټوک ( غزلونه)، پښتو ټولنه، کابل دولتی مطبعه، ۱۳۵۸ هـ ش، ۲۵۷؛۲۶۳،۱۷۷؛۳۹۷؛۳۷۹ مخونه .

۵۴- ددولت دوانی ديوان،پښتو ټولنه،کابل،دولتی مطبعه، ۱۳۵۳ هـ ش ، ۱۲۸ مخ.

۵۵- نظامی بدايونی: قاموس المشاهير، دويم ټوک، نظامی پريس، بدايون، ۱۹۲۶ م، ۱۱۷ مخ.

۵۶- رښتين، پوهاند صديق الله ، پښتو د ادب تاريخ، دريیم چاپ، پيښور ۱۳۷۷ هـ ش ۹۰ مخ

( څلور شپيته )

# فهرست

(ب)

( اوه شپیته )

( اته شپېته )

(ل)



(ړ)



(ز)



( نه شپيته )

(س)



(ش)



(ص)



(ض)



(ط)

(ظ)



(ع)



(غ)



(ف)



(ق)

(ک)



(ل)



(م)



( دوه اویا )

( دري اویا )

( ۵ )

( اوه اویا )

( اته اويا )

( نه اويا )

( اتيا )

( یو اتیا )

(ې)



( دري اتيا )

( څلور انیا )

## (ي)



( پنځه اتيا )

( شپږ اتيا )

( اوه اتيا )

(چاربیتې)



( اته اتیا )

# بسم الله الرحمن الرحیم

## الف

"۱"

الهـــي آه ونـــالـــه د مـــحـــبت را

اور د مـــيني پـــر كـــاله د مـــحبت را

لکه ګل په غم د عشق مې ځـيګر خون کړه

داغ پـــه زړه لـــکه لاله دمـــحبت را

تـــشنه لـــب دمـــی دمـــيني هـــرنفس يم

پـــه کـــرم يـــوه پـــياله د مـــحبت را

پــه تعــلــیم دمــینې زړه مې معــلم کړه
ولــوســتن تــه رســالــه د محبت را
صــید دعشق په دام مې راوله لــه فــضله
په کــمــندکــې غـــزالــه دمــحبت را
په نعمت دعــاشــقي مې بــهره یاب کړه
لــه احــسانــه نــوالــه د مــحــبت را
په څلور طــرف مې کړه مینه مــحیطه
د قــمر پــه شــان هــالــه د مــحبت را
سرتر پــایه د هــوس لـــه ز مــستانــه
ســره ریـــبردم دوشــالــه د مــحبت را
بې له عشقه پــه بل حرف مې ګــویامه کړه
تــل پــه ژبــه مــقالــه د مــحــبت را
چې قــبول مــې محبت کړې خــداونده
نــور پــه لاس کــې قبــاله د محبت را

"۲"

تودچې په کونین کې دی بازاردمــحبت ستا
ځکه ثقــلین دی خــریدار د مــحبت ستا
غوارم نه جنت نه یې مــیوې نه یې ګــلونه
شي که مې روزې ښکلی ګلزارد مــحبت ستا
شغل دخپل عشق دکارعطاکړې زمــا خدایه
هرساعت مــشغول اوسم په کاردمحبت ستا

زرمې کردګاره دخپل عشق په نشه مست کړه

می غوارم له تانه په تلوار دمحبت ستا

دم په دم طلب کوم ساعت په ساعت غوارم

زه چې په هر آن یم طلبګار د محبت ستا

هسې بیماري د خپلې مینې را عطا کړه

روغ نه شم هیچرې زه بیمار د محبت ستا

پرانزه دعشق دروازه خپله چې بارياب شم

زه هم درباري یم د دربار د محبت ستا

رسم به منزل ته د مقصود په يوقدم کې

خوچې بنېي[1] مي کینبووې په لارد محبت ستا

رنځ د محبت چې نه دارو نه بې دواشته

غوارې محبت هم دا آزار د محبت ستا

"۳"

که داهسې مینه ده نازنینه ستا

په عالم مې به رسوا کا مینه ستا

عبث لرې لرې بې کوې تلاښ

تر شهر که ده ښها قرينه ستا

هسې وخت مې خدای به هم کاندي نصیب

چې یودم کیدم[2] سینه په سینه ستا

---

(۱) بنېي = پنبي

(۲) کیدم = کښیږدم

هـــلـروربه یې نه وینې په هـــیڅ شــــان
کـــه طـــالـــبه ســـترګـــه ده دوبـــینه ســـتا

کتې نه شم چې څوک ګوري ستا صـــورت
نـــده خـــوښه مـــې جـــامـــه مـــهینه ســـتا

لا د عـــشق په رنـــګ کې ماکاندي غریق
داپـــه سر چـــې ده پګړی رنـــګینه ســـتا

د آسمان وګې کلـــه هـــسې بـــر یـــښیدل
لـــکه بلـــق وهـــې طـــره زریـــنه ســـتا

بـــې لحاظـــه کـــه هـــرخـــوواپـــې ولې
زما خـــو ښـــه ده خـــبره ســـپـــینه ســـتا

ستادی عـــشق که بې ایمان دی که بې کفر
نـــه جـــاروزي مـــحبت لـه دیـــنه ســـتا

«۴»

هـــرزمان مې په نـــظرکـــې روی دی ستا
مـــخ زمـــا هـــره لـــحظه په سوی دی ستا

ژاړم سروه کـــه وینم پـــه لـــب جـــوی
چې په خیال کې مې قامت دلجوی دی ستا

زه په بلـــې خوشبو یې‌کلـــــه شم خوښ
چې دمـــاغ مـــې معطر په بـــوی دی ســـتا

زه بـــل بـــاغ څه کړم کـــه وي بـــاغ ارم

چـــې زمـادی ګلستان داکوی دی ستا

مـــابل اور ســـیزلی نه شـــی پـــه جهان

هغه اورچې زه پرې سوزم خوی‌دی ستا

د عـــالم په تـــورو نه غـــو څـــیرم زه

که زما قـــاتل دی دا ابروی دی ســـتا

بـــل زنځیر بـــه لیونی ستانه کـــا بنـــد

چـــې د ده زنځیر دزلفوموی دی ســـتا

یـــابه مـــړ شم یابـــه تـــاکـــړمه پـــیدا

تل ژوندن سره مې جستجوی دی ستا

ستاله شوره په قدسیانو پریووت شور

محبته عجب های وهوی دی ستا

"۵"

که ادنی یم معـــشوقه به مـــې اعـــلاکـــا

سرفـراز مې که یودم په مشغولا کـــا

کی[۱] مال وړی[۲] لـــه خلقوهیـــڅ ژړابه نه وه

ژړا داده چـې دا عشق دزړونو غلاکـــا

مـــرورکـــه لـــه مـــا ګـــرزي څـــه پرواده

چې عاشق یم زماعشق بـــه یې پخلا[۳]کا

---

(۱) اصل :که ؛ کی = که یې

(۲) و ړلی

(۳) اصل:پخول

یاد وي [1] دزړه داغــونه مــې په باغ کې
نــنداره زمــادلــبر چې دلا لا[2] کا

کــه یــوه خبره هــم را ســره وکړ ي
خدای به ستا په دوه جهانه بول بالاکا

عشق آرام وقرار ټول راځــنې واخــست
مال چې وه یوبې وورواوس به څه تالاکا

زه له زلــفوبې ویریږم خدای دې نه کــا
چــې د چــاپلوته مخ توره بــلا کــا

په لحظه کې بــه په باغ نرګــس بیمار شي
که مې یار ورته ښکاره سترګې شهلاکا

محبته کــه دا چارې دي د میــنې
آخر ما په یو آفت به مــبتــلا کــا

"٦"

چې په خیا ل یې ستا جمال وي څه به خوب کا
چې جمال دې یې په خیال وي څه به خوب کا

درســته شپه دردمن دې ږړنه کا پــه ســترګو
چې له درده یې بد حال وي څه به خوب کــا

خــوب ور ځي کله په سترګو د غمجــنو
چــې په زړه کې یې ملال وي څه به خوب کــا

(۱) اصل: یاده وی
(۲) لالا = لاله

خـــالي نـــه شم يو ساعت هم ستاله ذكـــره

چې مشغول په قيل وقال وي څه به خوب كا

خـــوب پـــه دين د عاشقانو كـــې حـــرام دى

چې په تيغ دعشق حلال وي څه به خوب كـــا

چـــې حيرت ونيسي څوک خوب يې محال شي

په هر چا چې خوب محال وي څه به خوب كا

خوب غفلت دى او غفلت د عشق نقصان دى

چې عاشق صاحب كمال وي څه به خوب كـــا

د هر چا چې پـــه جـــلوه د مـــهر و يـــانـــو

زړه روښان لكه مـــشال وي څه به خوب كـــا

شپه يو كـــال په مـــحبت شي ستا په غم كـــې

هره شپه چې پرې يوكال وي څه به خوب كا

"۷"

هر ســـړي چـــې لـــه گدايـــه محبـــت كا

مـــعلومیږي چـــې له خـــدايه محبت كـــا

هغه كـــس چې په دنيا محبـــت كـــانـــدي

لـــوى نادان دى ډيربې ځـــايه محبت كـــا

چـــې د زړه مې آرايش په دلآراى دى

زړه زمـــا لـــه دلآرايـــه مـــحبـــت كـــا

دانامـــيـــنه په هـــغه كا چـــې بـــاقـــي وي

نادانـــان لـــه فـــانـــي ســـرايه محبت كـــا

د مـجـاز د معشوق وصل فاسق غـواړي

عـاشقان چـې وي له ورايـه محبت کـا

محتسب پـه زاهـد ډيره مينه کـانـدي

خـود نـمای لـه خـو دنما يه محبت کا

عـاشقان مـحظوظ پـخپل آه ونـالـه وي

مـطربـان لـه چـنګ ونا يه محبت کـا

سـتا طـالب خودد يوال سـوری دې غواړي

دنـيا طلـب لـه هـمايـه مـحبت کـا

چـې پـه نـوم د مـحبت يې مسمی کـړم

نـور دې خدای مې سرترپايه مـحبت کـا

"۸"

دمـردي کـارونـه واړه اهـل دردکـا

کـار چـې دی د بيدردی هغه نـامردکـا

لـه عـاشقه زړه چې سوړ د معشوقـې شي

هميشه هـغه عـاشـق به آه سـرد کـا

پـه خـپل حسن چـې آفتاب هومره نازيږي

که مې يارشي جلوه ګر مخ به مې زرد کـا

ګرد چـې پريوزي لا څهره دې شـي روښانه

مـخ دې صاف د آئينې په مـثال ګرد کـا

لـه قسمته هيڅ خـبر نه وم افـسوس دی

چې فـلک مې لـه طـفلی به غم پروردکـا

مـــعشوقه پـــخپل طلب په در ست جهان کـــې
عـــاشقان پـــه گرزو لـــو جـــهان گرد کـــا

عشق په کـــور څوک مسافـــر کـــالکه ژرنده[1]
مـــلک په ملک څوک وگرزئ[2] ره نوردکـــا

بـــل ديـــوان دشـــعر څوک بـــه ونـــه گوري
کـــه نـــظر د مـــحبت پـــه يـــوه فـــرد کـــا

"۹"

لاس دراز کـــه ســـتا د دوه زلـفوکـــمند کـــا
کـــه وي صيد د حرم هم بې[3] په بندکـــا

زه پـــه مرگ د مفاجـــات به ښادي مرگ شم
مـــحبوباکـــه مـــخ نا گاهه را څـــرگند کـــا

چـــې خـــوړې خـــبرې کـــاندي لـــب شکره
خـــولـــه خوږه مې په مزه يې لـکه قـــند کـــا

د خـــو بـــانـــو پـــه بازار زه هم زړه يـــوسم
له قسمته مې يې گوندې[4] څوک پسند کـــا

پـــه عين وصل چـــې شوخ نوم د رقيب واخلي
د خـــوښې خـــندا مـــې توله زهر خند کـــا

لکـــه گوی زه بـــه داســـر پـــه ميدان کيدم[5]
شهسوار مـــې په جولان کـــه خپل سمندکـــا

چـــې پيونـــد دزړه لـــه عـــشقه سره نه کـــا
خـــدای هـــغه سړی د مـــزکې دې پيوندکـــا

---

(۱) اصل : جرنده
(۲) وگرزئ : وگرزوي .
(۳) اصل : ٸ = بې = به يې.
(۴) اصل : کند
(۵) کيدم : کښيږدم

پــه څه شـــان زه خوف له زلفوېږ ونه کــړم

خـــطره هــر کــس لـــه ماره دګزند کـــا

ددنـــیا بـــا دشـــاهي نـــه غـــوارم له خدایه

کـــه په تاج د مـــحبت مـــې سر بلند کـــا

"۱۰"

د ګلـــزار ښبنتن کـــه حظ په خپل ګلزار کا

محبت د ګلـــر خـــانـــو په رخسار کـــا

ګدایـــان د یـــار د در پـــه ګـــدایـــي کې[1]

هـــغه فخر په شاهـــي چې شـــهر یار کـــا

لـــه نـــعمـــته ددولـــت د خرقـــه پـــو شـــو

که آګـــاه شي ډیر آرمان به دنیا دار کـــا

یـــوساعـــت د وصـــل بـــیا مـــومم له بخته

آســـمان بل ساعت د هجر را دو څار کـــا

چـــې تـــقدیـــر مـــخ کا د کار په ورانو لـــو

څـــه تدبـــیر د د انـــایـــانو هلته کار کـــا

نـــنداره یـــې د مـــخ هـــغه کا په خوب کی

زلـــیخا غوندې چې خدای می بخت بیدار کا

واک د زاغ وزرکې څـــه دی په خپل یون کې

بدرفتار کاڅوک فلک څوک خوش رفتار کا

تـــندرســـتي پـــه دین دنیا بـــه هـــغه مـــومي

چې د عشق په بیماري کې ځان بیما ر کـــا

---

(۱) اصل : کړي

پـــه اسرار د مـــحبت بـــه هـــغه پـــوه شـــي
غـــوږ[1] لـــه زړه د مـــحبت چې په اشعار کـــا

"۱۱"

د قـــيامت پـــه ور ځې هغه کس به نـــازکـــا
پـــه دنـــيا کې چې له زړه عجزو نياز کـــا

ســـر داري به د کـــونـــين روزي زمـــا شـــي
که د عـــشق په کلاه خدای مې سر فراز کـــا

ګلـــه مـــند بـــې حـــده يم لـــه خـــپلو اوښو
دوی د رازمـــې غـــمازي، لـــکه غماز کـــا

دوه عـــالم پـــخپل کـــمند مسخـــر کـــا ندي
ســتا دوه زلفې په تسخير چې لاس دراز کـــا

هـــيڅ احـــوال دې پـــه رنـــدانـــو نـــه پټيږي
په حيرت يم دوی ته څوک اظهار د راز کـــا

شـــايد عـــشق مـــې تـــارو شـــميري يا تنزری
چـــې هـــردم غـــوټې راباندې لـــکه باز کـــا

خـــوش آواز مـــرغـــان به واړه په فـــرياد شي
کـــه عـــاشق دې زمزمه لـــه سوزه ساز کـــا

وعيسی تـــه بـــه هـــيڅـــوک مـــړی يـــونسی
کـــه زمـــا د لبر اظهار د خـــپل اعجاز کـــا

په کعبه دزړه چې خپل مسجودې[2] بيامونـــد
څه حـــاجت چې محبت قصد د حجاز کـــا

---

(۱) اصل : غور
(۲) مسجودې = مسجودیې

چــې قــضا راشي حــکمت حکما څه کــا

لــقمان څه کــاند بــهلول دانــا څه کــا

چــې دې مــخ وینم څه باک له تورو زلــفو

چــې قــرآن وي په مخ ایښی بلا څه کــا

د لــرم ټک وهــل نه دي پــه اختیار یــې

چــې یې شــه د طبیعت متقضی څــه کــا

پــه اثــر عــمل ښیرې و دعـا کــانــدي

بــې اثــره ښیرې څه کــا د عــا څه کــا

چــې رڼا دپــروانــې دســترګو اور شــه

کــه پــه اور کې ځان وانچۍ[۲]بیا څه کــا

دوست که وژني او د ښمن نوازي مختار دی

څوک ویلی شي دې[۳] څه وکړه داڅه کــا

په هــر یــوکار کې رضا د خدای په کار ده

د بنــده بــیچاره خــپله رضــا څه کــا

شــاه دولا فــقیر بــه داویــل هــر چــا ته

چــې مــولا نــه کا فقیر شاه دولا څه کــا

چــې نشان یــې نــا مــعلوم دی مونده نشي

مــحبته څوک تش نــوم د عنقا څه کــا

------------

(۱) وانچوي

(۲) اصل : دا

که یار هیسته گذر نه کاندي ځوک څه کـا

چـې کشش مې اثر نه کاندي ځوک څه کـا

وسـلام تـه یـې زر هـیږه زه حـاضر شم

چې دې لاس هم په سرنه کاندي ځوک څه کا

ودر یږم په هرګوِ در ګوندې[1] دو چـار شي

چـې ګذر په ګودر نه کاندي ځوک څه کـا

زه خـو وایم چـې په غـم دې ومرم ومرم

ولـې دی چې باور نه کاندي ځوک څه کـا

لـکه سپی په دروازه کې یې خای غـوارم

چې بار یاب مې په درنه کاندي ځوک څه کا

کـه هر ځو آب حیات لري په خولـه کې

چـې دی لب دچا تر نه کاندي ځوک څه کـا

مـابه لاس لـه عشقه پور ته کړ نا صـحه

چـې قـضا وقـدر نه کـاندي ځوک څه کـا

چـاپه زړه ځیګر بـه غشی د عشق اخیست

چـې خطا زړه ځیګر نه کاندي ځوک څه کا

آفـتو نـه د عـشق واړه ورتـه شـمیرم

محبت چې خطر نه کاندي ځوک څه کا

---

(۱) اصل : کند

"۱۴"

مـــدعـــي بيل لـــه مـــاه رويه به ما نه کـــا

ســـايه څوک د چا لـــه ځانه جـــدا نه کـــا

مـــحتسب نـــاوري خـــبرې د مـــستا نـــو

بـــيخـــبر د خـــبر دار و ويـــنا نـــه کـــا

زاهدان که ډير شي مـــست ترې نه ويريږي

يـــو مـــزری د زرګيـــدړو پـــروانـــه کـــا

پـــوهـــاره د خـــزانـــې پـــه اوبـــه ژاړي

زړه غـــمجن دی سترګې خنګه ژړا نه کـــا

د راتـــلو زيـــری دې وشه نـــن په باغ کې

کوم يو ګل دی په خوښي چې خندا نه کـــا

وابه وری[1] شعر که شونډې مې په خوله کړي

بـــې شکر و طوطي هيڅوک ګـــويا نه کـــا

نـــور خـــوبان که ستم کاندي کرم هم کـــا

مـــعشوقه مـــې تـــل هغه کاندي د انه کـــا

پـــه بـــيګاو پـــه ســـبا يـــې څه يقين کـــړم

کـــوم اقـــرار چې دی بيګا وسبا نـــه کـــا

حـــذر کـــړه د مـــحبت د آه لـــه غـــشي

د آه غـــشي د درد مـــنو خـــطا نـــه کـــا

"۱۵"

خـــدای دې بيل له ما زما دلآ رام نه کـــا

چې[1] کا مران کړم ترودې اوس مـــې نا کام نه کا

-------------

(۱) وابه وروي

(۲) چې بې.

زړه معمورمې دې لـــري مدام لــه عـــشقه

لـــه شـــرا بو دې خـــالي زمـــا جـــام نه کـــا

بـــې دلـــبره زړه په څه شان به آرام کـــړم

هـــم و زړه مـــې بـې دلـــبره آرام نـــه کـــا

عـــاقبت بـــه درنـــه پاتـــې شـــي نیمګړي

د دنـــیاکـــارونه هـــیڅو ک تمام نـــه کـــا

د مطلب واګې په لاس به څوک رانه وړي

څو پـــه خـــوله د خامو شي چې لغام نه کـــا

چې څوک راشي لـــه دنیا په تلوار تیر شي

دا منزل دی خطر نـــاک څوک مقام نه کـــا

ګل ګر یوان څیرې په مخ یې کا په باغ کې

یـــارمې ځکه و ګلـــشن تـــه خـــرام نه کـــا

کـــیفیت د عشق دمـــی بـــه یې ورنه شي

څوک چـــې ځان آخته په شرب مـدام نه کـــا

حـــلال مې د محبت نـــه شي پرې بانـــدې

څوخوراک وخوب په ځان څوک حرام نه کا

"۱٦"

څود زړه پـه سترګوڅوک ننداره نه کا

مـــحبو با به لـه پردې مخ ښکاره نه کا

د عشق ښهردې آباد وي چې هوس مې

پـــه صـــحرا کـــې د دنیا آواره نه کا

څه کرم خدایه چې قاتل مې نه خوښیږي

څــو د عشق په توره زړه مې پاره نه کا

پــس له مرګه مې وفابه کړه ظــاهــره

ولې خدای به بیا ژوندون دوبـاره نه کا

ماد آه په کوله ټول آسمان غلبیل کـړ

هــسې کــار به پـه قـلعه غـبـاره نه کا

عــزرائیل غــریب خو ما وژلی نه شي

څـو د قــتل مــې قاتل اشــاره نه کا

چــې څهره ګني بـِـه لــه ګله خپلــه

لــه غــروره د ګلــزار نــظاره نه کا

اچــوم ورتــه عــبث دخدای رویونه

رحم یې نشته کار د خدای د پاره نه کا

اوس نــوبت د مــحبت چې زما راغی

بې ماله دې څوک د عشق نغاره نه کا

"۱۷"

خــواري راکا هم عطا راته زاري کــا

هرچې کا ندي په ما شندې ستا یاري کا

نه ښکاریږي عشق او زړه راڅخه یوسي

هسې غل نه څوک به څه خبر داري کا

ژړ ول[1] هـم حد لري بس رحم وکـړه

مـبتلا دې څـوله ستر ګـو څو نباري کا

زه پـه عـشق د يـو بيرحـم مبتلا يم

څـو وفـا کړم هومره دی جفا کاري کا

بـې لـه ظلـمه لـه تا څـه اميد ظالمه

ستمګـار ِ پـه هردم ستمګـاري کا

مـاد لدار ګنهلی و چې زړه مـې ورکـړ

ولـي وخـوت دلآ زار دلآ زار ي کا

زړه څه يـوسـم پـه بازار د دلبر انـو

کا سدجنس دی‌څوک به يې خريداري کا

هـوښ ربای دټول عالم دغه دی راغـی

که زاهـد هـوښياردی اوس دې هـوښياري کا

مـحبت چې د فراق په رنځ رنځور شه

بـې لـه وصله څه عـلاج د بيماري کا

## "۱۸"

په جمال چې دخپل يارو کړ نظرما
بيا په سترګـوونه ليد هسې بشر ما

يارته ګورم هـم ديار خبر ې اورم
سترګـې غوږکړه لـه اغياره کوروکرما

پـه لنبوکې چې دعشق تراوسه پايم
زيست پـه اوروکړپه دوددسمندرما

له هغه وخته چـې شپه دهجرراغله
مـخ ونه ليد په جهان بيا د سحر ما

دوه رخساردې منورچې رابنکاره شو
لـه نظره پرې ايستل شمس وقمرما

خبر دار شوم د دلبر لـه مـا هيته
چې کړ ځان له خپله ځانه بيخبر ما

---

(۱) اصل : ژړه ول

له جمله خوبانو تا مې نظر بندکړ ستا په شان ونه لید بل یوسحرګزما
اوس چې الوزم ترعرشه پورې رسم ستاپه عشق هسې پیدا کړه بال وپرما
په تلاښ کې د ر هبروم له مد ته
محبت بیا موند آخروته رهبر ما

"۱۹"

خوښ یم که رالوبې هر ساعت په سرز ما
دي رانجه د ستر ګوخاورې ستا ددرز ما
هره شپه سحر کاندي آفتاب په خپل جمال
تاپه مخ ونه کړه یوه شپه سحرزما
داغ په داغ به را کوې تر څود جدایي
ودې سه[1] په داغو سره ټول ځیګر ز ما
زه بیګناهي کړم مو کده په قسم
ولې ته ونه کړې په قسم باور زما
غم دموی د زلفو دې داهسې کړم نحیف
جسم هډ وپاتی نه شه موی قدر زما
یارمې لکه بویه هسې زده کړه دلبري
حیف دی چې زده نه کړه دلداري دلبرزما
عید مې موقوف نه دی په شوال وذوالحجه
هره ورځ چې تاووینم وي اختر زما
ډیره ده آبداره توره ستا ولې افسوس
تاپدې او بونه کړ داحلق تر زما

---

(۱) سه : سوه = ودې سوزه

تاپه محبت کې قدم کښیښود په هوس

سر دی ستا رقیبه پس له دې اوسرزما

"۲۰"

ساقي تر دې کړ حلق وکام زما

په شرابو دې ډک نه کړ جام زما

صبح وشام وختونه دې زاهده ستا

زلف و مخ دیار دي صبح و شام زما

بد اخترمې شوی نه دی نیک اختر

گر زید لی نه دی لا آیام زما

زه آرام له کومه راوړم ستاپه عشق

بیتابی یوور دزړه آرام زما

د هر چا جد اجدا بخره کا یار

نسه خبره د رقیب دشنام زما

له ماوابه نه وري هیڅوک بل کلام

عشق دیعشق دی هرساعت کلام زما

چې عاشق شوم نه نام پاتې شه نه ننگ

مینې یوور جمله ننگ ونام زما

سرگردان ورپسې شوم سر په صحرا [1]

ولې و نه شه وحشي مې رام زما

چې روزي مې شه مقام د محبت

بالا تر تر عرشه شه مقام زما

---

(۱) اصل: صحرا صحرا

"۲۱"

په کرم د محمد دی په هرحال نګاه زما

زه ګدای د محمد یم محمد دی شاه زما

چې امت د محمد یم که هرڅویم تباه حال

محمد به کله وګوري احوال تباه زما

بې بارانه درحمت مې که هرڅو شووچ وابنه

محمد به بیا سرسبز کا ندي داوچ ګیاه زما

که شیطان او نفس په ما کړه لکه شر مبنې غابن تیره

په لمن د محمد دی په هرآن پناه زما

ګمراه نه یم چې په بلې لارې واچوم قدم

چې شاهراه د محمد دی هم هغه دی راه زما

که لمبنکرې تولئ [1] دغم هروخت را باندې دهر

دي فضلونه په هردم د محمد سپاه زما

زه اول له خدایه غوارم په زړه عشق دمحمد

محمد به کاد خدای له عشقه زړه آګاه زما

چې مداح يې داولادیم برطرف به شيعصیان

چې دوستدارې [2] داصحاب یم دوربه شيګناه زما

چې لر مه د نامه يې محبته محبت

محمد محمد ورد دی هر سبا بیګاه زما

---

(۱) تولوي

(۲) دوستوراې = دوستدار يې

"۲۲"

چې لذت بیا موند بسیارد عشق په غم ما

قــبول کړ د مــحبت دردوآلــم مــا

هغه کــوړکــه راته سم شوی له غروره

و بــه نــه کاته د چاپــلوته سم مــا

که گلزاردې د کوڅــې زمــاروزې شوی

پــه جــنت کې بــه کینبنو یو قــدم ما

پــه ســتم کې دې مــزه ده پته څکه

قبول کړی دی له زړه نه ستا ستم مــا

یو غضب دې خــالې نه دی لــه کرمه

په غضب کې دې لید لی دی کرم مــا

مــی نو شــې به ترکه نه کړم محتسبه

د ســاقې د سر خوړلی دی قــسم مــا

بــې سرابه راتــه نورڅه معلوم نه شــو

نــنداره پــه غوروکــړه د عــالم مــا

کــه د عــشق مــقابــله چانه ده کړې

هرچې خدای کا اوس خوپورته کړعلم ما

ټول جــهان د مــحبت پــه شعرډک شه

چې د عــشق پــه رقم پورته کړ قلم مــا

په ستم که څوک خوشحال شي د آشنا

بهره یاب به په وصال شي د آشنا

خدای آشنا دې له هیچا نه کا جدا

یو ساعت بېلتون یو کال شي د آشنا

ته مې وژنې نه دې شوې چرته دا

چې آشنا ته خون حلال شي د آشنا

شم بېهوښ لکه موسی په تجلی

چې ښکاره راته جمال شي د آشنا

دزړه سترګې که څانه کړلې پیدا

ترو دیداربه یې محال شي د آشنا

شي له خپله حاله څوک چې بېخبر

خبر هغه به په حال شي د آشنا

هغه هیچرې بیانه کاندي بل ذکر

چې مشغول په قیل وقال شي د آشنا

کله خوب کولی شي هغه عاشق

چې یې خار په سترګو خیال شي د آشنا

وو د زړه مرغه ته مې دام و دانه

اې ناصحه خط وخال شي د آشنا

زه راضي یم محبته په خپل مرګ

که په مرګ مې زړه خوشحال شي د آشنا

"۲۴"

پـته سـتمګره په وفـا دې ده جـفا

دواړه برابـر دي لـکه هـغه هسې دا

هیڅوک په دنیا کې پاتې نه شي عـاقبت

ده د دې دنیا لـکه فنا هسې بـقا

عهد چې صادق کړي مو ده کیدي[1] د قیامت

صـدق نه شه دالـکه دروغ هسې رښتیا

زړه مې کله وړي په نیم نګاه اوکله مفت

دي درته یکسان لـکه خرید هسې ویړیا

بې له تا په شپه کړم فریادونه هم په ورځ

غـم چې وي په زړه لکه بیګاه هسی سبا

ستا په غم خندا مې هم ژړا ده لکه شمع

وي د دلـسوخته لـکه ژړا هـسې خندا

ځای داقـامت د هـیچا نه دی داجهان

تلـه دي له دې سرایه لکه سـتا هسې زمـا

عشق د شیرین ووژله فرهاد و که خسرو

وي په مـحبت کې لـکه شاه هسې ګدا

"۲۵"

عـاشقان رهـنمایـان دي د دنـیا عـاشقان کارفـرمایان دي دعقبا

ومـنزل تـه رسئ[2] ادنی اعـلی عـاشقان چې رهبران دي دهر چا

مقتدي يې په جهان کې دی هرکس عـاشقان هم امامان دي هم پیشوا

هـر پنهان وي عـاشقانو ته ظـاهر عـاشقـان عـارفـان هم اولیا

---

(۱) کیدي : کښیږدي

(۲) رسوي

عــاشقـــان ددين دنيا دي مـــالكان · عــاشقـــان دي بــادشاهان هم فقرا

دكيميا لـــه عـــاشقـــانو كړه طلب · عــاشقان وي كيمياګرعشق يې كيميا

د خپــل درد عــاشق په خپله كا دارو · هــم دزړه يې عشق وي درد هم يې دوا

عشق يې هم رنځورئ [1] هم يې رغئ [2] · عشق هم رنځ وي دعاشق هم مسيحا

هم حريص شه دمعشوق هم هواخواه · كه بـهتردي خودعشق حرص وهوا

زهـــر مومې كه لـه لاسه دمعشوق · زرې [3] تېرترسـتوني كړه لكه حلـوا

ځـــان فـــاني كړه په بـــقادمعشوقې · وايـــه بـيا لــــكه مـجنون انا لـيلا

كه حيوان دى كه انسان دى كه پـيرى · پـــه بـلا د عـشق هـمه دي مبتلا

ملا يک كه مـــجازي نه لـــري عشق · حقـيقى عـشق نه ليكن نه وي رها

خداى هم نه دى بې معشوقه وكړه فـهم · مـحمد دى پـداحرف ګـواه زما

مرتبه د عشق ده تيره تر هر څه

مـــحبته بس پـــــدا كړه اكتفا

"٢٦"

ســــودا مـــه كړه پـــه بـــازار د دې دنـــيا

زيـــان ترســـود كـــاخريدار د دې دنـــيا

ددنـــيا په لار به پـــريوزې په ګـــړنـــګ

كـــندې كـــو درې لـــري لار د دې دنيا

خـــاورې لـــونې به په سركه دې زړه خپل

مـــــكدر كـــړ پـــــه غـــبار د دې دنـــيا

ګـــفتګوى مـــاوره شـــميره يې پـــوچ ګو

چې شروع كا څـــوک ګـــفتارد دې دنيا

---

(١) رنځور وي

(٢) رغوي

(٣) زرې = زربې

کاردعشق کړه که ځـان بولې کارپر داز

بـــيکاران کـــا کار وبار د دې دنيـــا

هـــلـه و ورکه بـــه دې نشې ســـردردي

که مـــخمورشوې پـه خـــمار د دې دنيا

آمـــان غـــواړه د دنيا لـــه بـــيمارۍ

خدای دې نه کا څـوک بيماردد دې دنيا

آخـــر ســـوزي به په اور کـــې د دوزخ

چـې څوک وســـه پـــه شرارددې دنيا

د مـــردار خوهـــم مـــردار کاجـــستجوی.

سـګ وخوګ وي طلـــبګا ر ددې دنيا

هـــربندي لـــه هـــره بنده بـــه شي خلاص

خلاص بـــه نه شي ګـــرفـــتار ددې دنيا

آدم زادې [۱] مـــه بولـــه دی ګـــاووخر

چـې څـــوک پورته کاندي بار ددې دنيا

هـــغه پـــير دی د کفـــار لـکه بـــا منې

چـــې ونه شلـــيئ [۲] زنـــار ددې دنـــيا

د اولاد آشـــنايي پـــر بـــرېدي عاقبت

بـــيګـــانه دي مـــورو پـــلار د دې دنيا

هـــيڅ تړون يې مســـتحکم نه دی هر ګز

خور په ســـر به شي دســـتار د د ې دنيا

د اغـــيارو پـــه څير کـــاندي اغـــياري

بـــاري نه پـــيژنـــي بـــار ددې دنـــيا

---

(۱) آدم زادې =آدم زادېې

(۲) ونه شلوي

له یوه پلوه بل پلو شي تیر
وي د باد په څیر رفتار د دې دنیا

ګهې کا تیاره ګهې کاندي رڼا
همیشه لیل ونهار د دې دنیا

چې بقا نه لري دواړه دي یکسان
هم ګدای هم شهریار د دې دنیا

ظاهر بریښي ولي کالاسونه تور
که درم دی که دینار د دې دنیا

پرون ستاوي نن زما سبا دبل
په یو ځای نه وي قرار د دې دنیا

د دنیا هوښیار په دین کې وي نادان
تولعنت شه په هوښیار د دې دنیا

محبته آخر تیرشي په هر چا
لکه عمر هسې وار د دې دنیا

"۲۷"

| | |
|---|---|
| چې آخر نشته بقا | ته فاني شه لا پخوا |
| دنیا ځای دی د آزمېښت | که دروغ کړې که رښتیا |
| بې نشان کړه بانشان | په دام راو له عنقا |
| لار که پېښه شي کړه | وجاروزه بېرته سا |
| وابسه شنه کړه په اوبو | زړه ژوندی کړه په ژړ |

| | |
|---|---|
| لینده غشي سم کړه خپل | چې ګذارکړې بې خطا |
| یو پروالره دیار | نورخپل ځان کړه بې پروا |
| پا څه کړه هغه طلب | دشهو چې ده شها |
| چې دې زیست تیرشي په عیش | ښکلي ناوې کړه پیدا |
| په دنیا حاصل کړه دین | ځارتردینه کړه دنیا |
| بیا دېن ځار کړه تر شهی | په هغه حاصل کړه دا |

یا محبوب والمحبت

اَنـنِي مـعَکـُمَا

"۲۸"

می دمینې کړم له ځانه بیخبربیا

اوردعشق لنبې مې بلې کړې په سربیا

خلاص دې کړم په یونظرله هره بنده

زه دې ځار شم تر نظره یو نظربیا

قیامت تیرشه دهجران له حشره خلاص شوم

چې یوځله تیر شي نه را ځی محشربیا

د وصال شپه په ساعت کې شوه تمامه

راښکاره کړ مخ د بیلتانه سحربیا

بې شعوره بې له تا لکه حیوان وم

چې مې ولیدې په سترګو شوم بشربیا

شپه د غم مې به سحرشي په یو دم کې

که ښکاره کړې څېره خپله لکه نمر بیا

دردعیش مې په زنځـیر د غم دې بند کړ

ولـې نـه پـرانـزې راته هـغه دربیا

چې جوړ کړی مـی دفتر د جـمعیت وه

پـریشان زلفو دې کړوران هغه دفتر بـیا

زه فقیر د خپل ګـوهر پـه ورکـیدووم

بیا بادشاه شوم بـیا مې موند هغه ګوهربیا

که څه دم دې زده ناصـحه وي راپـو کړه

مـحبت زمـا پـه زړه وکړ اثـر بـیا

## ب

"۲۹"

لـــتئ[۱] زمـــا دپـــاره تېـــغ بـــې آب

چـــې حلال مې کا ظالم په ډېر عذاب

عـــاشـــقان ورژني تـــل پـــه تيغ دجور

خدای پـــيدا کړی دې فرقې لـــره قصاب

چې داوښـــومې درياب راشي په جـــوش

سپک مـــې يوسي په سرخپل لکه حباب

چې په زړه مې پيچ وتاب وي تل دعشق

شي ګـــردباد خاورې زما اوښې ګرد آب

---

(۱) لټوي

همیشه ښندي پـه سـردې سـیم و زر

په آسمان چې دا آفـتاب دی کـه مهتاب

شبنم ژاړي چـې ګـلرو یـه تـاپه مخ

لـه ګـلـونـو همـه یووړ آب وتاب

د وصـال زمـا نـه تـیر شوه افـسوس

رابـه نشي هغه وخت شه خیال وخواب

الـوداع اې سـاکـنانـو د سـاحل

زه د عـشق په لوی دریاب کې شوم غرقاب

که دې زړه لـه غمه خـون نه کـړزما

ولـې ځـې لـه دواړو سترګـومې خوناب

بل کباب وشراب څـه کـاندي عـاشق

د عـاشق اوښـې شـراب وي زړه کباب

حجاب داربه بې حجاب کـړې هغه دم

چې له مخه خپـل ته لرې کـړې حجاب

د عالم چې شوې مـسجودې پـه جهان

وروځـې طاق دې دکعبې دي که محراب

دواړه ورو ځې دې په مخ هم خط وخال

بسم الله دي پـه قـرآن کـې با اِعـراب

تـوبې کـانـدي لـه شـرابه زاهدان

مـحبت لـه تـوبې کـانـدي اجتناب

"۳۰"

په تلوار چې قاصد راغی زړه مې کاندي اضطراب

چې بې[۱] وي راوړی بیاله دلآزاره څه ځواب

یوله عشقه خالي نه دی که عاشق یې وکړه فهم

امرونهی وقصص هرچې دي راغلي په کتاب

چې عاشق یم خاین نه یم له حسابه مې څه غم

له خاینه سره کیږي که حساب دی که کتاب

هرعذاب چې دې ثواب شه ماته اوس زه ستا په غم

نه وېریږم له عذابه نه خوښیږم په ثواب

چې د نمرونورته ګورم دا آرمان کوم په زړه

کشکې ولیدی هغه مې چې یو نورې[۲] دی آفتاب

که په خوب د غفلت راغلې آخر پریبوزي په تا

داخیمه چې ده ولاړه نه پې میخ نه یې طناب

که په قهرتلخې کړې خبرې ذوق دې شي سوا

په مذاق د عاشقانو چې شیرین دی ستا عتاب

دا زما زړګی خراب به ودان نشی بې له تا

بې له تا به ودان نشي دا زما زړګی خراب

که خوشحال دی که رحمن دواړه بیان کوي دعشق

له دې دواړو ما اشعار د محبت کړه انتخاب

"۳۱"

په ښایست اوپه ترکیب اوپه اسلوب

بل مې تاغوندې ونه لیدیو محبوب

---

(۱) بې = به یې

(۲) نورې = نوریې

ته پــه تیغ کې خپــل دامه ګنـه جوهر
لــه ازلــه مــرګ مې دی پــکې مکتوب

بــې کششه خــوک درپــسې نشي تلی
ته یې راکاږې ســالک وي که مــجذوب

کافــر مــشه هــر زمــان یې کړه حرمت
عــرش د خدای دمــومــنانو وي قــلوب

هــم د عــشق مــلاح یې بیا کاندي پیدا
په دریاب دغــم چې زړه مې کاندي ډوب

خوشحالی کــوه که راشي غم د عــشق
مــه زیریږه حال بــه ستا شي واړه خوب

ته بــه هم مړی ژوندي کړې په خپل بوی
دیوســف پــه بــوی بــینا شه کــه یعقوب

شي پــه تا بــه بــې جــفا هــمه وفــا
که پــیدا کړې پــه زړه صــبر د ایــوب

بــې مــحبوبــه نه شي زیســت د مــحبت
مــحبت طــالب مــحبوب یې دی مطلوب

"۳۲"

| | |
|---|---|
| سلطنت مــې شه نــصیب | چــې ګــدای شوم د حبیب |
| ونــوازه مــې پــه نــګاه | تــه بــادشاه یې زه غریب |
| لــه تا هیڅ نــه دي بــعید | که مــې ځان ته کړې قریب |
| خوښ یم ډیرپه رنځ دعــشق | مـــحـــتاج نه یم د طــبیب |

جهان واخيست عشق وحسن　　　يــو نــايب شه بل منيب

په سوال مــې هی افــسوس　　　هــيچرې نــشوې مجيب

پــه حــسب د عــاشقــي　　　رذ الــه هــم شي نجيب

اوس راکــيوتــم[1] په عشق　　　هر چې خدای کايا نصيب

هــر مــحب شي مودب

مــحبت يــې وِي اديب

-----------

(۱) کښيوتم

# ت

"۳۳"

کبر جـــن شوې ته بـــسیار په دانښایست

د غـــــرور سبب دولـــت وي یا ښـــایست

نـــه آفـــتاب ورتـــه رســـیږي نه مـــهتاب

پـــه جـــهان کې بې مثال دی ستا ښایست

پـــه صورت حَسِین هم نیک یې په سیرت

د ظـــاهـــر بـــاطـــن پیدا کړ تا ښایست

زما غمونه په ... خوږو خندګه شم مفتون

ترشهي مي ...سوا ... نښايست

حسن ستا ښيوه ده عشق زما ښيوه

هغه ستا ښايست دی دا زما ښايست

شي په خاورو آئينه لكه صيقل

ګرد دمخ دې سوا كاندي لا ښايست

چرې چرې حسن آفت شي د حَسِين

د طاووس د ځان خووي بلا ښايست

په ښايست مې د يوسف وكړ نظر

ولې ستا غوندې ونه ليدما ښايست

محبته كه دی حسن يې په داشان

وابسه خلې تمام جهان په دا ښايست

"۳۴"

ليونې دوه هم صحبت يوزه مست هم مې نګار مست

زه دعشق په نشه مست يم دی دناز په خمار مست

زه په عشق مست دی به نازمست خادمان يې مست په بوی

د فارسي مثل اوس جوړشه چې درمست وديوارمست

ته چې وخاندې له شوقه عاشقان شي ليوني

ګل په باغ چې وغوړيږي شي مرغان دګلزار مست

هم بيمارې دي هم مستې دواړه سترګې د صنم

چابه بل ليدلی نه وي په جهان كې بيمار مست

که شراب سکم [1] دَ بهار په فصل ما گنه معذور
زه نا چار یم محتسبه چې وي وخت د بهار مست
ترزرداره دی بد ترکه وي طامع دزرفقیر
ترفقیره دی بهتر که په زرنه شي زردارمست
غم مې نشته عاقبت دی هر کمال لره زوال
خط نمود شه اوس ترکومه به په حسن وي یار مست
یو پیڅوا زه سودا یي وم بل مې نوش کړ د عشق می
لیونی چې شراب وسکي [2] لا سواشي سر شار مست
د ځواني مستی غفلت وي د شرابولیونتوب
چې مستي دمحبت ده د هغې وي هوښیار مست

"۳۵"

روغ به نشي هیچری بیمار د محبت
خدای دې چاته ورنه کا آزار دمحبت
کارور سره مه لره که پوخ نه یې په عشق
کاربه دې ټول وران کادادی کاردمحبت
پریووت چې په بندې [3] بیا په عمرنه شه خلاص
ما آزاد ونه لید گر فتار د محبت
ډ ک کاندي لستوني خپل داوښو په گوهر
سود کا مر غلرې خریدار د محبت
را دې شي مجنون که غرض مندوي د سودا
توددی په ما اوس همه بازار دمحبت

---------------

(۱) چښم
(۲) وچښي
(۳) بندې = بندیې

مــا لــــيوني پــورتــه كــړ آخرتــه په سرخپل
بــار د امــانت چـــې وه دابــار د مـــحبت
ستر ګو مې د اوښو چـــې نـــهر ونـــه کړه جاري
څـنګه به ســـر ســبز نه وي ګلزار د محبت
څوک غواړي دنيا او طلــب څـــوک کـــا آخرت
زه يمه لــــه خـــدايـــه طلب ګـــار د مـــحبت
هيڅ به له نــکتې د محبت نــه شـــى آګـــاه
څـــو چې تـــه ونه لــولې اشعار د مــــحبت

"۳٦"

د ستى پــه يکبيني شه صـــد رحمت ځان يې وسه ولــې پرې يې نښو پت
بې لـــه ياره بــل پلــومــه کوه مــخ مـــې بايد چې عاشقان وي يکجهت
کم ظرفي عاشق نه کاندي چې په عشق حوصله لــويه پــکار ده لوى همت
هــغه کس د عشق له دينه وي مردود چې غوږ کيدي(۱) دناصح په نصيحت
عاشقان دې ملامت نه لـــري غــم تل پــه دا فــرقـــه وايه شي ملامت
جام له عشقه د هغه عاشق وي ډک چـــې لـــه غمه خالي نشي يو ساعت
چـــې قــامت د يار ونه ويني يودم هـــغه دم په عــــاشقانو وي قيامت
هــغه کلـــه د جـــنت اوري بيا ن چې کوڅه وي دخپل يارورته جنت
نه په زور مې کار جوړيږي نه په زر زمـا کار موقوف دى ستا په عنايت
پـــــا کان نه کاهـــلو سعى د دنيا نا پـــاکان کاندي تلاش د نجاست

نورڅه نشته څه په دين څـــه په دنيا
محبت دى محبت دى محبت

---

(۱) کيدې : کښيږدي

## ث

## "۳۷"

| | |
|---|---|
| رقـــیب مـل مدام دیاروي الغیاث | تل له ګله سره خاروي الـــغـیات |
| کارپـــه توره د جفا مې کړې تمام | بیا لــه تا مــې سرو کاروي الغیاث |
| راشــه زرداروېې کړه دابــه زمــا | څو زولـــن د زړه پرهاروي الغیاث |
| څـــنګه نشي پــه فریاد هغه عاشق | چــې دلـبر یې دلآ زار وي الـغیاث |
| چې مې زړه واخیست په ځان دمیني رنځ | هـــمیشه به دی بیمـار وي الغیاث |
| تســلي یې کلـــه شي پــه تجلي | چــې مشتاق دې ددیداروي الغیاث |
| یاپــه زلـــفو یاپه خط یې شي اسیر | مــدام زړه مې ګـر فتار وي الغیاث |

هــغه کس په زمانه کې دی مـــظلوم   چې دلـبر ې ستمګار روي الـغیاث

مــحبته نور رنځـــونه وي و توني

مــحبت دزړه آزار وي الــغــیاث

"۳۸"

کینه[1] پــه هـــوس مینه د یار کوې عبث

ځوان ددې کارنه یې ته دا کار   کوې عبث

هیڅ په غوټه نه لرې سودا به کړې پــه څه

خـــیال پـــه تشولا سو د بـــازار کوې عبث

قـــول که دې لـه فـعله سره نه دی مـوافق

ولې نه شرمـیږې چـــې ګـفتار کوې عبث

باردمینې درونده دی که توان نه لرې دځـان

پـــورته په ســرخپل څله دابار کوې عبث

دین و دنیا دواړه په یوځای چې کوې جمع

ډیر بیهـوده کار کوې بـسیار کوې عـبث

تا چې خپل متاع لـه عیبه نه دی کړی پاک

ولـــې انتظـار دخریـــدار کـــوې عـــبث

وارکړه چې معدوم شي خود به یار وینې موجود

څـــله ودیـــدن ته یې تلوار کوې عـــبث

نه یې مـسلمان چـــې په با طن کې لرې بت

هجوې پـــه ظاهر کې د کفار کوې عبث

رنځ د مـــحبت دی محبته لا دوا

فکر د دارو ددې آزار کوې عبث

-----------

(۱) کینه = کښینه

چې عاشق شوله پرې مې بنوده دین ددنیا بحث
دین داران دنیا داران اوس څه له کاندي له ما بحث
زه په عشق دې ګرمومه دی په عشق ماګر مئ[1]
همیشه لـه خپله زړه سـره مـې کیږي پدا بحث
په غـمزو په کـر شـمو په ادا کـا مناظره
تل دیار له دواړو سترګو سره پروت وي ز ما بحث
دوه مین چې بحث کاندي یولـذت لري عـجب
څـه مزه کـالب شکره چې زمـا وي لـه تا بحث
که تکرار راسره کاندي خو مـحبوب دې کاتکرار
بې لـه بحثه د محبوب مې نه خوښیږي د چا بحث
تـالـه ماسره کـوله چـې پـرون مـناظره
عـجب بحث د کیفیت وه څخونن وکړه بیا بحث
هـیڅ شففت يې په ما نشته نرنا حقه لکه غـیر
هـرساعت راسره یارمې خویا جنګ کاندي يابحث
چې له عشقه آګاه نه دي ولې بحث کار اسره
خپل دکنزو هـدايې دې شروع کاندي مـلا بحث
که دې زړه په بحث کیږي شه بحاث د محبت
نور بحثونه دي ادنی د محبت دی اعلی بحث

---

(۱) ګمئ = ګرموي

داد نیا نجسه نه پریدی [1] خبیث

آلوده په نجاست یې وي خبیث

د اطلاق پاکه جامه نه کا په بر

له قیوده مطلق نه وزي خبیث

هډ ونه ږدي په شاهراه د عشق قدم

همیشه په کږې لارې ځي خبیث

خوبې زړه بیدار وي پاک دی هغه کس

چې په خوب د غفلت راغی شي خبیث

روح یې شي روح القدس چې مري عاشق

روح یې شي پیری پلید چې مري خبیث

صاف کړه زړه له کدورته چې سړی

خود زړه په خباثت کیږي خبیث

ځان اخته کاد دنیا په جواري

بیهوده خپله منکه بایلي خبیث

دخوبانومخ ته نه ګوري زاهد

له قرآنه بې شبهې تښتي خبیث

محبته له شیخانو شه په څنګ

ظاهر ي شیخان باطن کې دي خبیث

---------

(۱) پریږدي

## ج

"۴۱"

چې لرمه ددیدن دې احتیاج ‏ ‏ پـه کرم حاجت رواکړه د محتاج

تا اخیستی دی د حسن په قوت ‏ ‏ لـه خوبانود تمام عالم خراج

ذکرم موجودنه جنس هلته نه نقد ‏ ‏ په بازاردې یوستم لري رواج

چې دعشق بیتابي مخ کا په غارت ‏ ‏ د عالم صبر و آرام کاندی تاراج

تا پـه حسن فلنګ واخیست له لیلی ‏ ‏ ما په عشق کې لـه مجنونه واخیست باج

واخوګکه ګړه [illegible] مخ لګه [illegible] ‏ ‏ چې زه [illegible] زما [illegible]

له حمله به یې اصلاح [illegible] خلاص ‏ ‏ چې سنا میره لګه بازه زه دراج

به څه شان به شي زما او سنا جوړښت ‏ ‏ زړه دې ګالي دی زما زړګي زجاج

نه وی هـــیچری تیاره زمـا په کور    روښان داغ لــرم په زړه لکه سراج
زه له خدایه په هـــردم کوم طلب    چــې په سرمې ایښی وي دمیني تاج
اې بادشاه دد واړه کونه زه لـــه تا
په درخواست د محبت غواړمه راج

"۴۲"

پــه ګمان دیقین ســد کړي وران یا جــوج
بد عــمل یې ته کم نه یــې ترمـا جــوج
عشق دې پریښود بیا و عقل ته رجوع شوې
ولـــې پـــریوتې پـــه ښـــکته لــه عروج
وبـــه نه خـــوځم نا صـــحه زه لـــه عشقه
ته عـــبث پـه غره ډ غـــرې وهې قـــوج
د قـــمر پـــه شـــان بـــه ورسې کـــمال ته
که ځـان وبـــاسې پـه سیر کې لـــه بروج
شه خارج لـه حرصه هم په نفس لعنت کړه
نور خبرمـــه شـــه لــــه رفـــضه له خروج
یـــارلـــه زړیـــه غـــواړه دیرو حرم پریږده
پـه هـــر درتر کومه پروت بـه یې لجـــوج
تـــلاش هـــیڅ نه کا د عشق ګوزن وهلی
کار پـه لاس وپـه ښپو[1] نه شی لـه مفلوج
محبت دوړاندې څه لویې د نطق کړې
و کلیم ته هلو و تینګ به نه شي عوج

---------

(۱) پښو

## ح

"۴۳"

نه داخپل جسم زما دی نه مې روح   زما جسم ته یې جانه ته مې روح

هلویونه دی زما دي دواړه ستا   که قالب می دی دلبره که مې روح

له مدته زړه مې مړدی لکه زه   تاوبنکلی[۱] دی پخوا له زړه می روح

یو مې روح دی ترتا ځاربه کړم هغه   که زما په تن شی هرویښته مې روح

چې مهرویه شي جدا په شپه له ما   وي جدا له تنه درسته شپه مې روح

هرساعت چې ته له سترګومې شې پټ   وي هغه ساعت په تن کله مې روح

چې ته نه یې روح مې هم نه وي هله   چې پیدا شي شي پیدا هله می روح

نیست وهست دروح مې دي له تاسره   ته به وایې چې ده ستا سایه مې روح

---

(۱) کښلی = ایستلی

بې محبوبه تن مې وي لکه مرده
محبته دی محبوب همه مې روح

"۴۴"

| | |
|---|---|
| په جمال کړې خدای صبیح | هم صبیح کړې هم ملیح |
| په ښایست کې ډیر سوا | ترآفتابه یې صریح |
| چې بې مثله بولې ځان | د اکلام دې دی صحیح |
| شگفته مې کاندې زړه | چې د زلف دې راشي ریح |
| په یودم مې کړې ژوندی | چې په شونډو وې مسیح |
| ځای به شي زما په زړه | دا مکان دی ډیر فسیح |
| ستا د حسن لکه نمر | څه حاجت دی د توضیح |
| ته یې نمر یوسف وه ماه | خود ظاهر دی ستا ترجیح |
| په نسیم دې لکه گل | وغوړیږم په تفریح |
| پټ بهتر وي راز دعشق | بدنمای شي په تشریح |

محبته په کلام
نشته تا غوندې فصیح

## خ

"۴۵"

هره ورځ چې ووینم په سحر ستا مخ
هغه ورځ وي د ښادي په لور زما مخ

زلفې ستا متوجه شوې اوس وماته
خدای د چا پلودې نه کاد بلامخ

همیشه د جفا مخ راته ځرګند کړې
راښکاره دې چرې[1] نه کړ د وفا مخ

خوومخ د بیګانه ووته نظر کړم
خدایه راته وښیې د خپل آشنا مخ

---------

(۱) چرې

زه خــوستا دیــدن مــدام غـوارم له خدایه

چــې ســتا مخ و نه گورم گورم د چا مــخ

مــا وې چــرې بــه دې مخ ته گذروکړي

ولــې هیــچرې رانــمخــلې تــه پیدا مــخ

پــه جــهان کــې ډیر مخونه ښایسته دي

ولـــې مــا ونــه لــید ستا غوندې زیبا مــخ

زړه مې مړوه په دیدار دې خپـل ژوندی کړ

بــیا بــه ومــري کــه ورونه ښیې بیا مــخ

شپه شوقدر ورځ اختر په محبت شي

چــې بیگادې زلفې وگوري سبا مخ

"۴۶"

چــې رقیب وشړې کړې ټټر مــې یخ چــې ټټرزما پــرې یخ شي وایم اخ

چــې له شوقه په طلب دې شم روان یوجریب شي راته لار دسل فرسخ

دوست د ښمن دې نه کړ هیچرې معلوم یــارته شاکرې بیوفایه غیرته مــخ

ستا غمونه ټول مې واخیسته پــه خــان چې یې غم وي په بل چادهغه سخ

که حیوان نه دی انسان هم نه دی غیر په انسان وپه حیوان کې دی برزخ

بیا به تــرې نــه وه وتلی که یوسف پریــوتلی وی پــه چاه دې دزنخ

ســتاله مخه ددیدن غواړي یوتوک

محبت چې دې گدای دی د مطبخ

"۴۷"

شــه پــیدا هغه هلــک داهــسې شــوخ

چــې نه ترک دی نه اوزبک داهسې شوخ

پــه خوی شوخ دی په زړه کلک لکه حجر

نــشته بــل داهــسې کلک داهسې شــوخ

لــه راست بــازوسره کــوروي هــميشه

خــدای پــيدا کړ دافلک داهــسې شــوخ

پــه شــوخــي کې دی يــکتا زمــا نگار

بــل بــه نــه وي بلاشک داهــسې شــوخ

شــونمک خواره دې شوخ په گــستا خي

ستا د حــسن دی نمــک داهــسې شــوخ

لــکه خــال دې کــا زمــا په زړه حملې

افريــدی وي نــه ختک داهــسې شــوخ

مــر دمــان وژنــي مــدام شــه افريدی

ســتا د سترگــو مرد مک داهــسې شــوخ

مــحبته ستا د شــوخ بــرابــر بــل

له شوخي به نه وي ډک داهسې شوخ

## خ

"۴۸"

هــغه ســحر ګــرمې زړه يوسي پــه هـــيڅ

نه کــرم نــه تلــطف نــه هيڅ نــه هــيڅ

تــرويــښته يــې ملانرۍ خــولــه يې تنګۍ

که يې ګورې ملايې هيڅ هم يې خوله هــيڅ

حــرف يــې يــونــه دی قــابل د اعــتماد

کــه پــه ورخ اقرار وکــاندي په شپه هــيڅ

د مــعصــومــو پــه مثال خــبرې کـــا

ته بــه وايــې دی هــلک نه يې زده هـــيڅ

په خبر ومې غورېنه ږدي له جفا
گله واوري يوه نيمه گله هيڅ
څوله يې هيڅ ده په څه شان يې کړم بيان
څوک بيان به څه شان وکاندي ده هيڅ
که څوله راکړي هيڅ به کم نشي له ده
داوماته لوی دولت دی ده ته هيڅ
بې له عشقه نورې چارې دد نيا
همه هيڅ دي همه هيڅ دي همه هيڅ
که هر څود محبت گناه دي ډير
چې وستا کرم ته هيڅ دي شي به هيڅ

## د

## "۴۹"

زه په عشق کې یم استاد[۱]     د مجنون هم د فرهاد

هغه هیر کړلم افسوس     چې هردم مې دی په یاد

ستاله لاسه هم له تا     فریادي یم غواړم داد

که انسان یې په خلقت     په ښایست یې پریزاد

هر عنصر مې دی دعشق     آب و خاک ونارو باد

دنیا طلب له دنیا     هم ناښاد ځی هم نا مراد

دوه فتنې دي ستا د ځان     یو دی مال دی بل اولاد

-----------

(۱)اصل : اوستاد

مـه تـړه زړه پـه دنـیـا		څـه دنیا څـه یـې بنیاد
شـه اسـیر پـه دام دعشق		چـې هـر بند نه شي آزاد
پـه یـودم کـې مـحبت
یـوعالم کـانـدي بـرباد

"۵۰"

نـابـود شـمیره همه بود		هـر مـعصوم گڼه مـوجـود
سـرگرم اوسـه په سـودا		یـوپلـو کړه زیان وسـود
مـه زیـریږه پـه نـقصان		مـه خـوښـیږه په بـهبود
که راضـي کړې خپل صنم		خدای بـه شي درنه خشنود
څـخـوو مـړه پـه لاس		دواړه سـترگې خواب آلود
چـې شي فـرق درته ظاهر		د خـلیـل ود نـمـرود
هـر زاهد چې وي دوبـین		مـسلـم نه وي وي جـهود
رحـمن نه وي وي شیطـان		مـقبول نه وي وي مـردود
د غـفلـت پـه عـبادت		حاصـل هیڅ نه شه مـقصود
نـه عـابد دې کړم معلوم		نـه دې وپـیژ انـد معبود
مـحـبـته یـې د عـشق
پـریږده هـر گفت و شنود

"۵۱"

شهد وقـند نـه لري ستاد شـونډو خـوند
تـرخوږو شونډو دې ځـار کـړ شهدوقند
قـوتنـاک چـې زنـځیر ونـه مـاتـئ (۱)
کـه هـا تیان وي هـم د زلفو کړي په بند

---

(۱) ماتوي

يــوزه څــه يم كــه دادى كــمند د زلــف

تــول جــهان بــه اســير كاندي ســتا كمند

عــجيبه سيا مــار دى ســتا د تــور ګيسو

چـــې حــيات دې وي ښامــار وي په ګــزند

لــه صــورتــه ســره جــمع كــړه سيرت

چــې دې حسن لا د پــاســه شــي دوچــند

وكــوم ځاى دې دښــايست وكــړم تعريف

ســرتــر پــايــه دلــپــذيــرې دلپــســنــد

څــه نــازنــين يــې چــې دځسن په قــوت

ماتــې[1] دپــهــلوان لــيــچــې مــړونــد

دهــجــران پــه غــم مــې زړه زهــيروې

په وصـــالى نــه كــړې زمــا خاطر خورسند

وروستو[2] پاتې شي ترې نورسواره دشعر

مــحبت چــې دقــلم تــيزي ســمند

---

(۱) ماتوي

(۲) وروستو= وروسته

ړ

"۵۲"

زړه مې هسې شه د زلفو په هر تار ګله

مسلمان لکه چې شي په هندو بار ګله

زه غريب په خال و خط کې دې اسير شوم

خدای څوک نه کا دهندوانو په ديار ګله

مخ دې هسې دی په ميان د تورو زلفو

لکه يووي مسلمان په زر کفار ګله

له ښادي چې په سينه کې زړه ګډيږي

چې په خيال مطرب بچه شي په رفتار ګله

کــه لــذت دمی مــعلوم کــړې پرهیز ګاره

اوس بــه ځـان کــړې دمــیخوارو په قطار ګله

ګـــله یـــده پـــه دربارنه کـــیږي بـــې نڼ ره

خـــالي لاس بـــه خنګه شـــې په لوی دربار ګله

هـــیڅ په غوټه نـــه لـــرې څه بـــه سوداکړې

هـــغه ورځ چـــې شـــې دحـــشر پـــه بازار ګله

دبـــلـــبلې مـــې آواز چـــرتـــه وانـــوریـــد

خـــوزاغـــان دي ددې دهـــر پـــه ګلـــزار ګله

مـــحبت لـــه مـــا ســـره دی ترابده

لـــه ازله مـــې په زړه شه دا آزار ګله

## ذ

### "۵۳"

په کنځل[۱] کړې زما حلق و کام لذيذ
لب شکره چې لرې دشنام لذيذ

که چاوسکه[۲] نورلذت به يې شي هير
وي دعشق رمي‌داهسې جام لذيذ

له خوږې خولې دې راووزي هرزمان
ځکه وي داهسې ستا کلام لذيذ

داکه چه خبرې ستا کاندي لذت
دطفلانوخو الفاظ وي خام لذيذ

ما لذت بياموند دعشق په بيتابي
په دنيا وي که هر څو آرام لذيذ

زړه مې شي چې ودې ژوېم سرتر ښپو
نيشکر يې ستادی هراندام لذيذ

شي کافر دې ستا دزلفو هغه کس
که په زړه کې لري څوک اسلام لذيذ

-------------

(۱) ښکنځل

(۲) وچښه

پوشیده نه ده دسترکو دې مزه    البته هر چاته وي با دام لذیذ
دهغو په زړه چې کاندي عاشقي
بې شبهې دمحبت وي نام لذیذ

"۵۴"

که عشق نه لري دیندار به شي ماخوذ    دادیندار لکه کفار به شي ماخوذ
یود عشق گناه دی خدای وته مقبول    په بل جرم گنهگاربه شي ما خوذ
لږ گناه دې سړي ډیر گڼي په زړه    که کم وگڼي بسیاربه شي ماخوذ
لیونی کړه ځان په عشق کې چې شي خلاص    د قیامت په ورځ هوښیار به شي ماخود
د دنیامه کوه کار چې مسلمان    که ماخوذ شي پدا کار به شي ماخوذ
چې ځوک نشي د خوبانو درباري    هغه کس په لوی درباربه شي ماخوذ
بې له عشقه که ځوک کاند گفتگوی    مقرر پدا گفتار به شي ماخوذ
وي نجات د آخرت په نیک عمل    په عقبی کې بدکرداربه شي ماخوذ
محبته لاس کړه پورته له دنیا
چې پوهیږي دنیا دار به شي ماخوذ

ر

"۵۵"

چــې لــه عــشقه لري كار ‌ ‌ ‌ ‌ دهــغــه وي الله يــار
پــه هــر آن د اهــل عشق ‌ ‌ ‌ ‌ مــحمد وي مــدد گــار
عــشق دوزخ كاندي جنت ‌ ‌ ‌ ‌ عشق خارزار كاندي گــلزار
عــشق اغــيار كاندي ياران ‌ ‌ ‌ ‌ عــشق اشرار كاندي ابــرار
عــشق بندي كــاندي آزاد ‌ ‌ ‌ ‌ عــشق مجبور كاندي مختار
عــشق مــحتاج كاندي غني ‌ ‌ ‌ ‌ عــشق گداى كــاشهر يار
عشق بيهوښ كاندي په هوښ ‌ ‌ ‌ ‌ عــشق غــافل كا خبر دار
عــشق عــلم دى دنــبــى ‌ ‌ ‌ ‌ عــشق دى نــوم دكرد گار

عشق رحیم دی هم کریم　　　عشق ستار دی هم غفار
د عشق ګرمه ده سودا　　　دعشق توددی لوی بازار
ترقیامته دي په عشق　　　آسمان مزکه برقرار

چې مې نوم دی محبت
خود عشق یم سزاوار

"٥٦"

وایې مذبدب خبره کا چې هغه یار
نه یې په وعده کې وي اقرار نه یې انکار
همره آزادي مې ده له غمه د جهان
څو چې ستا د زلفو یم په بند کې ګرفتار
بې له خپله زړه چې پکې یار دی جلوه ګر
هله وآئینه مې د سکندر نه ده پکار
ستا د زلف خوړلي خو رغیږي هم په تا
روغ به په پاړونشي خوړلي ددې مار
وخت د مینو شي دی ساقي راکړه جام دمې
هسې نه چې تیر شي داموسم د نوبهار
یودلبر زمادی دلکونو برابر
ګرچه دي خوبان پدا جهان کې صد هزار
ستا شونډې په هردم حیات بخشې دي زما
څله بیهوده د مسیحاشم منت بار

یارچې په خنداشي محبت کاندي فریاد
ګل چې وغوړیږي عندلیب کاندي چغار

"۵۷"

کــه نــظر وکــا په مخ د ګلعذار عــندلیب بــه بیاونه ګوري ګــلزار
ګل په سترګومې اغزی شي هغه دم چــې پنهان شي مخ زما د ګلرخسار
په دیــدن دې په پیری شومه ځلمی چــې تاووینم خزان مــې شي بهار
شــي زما د زړه غنچه به هــله ګل چــې ګــلروي مې راشي کيني[1] په کنار
پژمرده زړه مې ګل ګل شي شګـفته ګــل چې کیدي[2] ګلعذارمې په دستار
شه یقین مې چې په ګنج وي د مارځای چــې مې ولید ستا په مخ دزلفو مار
شه نرګس چې ستاد ستر ګو مشابه دا بــیمارې وي هــغه هم شه بیمار
دمــنصورخــودار و یــو تاد بڼو ودر ول ومــالــره زرګــونــه دار
اوښې توی مې کړې په مخ لــکه باران ولې ورک ترې نشه ستا د زړه غبار
د دنــیا یــاران لــري ددنیا خوی دا یاران کــله اغــیار شي کله یار
سست لــه ویځه دی داقــصر ددنیا عــمارت یــې هــډونه دی استوار
ډیر عــالم پخوا لــه تا نه شه ترې تیر هــسې ســتا دی په هغوپسې رفتار
د آســمان له ګـردشونو وکړه فهم دا ځــای نه دی دســکون و دقرار
غــرض داچــې په د نیا مه تړه ځان د هــیچا راغــلې نــه ده دا پــکار

تــربیــت لــه مــحبــته دی زمــا
محبت دی که مې مورده که مې پلار

"۵۸"

تل د قــتل مې آهنګ کــا هغه یار همیشه را ســره جنګ کا هغه یار
مــخامخ غــاړه غړی شي له هر چا یوله مــانه ځان په څنګ کا هغه یار

---

(۱) کښیني

(۲) کښېږدي

په تلواربه زه خپل ځان کړمه هلاک     کــــه زما په قتل در نګ کا هغه یار
ملک دخدای چې هومره ډیرلری وسعت     لـــه هـجرانه په ما تنګ کا هغه یار
چـې مې زړه لکه ښیښه وینې نازک     زړه کرخت په ځیرد سنګ کا هـغه یار
درست جهان یې په جلوکړ رنګارنګ     تجلی چـې رنګ په رنګ کا هـغه یار
که په عشق یې دعاشق ځـی ننګ ونام     څــه پــروا د نام وننګ کا هـغه یار
که داهــسې شمع روی دی شعله خوی     مـا په ځان به خپل پتنګ کا هغه یار

مــحبت کـــړه مــصله ورپسې لــنګ
عـــاقبت بـــه یې مـــلــنګ کا هغه یار

"۵۹"

هـــسې یـــون کـــاندي د عـمر کاروان زرزر
لـــکه شـــي قاصد مـقصد ته روان زرزر
هـــسې زرزر تـــرنــظره مـــې تـــیر یـــږي
پـــه وحشت لکه هـوسی شي دوان زرزر
هـــسې ذکـــر دې پــــه ژبـــه مې جاري دی
لـــکه ښه حـــافـــظ چې لولي قرآن زرزر
هـــسې اوښې مې لـــه ســـترګو په شیبوځی
د ســـاوڼ لـــکه وریـــږي بـــاران زرزر
هـــسې زرزر و عـــاشق ته غم نـــصیب کا
لـــکه کـــانـــدی ګرد شونه آسمان زرزر
هـــسې ریـــږدم تـــول د مـــینې لـه هوانه
لـــکه خـــوځي پـــه سیلی در ختان زرزر

هــسې واردنــیا تــیر شتاب شتاب شي
مــحبته لــکه خــوځي مــژګــان زرزر

"٦٠"

هــرڅوک چــې زما په لیونتوب کــاندي نظر
وایي چې مجنون سره هــم دی دی سر په سر

غــل پــه تــوره شپه کا غــلاد لبر په رڼا ورځ
راشي زړه مــې یــوســي زه اصــلاًنه شم خبر

شــونډې خــپلې دواړه په کلام چــې خوځی [1]
مــز کــه آســمان دواړه ســره شـــي زیروزبر

زلــفې دې کــافر دي که دې مخ دی مسلمان
هم مــې مــسلمان بــیګناه وژني هم کــافر

نــمرېې تا د خدای هــغه سپوږمی وه د کنعان
حــیف دی لــه یوسفه سره ځــان کړې برابر

شــونــډې لا له [2]یار راکــادسرمــې په بها
دا خــوبي د هــند ده چــې ویړیا مومم شکر

ګرزم په طلب دې څه شوناست که یم په ځــای
تــل وي لــکه ژرنده په خپل کورکې می سفر

شپه شپه د شوقدر شي چې یاد دې کړم مابــام
ورځ ورځ داختر شي چې دې نوم واخلم سحر

نوم مې که پوښتي څوک یا هنر غواړي له ما
نــوم مې محبت دی مــحبت مــې دی هنر

---

(۱) خوځوي
(۲) لاله = راله

"٦١"

پټ پنهان دی تل کاروان روان دعمر
بې جرسه ځی خاموش کاروان د عمر
په ځواني ګلزار د عمر شګفته وي
په پیري شي پژمرده بوستان د عمر
په وصال د ګلرخسار وي بهار دی
وي ددوی په بیلتانه خزان د عمر
مسافرې [1] په یوځای اقامت نه کا
نه شه هیچا ته معلوم مکان دعمر
ځووهي سترګه سمندد عمر تیر شي
لکه برق وي خویودم جولان د عمر
له یوسره تربل سره یو قدم دی
تنګ ښکاره شه راته ډیر میدان د عمر
چې ترړلی وي په دم ویسایې ځه ده
هیڅو مه لره امید یوآن د عمر
لکه شګې د ساعت دښیښې ریږي
هسې ریږي شګې هر زمان د عمر
لکه عمر وفا نه کا محبته
بیوفا دي دلبران په شان د عمر

"٦٢"

تول جهان کړمنور دادې مخ دی که قمر

---

(۱) مسافرې = مسافرېې

مخ سپوږمی تږي پتۍ[1] داځهره دې ده که نمر

زما زړه کاندي شيرين دا دې لب دي که شکر

د حيات او به لري دا دې خوله ده که کوثر

مرغلري شرمی[2] دادې غابن دي که گوهر

معطري[3] کړم په بوی دادی زلف دي که عنبر

آزاد سروې شه غلام دادې قددی که عرعر

زړه مې غوځ کړستا بڼو دابانه دي که خنجر

نه نرميږي په هيچ شان دادې زړه دی که حجر

يادې زړه دی لکه سنگ يامې آه دی بی اثر

يامې نشته جوهري يازه نه لرم جوهر

يا سحر نشته په دهر يامې شپه نه شي سحر

يامې درد دی لا دوا يا طبيب نه دی خبر

يازه يم له سترگو پټ يا عالم شه بې بصر

يا شه ورک آدميت يا همه دي خناور[4]

په صورت واړه انسان په سيرت کې گاووخر

په صورت لکه شمشاد په سيرت کې بې ثمر

په صورت روغ لکه بت په سيرت کې کور وکر

په صورت اعجاز نما په سيرت کې جادوگر

په صورت د خير په شکل په سيرت کې همه شر

محبته محبت

کړه پيدا که يې بشر

---

(۱) پټوي

(۲) شرموي

(۳) معطري = معطرېږي

(۴) اصل : خانور

رندا نه مــزاج زمــا به نــه شي نور — که سل خــله کاز اهد راته پیغور

شمع روی يې چې خپل مخ لرې روښان — شعله خوی يې چې خصلت لرې داور

د فلــک کاسه خالي ده چې دا جام — لــه ازله خلق شوی دی نسکور

که ویرړ یانوړې مــفت بره را نه زړه — راته وایه څه دي ستا راباندې پور

په تلاش يې عبث ستړی مــې کړ ځان — معشوقه آخر مې بیا مونده په کور

په کوم ځای څوک يې مد فون کاندي هیهات — امـان غواړي له وژلي نه دې ګور

څوک په زورمعشوقه مومي څوک په زر — زه خوارځـــه کړم چې نه زرلرم نه زور

ستا په شان به بل فــرزند نــه کاپیدا — که په ځان آســـمان يې پلار شي مزکه مور

زړه مــې دی د مـــحبت په غــوړ وغوړ

تــه زاهــده یــوســه خــپل دازهد سپور

ړ

"٦۴"

عالم واړه وړاندې وروستوله[1] دنیا لاړ

څوک دتلو په تیاري دي څوک پخوالاړ

دهوسۍ په شان مې تیر شه ترنظره

نه پوهیږم آهو چشم کومه خو الاړ

په تکي د زړه مې لګي هر نګاه ستا

ماونه لید چې یوغشی دې خطا لاړ

هر یو ستوري درته ستر ګې دي نیولې

شور دحسن دې له ارضه تر سما لاړ

---

(۱) ورستو = وروسته

لـه بـرقع نه دى چې مخ راته ښکاره کړ
ستا هيڅ لاړنه شه کـه لاړ خوزړه زمالاړ
د رقـيب سفلې وکـورته چې ته لاړې
په مخلوق کې شان شوکت همه ګي ستا لاړ
بې خبر هـيسته راته ولې افسوس دى
چې نـظر يې پـه مـا پريووت بيرته بيا لاړ
مـا پـه زړه ديار تصوير وکيښ فـارغ شوم
اوس مې هـيڅ نـشته پروا چې راغـى يا لاړ
پـه خـندا به هـغه كـس له ګوره پاڅي
چې پـه غـم د مـحبت كې په ژړا لاړ

"٦٥"

شـيرين لبه مادزړه چې ګوهـرمـات كـړ
مـا فرهـاد غوندې دغم په غره سرمـات كړ
پـه يـقين مـې در وازه كـړه دشک مـاته
لـكه شـير عـلى چـې در د خيبر مات كړ
د تـوبې درچـې مـضبوط مـې وه ترلـى
پـه يـوه جـام مـې سـاقي هغه درمات كړ
مـادصـبر وې لـښكر ې تـولې كړې
عـشق چې راغى په يودم دالـښكر مـات كړ
خرڅئ [1] نه څوک شكرې نه څوک پيري
شيرين لـب دې چې بازار د شـكر مات كړ

---

(۱) خرڅوي

په جهان کې اوس عنبر دي بې رواجه
بوی دزلفو دې ناموس د عنبر مات کړ
هر یو قول چې په سوګند دې مؤکد کړ
په هغه دې درنګ هم ونه کړ زرمات کړ
زړه مې خپل کړ سپیلنی د عشق په اور کې
ستا له مخه مې دخلقو نظر مات کړ
ډېر آرمان به کړې سنګدله درته وایم
که دزړه د محبت دې ګوهر مات کړ

"٦٦"

هم پدامې د هیڅ کار تدبیرونه کړ چې یوکار ونه شه څوتقدیرونه کړ
لکه نمر له بیګا لاړې سبا راغلې وایې بیا ما په را تلو تا خیر ونه کړ
زما آه غرونه سوري کړه په حیرت یم ستا په زړه سنګدله هیڅ تا ثیرونه کړ
چې درجه دشهادت دې لاله [1]را کړه تازما په حق کې هیڅ تقصیر ونه کړ
نور عالم دې مزور څه لره بولې بې له ماخودې په چاتزویرو نه کړ
لیونې دې زنځیرونه آخر مات کړل چې ستا زلف کاوه هغه زنځیرونه کړ
وکعبې ته د مقصود څنګه به رسي
محبته چې تایوشبګیرو نه کړ

"٦٧"

اې له مانه چې پوښتې زړه دې چایوړ
زړه مې بل څوک کله وړی شی اشنایووړ
دادستور دی دلبران زړه په وفاوړي
بې د ستوره تا مې زړه په جفا یووړ

-----------

(١) لاله = راله

پــه انــدازو پــه اداچــې راښکــاره شــوې

زمـــا زړه دې پــه انـــــدازو ادایـــوور

یــو ذره مـــهر والفــت ډرخـــخه نــشـــته

نــه پــوهــیږم زړه پــه څــه دې له مــایوور

مـــاوې نــن شپه په آرام بــه څــخو خوب کړم

خـــیال دې راغـــی خوب له سترګو زمـا یوور

زړه مـــې غـرغو ندې محکم وه ولې څــه کړم

لـــکه خـــس هـــسې د مـــینې هـــوا یـــوور

مـــاوې زړه چـــې له مـــاوړي خوله خوبه راکا

ولـــې هـــیڅ لالـــه [1]را نـــه کړه وپـرپایوور

بـــې قـــیمته دې زړه مـفت لـــه مانه واخست

بـــې بـــها ګـــوهـــر وه تـــا بـــې بـــها یوور

هـــیڅ نظـــر دې وژړاتـــه یې ونـــه کـــړ

تـــا چې زړه د مـــحبت پـــه خـــندا یوور

"٦٨"

عـــشق یې راغـــی دزړه تاب راخـــخه یوور

خـــیال دیار دسترګـــو خواب راڅخـــه یوور

راښکاره چې د ساقي شوې مـــستې سترګې

کـــیفیت یـــې د شـــراب راخـــــخه یـــوور

-----------

(١) لاله = راله

شـــهد څــه کړم چې خوږوشونډو دې جـــانه

ټــول لــذت د شـــهد نـــاب راڅـــخه يووړ

چـــې يـــې اوښـــې کـــړې زمـاپه مـــخ رواني

آخـــرغـــم دې د مـــخ آب راڅـــخـــه يووړ

وګـــزک لـــره يـــې وريـــت زړه مې پـکار وه

مـــست مـــې راغی دا کـــباب راڅـــخه يووړ

عـــشق نه زه پـريښوم نه صبروتاب مې پريښود

هـــم يې مـــړکـــړم هـــم اسباب راڅخه يووړ

هـﻠـه ودرنـــګ يې هـــم دزړه پـــه وړه ونه کړ

خـــوهـــم هـــسې پـــه شـــتاب راڅـــخه يووړ

چـــې داوښـــومـــې درياب په جوش کې راغـی

زمـــا کـــور،لـــکه حـــباب راڅـــــخه يووړ

چـــابه وړی نه و،زړه مـــې ولـــې څـــه کړم

مـــحبت خـــانه خـــراب راڅـــــخه يووړ

## ز

## "٦٩"

زړه مې صید نشي څه شان ستا دناز چې تارودی زړه زما هغه شهباز

قاتلان دي ستا غمزه وکر شمه دلبران دې هم اداهم دې انداز

هر آزاد به ته په گوډوکړې بنده خدای پیدا کړې چې داهسې سحرساز

که آه نه کاندي عاشق په غم کړي څه اوکه آه کاندي هم آه یې شي غماز

مجازي مینه هم ښه ده چې آخر شي رهبر و حقیقت وته مجاز

په کلام ددلبری ته یې آگاه په سخن پوهیږي هم سخن طراز

دعاشق کوتاه له غمه یې شي عمر چې ونه ویني داستا گیسو دراز

څــــه حاجت دی دقاصــــد ودربیار    دعــاشق دمعشوق زړه په زړه وي راز
په آغازکې زړه مې خون شه ستا په عــشق    څه انجام به وي چې دايې دی آغاز
عــاشق هغه دی چــې وي پروانه وار    که په اورسوزي له خولې نه کا آواز
څه بتیرې چې شهبازې[1] وکا ښکار    ســـتا دناز کــله لایق دی زما نیاز
مــــینه کا بادشاه پــه یودم کې غلام    که محمود وي هم په عــشق کې شي اياز
هـــغه رســـي وساحل ته د مقصود    په دریاب د عشق چې ډوب کاخپل جهاز
ســـمه لارواخله د عشق چې ددنیا    شي یکسان درته نشیب دی که فراز

زړه[2] ژوندی دمرده دلوکړي په حرف
پــه کــلام کــې مــحبت لري اعجاز

"۷۰"

غـــم ښادي به بـــرابر نشي هـرګز    عـــاشـــورا ورځ د اختر نشي هرګز
رذاله به اشرف نشي په هـــيڅ شان    تورې خاورې به سپين زرنشي هرګز
که آسمان يې په سروګرزي درست عـمر    کـــم بختان به بـــختور نشي هــرګز
که هرڅودي په صـورت کې دواړه يو    تورتبی به ســپين قـــمر نشي هـرګز
که د درست جهان شي تيل وربانده ی خرڅ    چــراغ روڼ به لکه نمر نشي هرګز
که هرڅوکوډې ښکاره کا سحرګر    پـــه جـــادوبه پـــيغمبر نشي هرګز
کـــه يې ونه په شراب شي زرغـونه    کال کونډې به لـکه کُوَر نشي هرګز
کـــه هرڅوېې کړې په شهدو آلوده    ولـــې زهـــر بـه شکر نـــشي هرګز

مـــحــبت نه لري مثـــل پـــه کلام
شـــاعـــران به يې همسر نشي هرګز

---

(۱) شهبازې = شهبازیې
(۲) اصل = زره

## س

"۷۱"

کله کیږي حق شناس
په تنگي کې ناسپاس

شي نعمت به دې روزي
شکر کړې که په افلاس

د شیطان په وسوسو
په زړه مه راوړه وسواس

گمان لرې کړه له زړه
د یقین سورشه په آس

کړه په ملک دکفر هو
د ایمان توره په لاس

که قیاس دی که دلیل
وسوسې دي دخناس

چــامــونــدلی نه دی حــق　　　پــه دلــيل وپــه قــيــاس

مــــحبـــته دنـــيــا دار　　　ســـراســـر لـــري لـــبـــاس

ظـــاهـــر ډک بـــاطـــن يې تـــش

بـــې مـــعنـــــی لـــکه شـــــناس[1]

"۷۲"

وبـــه کاخونونه ډيربـــې حـــدوبې قـــياس

نـــن هغې خونريزې په نـــکريزوسره کـــړه لاس

راوړي چـــې قـــاصدنامه دیاره زه پـــه شوق

هـــم په ســـترګو ږدم هـــم ښکلوم هـغه قرطاس

څـه شوکه خاربه دي فاسـقان په ډيرخواړه

ولـــې عـــاشقان يې د اخر ښنت ګـــنې آمـــاس

کاندي به سواره د عقل وهوښ واړه پياده

نـــن هـــغه شهـــسوار يې که دناز سورشي په آس

بـــيت د عـنکبوت دی عـمارت ددې دنيا

ويخ يې مـستحکم نه دی ډير سست لـري اساس

اوس خـــويې دزلفو له حلـقې نه شم وتی

څـــه کـــړم په مـــاراغلـــه دابلا د چـــپ و راس

ډيـــر قصور کوي په پرستش د خپل صنم

شـــرم نه لـــه خـــلقونه له خدايه کړي هـــراس

هـــلوودې ونه پيژاند ابـــليس د آدم شکل

هـــيڅ دې فـــرق ونـــه کـــړد نـــاس ود خناس

---------

(۱) شناز

خاورې يې د درکړه تورې خپل لکه ملنګ

قــول دی مــحبته چې الناس مع اللباس

"۷۳"

که په خوب کې مې روزي شي ستا وصال بس

کــه داهــم په بــخره نشي ستا خــيال بس

نــور عــالم د تــماشــو دې هــوس کاندي

وعــاشــق تــه ننــداره ستا د جــمال بس

د ازايل حــسنو نــه څه پــه کــارو مـــاته

هــغه يــو حــسن چــې نه لري زوال بس

پــه هــزار دام ودانــه بــه ونــه غــولــيږي

د عــاشق دام ودانــه دي خــط وخال بــس

طــالبــان د بادشــاهــي دې هــمای غــواړي

و طــالــب تــه دې داسوری د دوال بــس

زه رنــا د مشال څــه کړم پــه خپل کور کې

چــې مــې داغ دزړه بــليږي دامشــال بس

داغ د عــــشق زمــــا زړه دام ودرم دی

کــه نــور مــال دد نــيا نه لرم د امال بس

چــې ولــونــه دخــپل يــار دزلــفو سم کا

وعــاشــق ته په درست عمر داجنــل بــس

ددنيــا لــه هــنرونو کــه عــاري يې

مــحبــته مــحبت دی يو کــمال بس

"۷۴"

عشق لذت لري عجب پرې عاشقان پوهيږي بس

دا يمان په كيفيت اهل ايمان پوهيږي بس

په هر چاچې څه تيريږي هم هغه ته وي معلوم

په جفا ددلآ زاره زما ځان پوهيږي بس

هم له خدايه خبر داروي عاشق هم بې له خدای

دكلي جزيي په حال خويوانسان پوهيږي بس

ملايک په دې محرم وي چې دې ځای دی پاس په عرش

دآسمان خوپه احوال اهل آسمان پوهيږي بس

په حكمت يې حق حيران دی دلقمان بيچاره عقل

په حكمت خپل پيداكړوني دلقمان پوهيږي بس

بې له ياره څوک معلوم نه كا خوبي مې دكلام

په انداز دسخن باندې سخن دان پوهيږي بس

څه قدرت لري بنده چې يې معلوم كاندي قدرت

ديزدان په قدرتونو هم يزدان پوهيږي بس

چې په دردمې نه پوهيږي څه داروبه كا طبيب

زه دياردرد من يم يارمې په درمان پوهيږي بس

محبت به درته وښيي هر راز دمحبت

په اسرارد محبت محبت خان پوهيږي بس

"۷۵"

وفا دارهم جفاكار دی هغه كس    هم دلدار هم دلآزاردی هغه كس

دښایست یې دکوم ځای وکړم تعریف    سرتر ښپو[1] څړه نګار دی هغه کس
په عاشق چې یې رضاوي هغه کا    چې صاحب داختیار دی هغه کس
له یارانو سره غیر دی هی افسوس    له اغیاره سره یاردی هغه کس
دادر یاب چې دی محیط ددرست عالم    دمحیط درشهوار دی هغه کس
مخ یې ګل شونډې لا لا[2] تن یې نسرین    سراسرهمه ګلزارد ی هغه کس
دتعریف یې هیڅ قدرت نشته زما    چې قدرت دکردګار دی هغه کس
ته به وایې چې وریږې ترې خوشبوی    چې په زلفو عنبر بار دی هغه کس

محبته نازکوه په درست عالم
چې دزړه دې طلبګار دی هغه کس

"٧٦"

د عاشق کله مخی وي بوالهوس    البته چرته پتنګ چرته مګس
دمحبوب مې بل محبوب نلږی همسر    د شاهین به برابر نه شي تپس
یکسان مه ګڼه له ماسره رقیب    امتیاز وکړه دکس و دنا کس
خدای محتاج دې سړی نه کا دهغو    چې بیلتون نه کا دبازو دکر ګس
څوچې دم دې تله راتله کاندي په تن    بې له یاده یې تیرنه کړې یونفس
ګلرخساره په ماهم لره نظر    عاقبت دې دګلزار یم زه هم خس
عمرمه تیروه بې آه ونا لې    له کاروانه سره تل بویه جرس
خپل ګفتارې که آفت نه وی دځان    پریوته طوطي به ولې په قفس

چې عاشق یم خود عشق لولم اشعار
یود یوان د محبت مالره بس

-----------

(١) ښپو

(٢) لاله

"۷۷"

سلــطنت دفریدون وکیــکا ووس کلــه پېري عــاشقان پــه یوفلوس

هغه کس عاشق باله شي چې په عـشق نظرنه کاندي پـه ننګ وپـه ناموس

د مجاز ښایست بــې عیبه کلـه وي چــې وښـپو[1] ته نظرکا ژاړي طاووس

زه تــاجـــدار یم دمـــستانو مــالره ساقي راوړه هغه می چشم خروس

خپل خاطر که آئینه یې کړې دمـخ وبـه ګورې پکې عکس د معکوس

دوه مــین خبرلري چــې زړه په زړه نه قاصد هلته پکاردی نه جـاسوس

که قیامت دی خوساعت دبـــیلتانه دغه وخت دی قمطریردی که عبوس

عاشق هغه دی چې وي پداغ دعـشق په کوګـل کې زړه یې بل لکه فانوس

که بخت نیک غواړې پیداکړه محبت

شي مــعسود په محبت کې هرمنحوس

---------

(۱) پښو

## ش

"۷۸"

هرعاشق چې د معشوق وي په تلاش فـکر نه کـاد مِـعادو د مـعاش

عـاشـق راز خـوپټوي ولې کاځه وچې شونډې ګونه زيړه يې کا فاش

پـه تمثيل کې په دوه کونه ستانظير خـوک به نه کړم چې نه يم بهتان تراش

دوه مين چې سره کا بـحث و تکرار دې ته وايي خوږ نزاع شيرين پـرخاش

پـه چړې دغـم هغه دهـقان پسر خټکي هسې مې زړه کاندي قـاش قـاش

څه عجب دی لوی دولت د عـاشقي په مالدار کاندي خندا دعشق قلاش

د کـنځل [1] نه لرم غـم ومې کنځه [2] که وتاته خـوک ونه وايي فـحاش

ستا په عشق کې به کوم ترکومه زيست دمـزری په خوله زمادی بـودوباش

---

(۱)(۲) بنکنځل ؛ بنکنځه

څـه بـهتر د مـحبت کـوې بیان

مـحـبته په ویلـو دې شـا بـاش

"۷۹"

چې داهسې شوې پیدا پـه خوی‌آتش  همیشه بـه زړه زمـا کړې مـشوش

ترقیامته دې افلاک کاندي ګـردش  بـل پیدا به نه کا تا غوندې مهوش

بـې لـه عـشقه رغیدن نشي زمـا  چـې زه یم دمې دمـینې پیاله کش

هیڅ حاجت څـهره یې نه لري دنقش  مـشاطه یې مخ څه کاندی منقش

و ازمـیه دغـم په اوروری کـړه تاو

محبـت په محبت نه لـري غـش

# ص

"۸۰"

شې به خاص الخاص بنده که مې کړې په اخلاص

مې که په اخلاص کړې شې بنده به خاص الخاص

وصل که په مـرګ مومي عـاشق کاندي خوښي

شـمع چې بې سـيزي شـي پتنګ ورته رقاص

مـرګ د عـاشـقانـو دی وتـا وتـه ويـړيا

وژنـه يـې لـه شوقـه له تا څوک غواړي قصاص

نـه وزي [۱] لـه شـوقـه ستـاله دامـه اسيران

ته خويې پـريدې [۲] ولې که دوی کاندی ځان خلاص

---

(۱) اصل : اوزي

(۲) پريدې = پرېږدې

خــاص په یکتایي به شي که عــام شي په بخشش

نــمر غــونــدې جلوه کړه په عوام وپه خواص

عــاقبــت آســمانّ بــه هــمه واړه کــافــاني

داچـــې دي باقـــي په مـزكه باندې څوا شخاص

ســتا په هر نګاه کــې خاصــیت دی د کــیمیا

یونــظر کــه وکــړې زربه شــي زمـا رصاص

مــرګ مي رهایې ده اســیري مــې دی ژوندون

کــله غــواړم زه دیــارلــه بنــده استخلاص

بــحر مــحبت دی مرغلــره یې محــبوب

مـومي یې هــغه چې ددې بــحروي غواص

"۸۱"

بلــند عرش تحت الاقدام دی د اخــلاص

ګــوره څه عالي مــقام دی د اخلاص

پــه اخلاص ســړی مولا شــي د جــهان

هــرآزاد بــنده غــلام دی د اخلاص

کــه له شرقه نه رســي ترغــربه څــوک

دا مشرق مغرب یوګام دی د اخلاص

لــه اخــلاصــه مسلمان نه شي مــنكر

چې قــرآن واړه کلام دی د اخلاص

پــیغمبــر خــوهــم پــداشــه پــیغمبر

چې راوړونــی د پیغام دی داخلاص

ښــخو غــورکړه په اعــجاز و کرامــت

چــې یووحـــی بل الهام دی د اخلاص

هــر یوصــید لــره یــودام دی مــقرر

زړه چـــې صید کاهغه دام دی داخلاص

د اسلام و اخـــلاص هــیخ نشته بـیلتون

بلـکه یوعـــلم اســـلام دی د اخلاص

مــخلصان یــې نور هــمه دي مقتدیان

مــحبــت پــکې امـــام دی د اخلاص

## ض

"۸۲"

لــه هــیچا کــرم يې نه کــاندي اعراض

حــاجــتمند کــه تن پــرور وي که مــرتاض

دوست دشمن که ترې طلب کاندي حاجت

چــې کريم دی لــه چــانه کاندی اغــماض

هــريــووبــاسي غــرض ترې غــرضمند

د عــالـــمو دی لــه ده ســره اغـــراض

لــه کــرمه يــې خــالي نــه وي غــضب

چــې لــه فيــضه خــالي کلــه وي فـــياض

بـــي نیازدی چـــې یې زړه وي هـــغه کـــا

پـــرې هـــــیڅوک کـــولی نشـــي اعـــتراض

قبـــض وبســـط د خـــواطـــرو دی لـــه ده

دی پـــــه لاس یـــــې انـــبساط و انـــقـــباض

دی منـــعم کـــاندي په یـــودم کې مـــفلس

دی بـــدل پـــه صـــحـــتونو کـــا امـــراض

کـــه رضـــایې وي ګلزار کـــاندي خارزار

کـــه رضـــایې وي ځـــنګلـــې کـــار یـــاض

ســـخندان یې کـــاهر حرف دستر ګو تور

مـــحبت چـــې ســـواد وکـــاپـــه بـــیاض

"۸۳"

کـــه زه نـــه لرم له تا سره غـرض وایـــه نـــور لرم له چا سره غـــرض

هرسړي لره پکار دی خپل غـمخور ته خـــوهـــم لرې له ماسره غرض

نـــاآشـــنا نه کـــا غرض په نا آشنا خـــوآشنا لـــري آشنا سره غـــرض

پـــه رندانو که غـرض نه کا پارسا رندان نه لـــري پارسا سره غـــرض

مـــست په داکاندي طلب پیرمغان چې هوښیار لـــري دانا سره غـرض

که دې شونډې حیات بخشې نشې روزي څوک لري لـــه مسیحا سره غـرض

چې نسبت دی دمحبوب ومحبت

یـــوپه بـــل لـــري پداسره غرض

## ط

## "۸۴"

لارنری ده دالـــفت لـــکه صـــراط　　پـــدا لارې قـــدم ږده پـــه احتیاط

په دنـــیا کې چاموندلې ده ښـــادي　　غـــمخانه ده نه دی ځـــای دا دنشاط

باندې کور وي په دامزکه لاندي ګور　　پـــه کوهـــي دی غـــوړیدلی د ابساط

په هرامرکې تعدیل وي مـــستحسن　　یوپـــه عشق اخلاص پـــکاردی په افراط

په سبب دعشق شیرین مـــې شه کلام　　اوبـــه شي خوږې دقـــند په اختلاط

ربـــط د اورو داوبـــونه وځـــرګند　　ګـــرمـــو اوښـــو مې ظاهـــر کړ ارتباط

که زړ وکی وی[1] ګنډلي به یې وه　　چـــاک دزړه مې څنګه وګنډي خیاط

د بیدرد و په مرګ پـــاکه شي دنیا　　ګـــیله صافـــه شي چې وزي ترې اخلاط

خـــوک بیان څـــه کا مـــعنی د محبت

خـــوله شعره مې ونه کړي اســـتنباط

---

(۱) وای

## ظ

### "۸۵"

لکه بیا مـوند ستا په عـشق کـې جانه ماحظ

نـه بـه وي مـونـدلي چا په دین دنیا حظ

لـکه حظ کا سـتا ګـدای پـه ګـدایي کې

بادشاهـان په باد شـاهـي نه کـاندي داحظ

سـتا په وصـل چې محظوظ پروردګار کړم

لـکه حـظ زما دی هـسې دی دچـا حظ

ته پـه سیر دګـلزار خوبن زه په جمال ستا

دا زمـا حظ دی دلـبره هغـه سـتا حظ

د فـرصـت سـاعت دچاپه لاس کـیوزي[۱]

کـه یې نن مـومې پرې مـږده[۲] په فردا حظ

---

(۱) کنبیوزي

(۲) اصل : مژده

چــې مــې یــارپه حسن تــرهــمه بالادی

ځــکه تــرواړو دپــاســه دی زمــا حــظ

پــه دیــدن دې خوښ مـحظوظ لیل ونهار یم

ســتا پــه زلف ومــخ کــوم بــیګا سبا حظ

ســتا رســوا پــدا قــبوله رســوایي کړه

چې پــه رسوایي کــې مومــي ستا رسوا حظ

محبت په مستو سترګو دې محظوظ دی

لــکه رند چې کاپه جام وپه صهبا حظ

"۸٦"

څــوک به دشاعروپه اشعار نه وي محظوظ

څـوک به دطـوطیانو په ګفتار نه وي محظوظ

مخ چې دیار ګوري هغه څه کاندي ګــلشن

بــې لــه ګلرخساره به ګلزار نه وي محظوظ

مــاهم مشغول کړی دی په کار دعــاشقی

څه کړم چې دازړه به په بل کارنه وي محظوظ

کاندي په دوه کونه کې دې خدای هــغه رندې

سترګې چې دښــکلیو په دیدار نه وي محظوظ

څــله یې طبــیبه فــکر کــړې درغــیدو

بــې دزړه لــه زخمه دل افګار نه وي محظوظ

خــوښ لــیدلی چادی جــفا کار بې له جفا

زړه څــــوآزار نه کا دل آزارنه وي مــحظوظ

زړه راښــخه غواړي ډيرارزان په نيم نګـاه

نفــع څـوونه کـا خــريدار نه وي مـحظوظ

ستا ددرګـــدای څه کاندی سورئ دهمای

بــې دســتاله سوري دديوار نه وي مـــحظوظ

لــکه چې محظوظ په محبت دی محبت

هـــسې په شاهي به شهريارنه وي محظوظ

## ع

"۸۷"

دم غنیمت شماره ذکر مه کړه دوداع

پس له افتراقه بیا په بخت وي اجتماع

څوک درته کتیشي چې هردم شغلې د نور

خیژی[۱] ستاله مخه د آفتاب لکه شعاع

بیا مونده په عشق مې زیړه ګونه لکه زر

ماپدې سودا کې ډیره وکړه انتفاع

وکړ چې دعرش مې ورفعت وته نظر

ستا داستانې ترې زیات معلوم شه ارتفاع

وایې ټول عالم درته پداستم ایجاد

ته چې په ستم کړې نوې نوې اختراع

---

(۱) اصل : خیژي

دواویاملت که نظر وکا په معنی

لري به له زړه کا دالفظي چې دي نزاع

زه چې ساده دل وم شوم له مکره يې غافل

زړه راځخه واخيست ساده رويوپه خداع

واورم چې آواز دې کړم له شوقه های وهو

هرچې صاحب حال وي وجد کاندی په سماع

صبر آرام قرار له زړه مې يوور محبت

هرڅه رانه واخيست که مې مال وه که متاع

"۸۸"

که دې زړه نه وي معبود وته رجوع ‌ ‌ ‌ څه حاصل دي په سجود وپه رکوع

مې د عشق په حقيقت کې دي حلال ‌ ‌ ‌ که شراب په شريعت کې دي ممنوع

ځان کړه ټيټ په تواضع لکه آسمان ‌ ‌ ‌ چې لوړې ده په خشوع وپه خضوع

ليونی شه دحساب که لرې غم ‌ ‌ ‌ چې خدای کړله ليونو قلم مرفوع

دخپل بام په سرشه هسې جلوه کر ‌ ‌ ‌ لکه نمر چې له افقه کا طلوع

بيهوده ناصح خبرې کا د پند ‌ ‌ ‌ عاشقان کلام يې نه کاندي مسموع

فرق يې نشته داول و دآخر ‌ ‌ ‌ عشق لري لکه انجام هسې شروع

چې له اصله داشيانه يې آگاه ‌ ‌ ‌ نرناحقه کړې خبرې د فروع

امتياز که ترمينځ وي دنسبت ‌ ‌ ‌ واړه يو به ووتابع دي که متبوع

که ته عام و گنی خاص په طبيعت ‌ ‌ ‌ نا مطلوب به درته واړه شي مطبوع

چې مې نوم کېښود واضع محبت خان

خوهم زه وم محبت لره موضوع

# غ

"۸۹"

چېږه کورکې مې بلیږي دزړه داغ　　څه پکاره مې رڼا ده د چراغ
جام دمی وي آئینه یې د جمال　　عکس یې ګوره دشرابو په اياغ
څه دی باغ دارم بلکه ستا کوڅه　　فوقیت د جنت هم لري په باغ
دادنیا نا پاکه څه کاندی پاکان　　ومردارو ته هوس کاندي کلاغ
دبلبل وي هلته قدر وقیمت　　په هرباغ چې کاغوغازغن وزاغ
نه پوهیږم هیڅ دګلو په نګهت　　معطرچې ستا په بوی مې دی‌دماغ
هغه پریوزي په قعر ددوزخ　　چې د نفس یې سرکشي کاندي الاغ
هغه یار چې نه ځاییږي په جهان　　پداتنګ زړه کې مې ځای شي په فراغ

هډولاس له به درنه شي محبوبا
څوېې ته په محبت نه کړې سراغ

# ف

"۹۰"

که مخلوق شـــي ورنه واړه پـــه خــــلاف

مـــرد هـغه چې وي هـرچاته په زړه صــاف

نــــه پـــه حـــج نه په روژه نـــه په نمانځه

بـــادشـــاهـــان بـــه پوښتيده شي پـه انصاف

که غـافل يوازې ناســـــــت يې لـکه بوم

که څـــه حاصـــل دي د مســـجد په اعـتکاف

کـــه ادنی يې ځان په عـــشق کړه خپل اعلی

عـــشق په دم کـــې کـــمينه کـاندي اشـراف

زړه د آه پــه جــنې وهـه لــکه مـالوچ

پـه جــهان کی شه منــصور غوندې نـداف

څـــو په خودیـــې مــقید یې د تکــلیف

شه بېخود چــی له تکــلیفه شــې معـاف

ستا پــــه مــخ شــي مــکدره آئــینه

چــې دې مــخ تــرآئیــنې نه دی شفــاف

هــم پـه خــدای ښـایي لــویي و تکبر

بنــده څــه دی چــې وهــي لاف وګـزاف

کــار ددیــن دنــیاکړه جــوړ په اتفـاق

دواویــا مــلت شــه وران پــه اخــتلاف

پــه عزلت کې چې یې بیا مــوند فـراغت

عــنقا ځـکه شه ســاکــن دکــوه قــاف

خــدای هغو لره دې ورنه ولې څـــوک

چــې یکــسان ګــنی زر دو زو بو ریابــاف

څـوچې ځان دیارقــربان نه کړي حاجــي

څـه حاصــل به دمــکې کــړي پـه طـواف

اصــراف مه کړه که هــرڅولرې دولــت

چــې خــالي ګــنج روان شــي پـه اصـراف

کــه لــه ځانه شي نادان لــکه مــعصوم

مسلــمان مــومــي جــنت کافــر اعـراف

پــه نقاب کې پټې ورو ځــــې يې دي پټې

هــومــره خير وي چـــې وي تورې په غــلاف

مـــحبت يې کلـــه ځـــی زماله زړه

که پـــه توره دغم زړه مې کا شګاف

"۹۱"

بل محبوب به نه وي زما يارغونډې ظريف

خدای ړونشته څـــوک په ظرافت کې يې حريف

نيـــک عمل که يونـــسې په ورځ دقيامت

څـــوک به دې پوښتې چې ته وضيع يې که شريف

کښت دې خپل عمل دی که يې وکرې پخوا

ريبـــې بـــه اول يې کـــه ربـــيع دی که خريف

پټ دې حسن نه دی خود ښکاره يې په عالم

تـــه لـــکه آفـيـتاب کـــله محتاج يې د تعريف

څـــوک وتـــاته ونښـــيي انـــذاز ددلـــبري

خـــود چې دقلوب تـــه ښـــه پوهيږې په تاليف

مـــښک نـــه ورته رسي نه ګـــلاب ونه عنبر

زلـــفې دخـــوبانـــو عـــجب بوی لري لـطيف

غـــم دمـــوکمرو چې په زړه لري مدام

تـــن دمحبت شه لکه موی هسې نحيف

## ق

"۹۲"

دادنیاله هیچا سره نه کا اتفاق

مرد هغه چې ورکادې کاسیرې ته طلاق

غوارې که ژوندون یې ورته مخ وښیه زر

مرګ وته نژدې شه ستا مشتاق په اشتیاق

دا کاندي بیخود شیخه هغه راوړي خودي

جام دمیوښه دی که ستا نفل د اشراق

کیدي [1]چې منصور غوندې له شوقه سرپه دار

هغه په سر بازو کې سرداروي دعشاق

ته وخپل ددرګدای ته مه وایه ګدای

ستا ددرګدای چې دی بادشاه وي دآفاق

-------------

(۱) کښیږدي

کـړې نـارې مجنون هم عـاقبت انالـیلا
عـشق چې په کـمال ورسي وصـل شي فراق
نه وي په اوراق کې چې دیار ښکلی اوصـاف
ښـې دي پـه اورسـوې بیهوده هسې اوراق
داولــکه وي اینښی بویه هم هسې پـاسي
وګــتي سرې کلـه په جـفت کلـه په طـاق
نــوم مې محبت شه ملقب شوم په عاشق
عـشق ومحبت چې مې ناهـزدووپه میثاق

"۹۳"

نشته هــسې پـه دنیا یار صـادق چې هر ځای په هرزمان وي موافق
بې له عشقه خریدار ځــوک دی دحسن دمــعشوق بازار تو دیرې په عاشق
خواخلاص دزړه قبلیرې که نه هــیڅ پـای د ملـخ دسلیمان نه وه لایق
کــه دعــشق لــه حقیقته شي خبر څــه امکان چې پرهیز ګار نشي فاسق
ناز دې نه کاندي بنده پــخپل کمال یوتر بلــه خدای پیدا کاندي فـایق
له هر چانه چې زړه یوسي پـوشیده په جـهان کې اوس باله شي په سارق
شراب سکه[1] چې شي زایل دخودی رنځ پـداشراط چــې حکیم ووایي حاذق
چــې یې ژبه وي جاري دیار په ذکر خدای بـنده کړ خوهــم دې لره ناطق
لــه دنیـا شوتیر یاران دمــحبت
که مجنون وه که فرهاد وه که وامق

"۹۴"

چې به مالید په جهان کې ښــه ښه خلق
خــداونده چـرته لاړشــه هــغه خلــق

---

(۱) سکه = چښه

مګر مزکه آسمان نورشوله چې اوس
زمانه نه هغه پاتې شوه نه خلق

دخالق په قدرتونو شم حیران
چې پیدا کړپدا وخت کې څنګه خلق

نه یې شرم شته نه ناموس شته نه حیا
هریوکار دبې ننګي کادغه خلق

نارینه علتي، ښځې فاحشې
پاتې نشه آب په سترګو کې د خلق

لوی هلک شاه وګدا واړه مفعول
خداونده تندر پریباسه په خلق

عجب داچې له طفلیه تر پیري
دخنثا ووکاندي ټول کارونه خلق

بیا محب بولي خپل ځان دشاه مردان
تو لعنت دخدای پدا زنانه خلق

الهي هسې مخلوق کړه بیا پیدا
محبت چې ولیدلی لکه خلق

"۹۵"

چې تنها روان دعشق شم په طریق بې سایه خپله بل نه وینم رفیق
داپوهیږم چې ته حق یې زیات تردا حقیقت دې څوک کولی شي تحقیق
په فراق ګړې راحت دزړه زما درد مې یارالم همدم دی غم شفیق
دسروشتونډو دې تشبیه ورکړم له څه چې نه رسي ورته لعل ونه عقیق

| | |
|---|---|
| که دلب غنچه دې واشي په خندا | خـــدای آسان په ما به کاندي هرډقـــيق |
| غـــرضي ياران خو ډيروي وليکن | يـــارغـــارنه پـــيداکيږي هم صـــديق |
| ستا تلاش په هرطرف په هر جانب | غورځـــوي مې لکه سنګ د مـنجنيق |
| ستا په عشق کې منت بارشوم دهرچا | هـــر وابنـــه وته لاس اچـــی[1] غـــريق |

شيرين خان کـــړ محبت صدقه ستا

بـــيچاره څه کـــاهـــم دايې وتوفيق

---------

(۱) اچوي

## ک

"۹۶"

هــرناپاک په شـفاعت بـه کـاندي پاک

هـغه پـــاک چـــې خداونــددی دلــولاک

تــل تـــرړلي پــورې ســروي دعـــشاق

خـــالــي نه شــه لـه سرونــو ستا فـــتراک

مـــرم په هـــجردې په وصـــل شم ژوندی

هـــجرووصـــل دې زمـــا دی مـــرګ وژواک

ښـنګه کـاندي ماهــیت يې څـوک مـعلوم

چـــې نــــه عـــقل ورته رســي نـــه ادراک

ورتــه ګــورم چــې لــه چا که دقــفس

کــاندي بــند زمــا صــیاد دقــفس چــاک

چــې شم خاورې فــلک راولي سـيلي

چــې لـــه دره يې مـــې والــو زئ [1]خــاک

دخـــوراک وخـــوب احوال مې څه پــوښتې

خیال مـــې خوب شه ستا په عشق کې غم خوراک

دمـعشوق هم خدای پیداکړ عــجب غم

چــې پــه غــم کې يې عــاشق وي فــرحناک

بـــې خـــطره ځي کوځې ته د قاتل

مــحبت غونډې به بل نه وي بيباک

"۹۷"

کــه دســر ښند لـــونه لري همت څوک

هــوس نه کاد مـــحبوب دې دصحبت څوک

عــاشــقان وي ليــوني نا صحه چپ شه

ليــونو وتــه نــه کــاندي نصــيحت څوک

بــختور وي چې کامياب يې په وصــال شي

غــرض داچــې شهامــومي په قسمت څوک

اې چـــې بيـــايې مـــې کوځی ته دخوبـانو

لـــه هغـې کوځې نه ووت سـلامت څـوک

څوک به څه کا اعتراض دخدای پـکارکې

چــې دډم وهــلو نه لــري طاقــت څــوک

-----------

(۱) والوزوي

مـلامـت پرې وي مـدام دخدای له لوري

پـه عـاشق باندې چې وايـي ملامت څوک

چې ځان ډوب کا    په درياب دخپلواوښو

بـي لـه ده به بل غـريق وي درحمت څوک

ديـن دعـشق دې په يقـين دزړه قـبول کا

که لـه خـدايه وي طالـب د مغفرت څوک

څـه پـوښـتې ددنيـا کـار له محبته

ددنيا کارونه څوک او مـحبت څـوک

"۹۸"

نـشي څوله خپـله ځـانه بې خبر څوک

شـي خـبر کـله له حالـه ددلـبر څـوک

بـې لـه ماچې سربازي کوم په عـشق کې

ستا کـوڅـې ته کلـه تلی شي بيخطر څـوک

داخـوزه بـار دار د بـار امـانت شوم

کنـه غـرپورته کـولی شي په سـر څـوک

هـغه ستوری مـې بيګاه په سرطـالـع شه

نـن زما په څـيربـه نه وي بـختور څـوک

نـرنـاحـقه بل مـهر وی ته څـله ګورم

بـې لـه تا نشـته منـظور مې دنظر څـوک

که هرڅو يوسف مثل دی په ښـايست کې

زه کـافـر شم که دې شـميرم برابر څـوک

عــجــب داچــې نه يې نوم نه يې نشان شته

ولــې وينم په تــلاش يې هرڅوک هرڅــوک

که دې زړه په لار دعــشق بـيايې روان شه

زيات ترزړه نه به پـيدا شي بـل رهــبرڅــوک

کــه پـه دريې ځای مې بيا موند محبته

بيا پريږدي ترعـمره پورې هغه در څوک

"۹۹"

چې شريک دپاک الله گــنی محال څــوک

هــغه هيڅرې به ستا نه کــاندي سيال څوک

چــا ادراک د مــاهــيت يې نه دی کړی

مــگروصف يې بيان وکــاندي پـه خيال څــوک

اوس ولــــونــه ســمــوم ديــار دزلــفو

په حــيرت يم چې زه څــوک اوداجنجال څــوک

بــيابــه نورتــه دآفــتاب نظر ونه کــا

که دې وويــني په سترگــو دا جمال څــوک

درد دزړه هــر چــاتــه وايم په ځرگــنده

گــوندې تيرې [1]کاترغــوږه زما حال څــوک

په جهان که قيل وقال دی خود عــشق دی

بــې دعــشق له ذکــره څه کا قــيل وقال څوک

تــوره شــپه دبــيلــتانه نشــي روښــانه

تــرهــغــه چــې بل دآه نه کا مشال څــوک

---

(۱) تېرې = تيريې

پــه هـــغه ددیـــن دنیا نعـمت حـــرام دی

چــې دعـشق پـــه توره ځـان نه کا حلال څـــوک

څـــوک کـــمال د مـــحبت به ادا نه کا

مگرما غوندې که وي صاحب کمال څوک

ل

"۱۰۰"

زه خو په جهان نه مومم تاغوندې رعنابل

ولې ته به هم نه مومې ماغوندې شیدا بل

هرزمان داهسې چې له ما بیگا نه گې کړې

زه به هم پیداکړم آخر ځان لره آشنا بل

وستایم صورت یاکه سیرت دې غرض دادی

نشته په صورت وپه سیرت کې ثاني ستا بل

ختمه دې خوبي کړه چې خاتم یې دخوبانو

تاغوندې پیدا به په ښایست کې نشي بیا بل

ستړی به آخر په ګـرزیده شـې ولـې جـانه
سـیال به دې په حسن آسمان نه کاندي پیدا بـل
بل کــه ښایســته وي ولي اې په قــامت سروې
رابــه وړي له کومه ستاپه شان قــدو بالا بـل
یــارخووم وژلی اوس بیلــتون یې مــاورژني
یــوآفــت هغــه وي دآفــت راغی په مابـل
ګرزم دې په درخاورې په سر ستا په طـلب کې
څوک په عــاشقي کې به وي ماغـوندې رسوا بـل
لــکه مــحبت د مــحبت خــبرې کاندي
هسې په کلام دعشق به څوک نشي ګویابل

"۱۰۱"

نــه یم ناامــیده مــخ بــه وویــنم دیار خپـل
فــضل بــه په مــا باندي وکا پروردګار خپل
څــه لـــه څـــم د بـا غ د ګلـشن و ننداري ته
زه چــې شګفته په داغ دعشق لرم ګلزار خپـل
څه عاجز تدبیر چې زه رجـوع ورته دکار کړم
مــاحــوالـه کړی وتقدیرته دی هــر کار خپل
زړه مې دی دعشق په رنځ رنځور ز ه یې خدمت کړم
تــیرشه یومدت چې بیــمار دار یم دبیمار خپل
غیر سره وفاکړې چې په څه رنګه مې خپل شي
ستا به څنګه خپل شي دچاشوی دی اغیار خپل

راغــی په امــید چــې دې په درقـبله حاجـاته

مــکړه ناامــید لــه خــپله دره امید وار خپل

ســتا ناصــحه څـه که جفا کاندي یار په مـاکا

مــادی قبــول کــړی هرستم د ستمگار خپل

دردراکــړی تادی دعشق هم ته مې طبیب یې

وایه بـې لــه تاظــاهــر وچاته کړم آزار خپل

تل دې محــبت وي چــې مې غــم پرې غلطیږي

بــې له مـحبته څوک مې بیانه موند غمخوار خپل

"۱۰۲"

لــه فراقه چا بیــمار کړ زمـا دل — چــالــه غمه خپل آزار کړ زمــا دل

چاخمارمې دخودي یوړ په عشق — لــه غــفلته چـا بیدار کړ زما دل

چــاله څــانه له جهانه کړم جدا — چــاله خپل پردي ویزارکړ زمــا دل

چــاعــطا کړه راته خپلــه بیتابي — چــاله در ده بــیقرار کړ زمــا دل

چاگریوان مې دزړه چاک کړ، لکه گل — چــاپه داغــولالـه زار کړ زمــا دل

چا خپل یارکړچې شه زړه رانهٔ ویزار — چــالــه ماهــسې اغـیار کړ زمـا دل

چاپه عشق زړه مې محتاج کړدهرچا — چــادهــر چامـنت بار کړ زمــا دل

چــاشراب د مــحبت کړه ورعطا

چاد عشق په مې سرشارکړ زما دل

" ۱۰۲ الف "

عــاشــقان وفــاداران شـــول — چــې پیدا گــلرخساران شول

چې دعشق کیف یې تر خولې شه — مــیخواران پرهــیزگاران شول

شریکان چــې شــو په عشق کې — اغــیاران ســره یاران شــول

د هـــغو بـــنیاد مـــحکم شــه — چــې د زړونو معــماران شول

چــې د نفس آس یې کړلاندې — کــه پیاده وو شهــسواران شول

عجب جنس یې چې ښکاره شوې — واړه ســتا خــریداران شــول

دوه گــیسو یې محــبته

هــم زما په حق ماران شول

م

"۱۰۳"

پــه تــلاش چې د ســاقي دمــی ناب ځم

بــې له سکلوېې[1] په خيال مست وخراب ځم

بــارپه چــانشــوم مــطلق پدا درياب کې

چــې د بــحر په سرسپک لــکه حباب ځــم

مــسافر لــکه چې کــورته پــه تلوار ځي

زه پــدا شــان وعــدم تــه پــه شتاب ځم

زه بــه نه تلــم ميــخانې ته باړې څه کړم

ناچــاري ده چــې پــه طــمع دشراب ځــم

---------

(۱) چنبلو

ښکلي مخ بې ګونډې ووینم په خوب کې
دغه خیال لرم چې هره شپه په خواب ځم
دخپل غم په اورکې درست بې سره وریت کړم
زه له لاسه دخوبانو زړه کباب ځم
چې ګوګ ځای وي مطابق دهغه ګوګ شم
اوکه سم وي هلته سم لکه دریاب ځم
سرمې ورکړ هله کړه شهامې خپله
نن ددې جنګ له میدانه فتحیاب ځم
هر پلوته چې محبوب وي محبته
لکه سیل هغه پلوته اضطراب ځم

"۱۰۴"

چې له شوقه ستا پلووته قدم ږدم
لکه مست قدم په لارې کله سم ږدم
چې قلم له عجزه وصف یې نه شي ښکلی
نور په مزکه بیاله لاسه خپل قلم ږدم
چې لذت مومم بسیار ستا په جفا کې
زه له ذوقه دستم نوم دې کرم ږدم
چې لیده شي پکې صاف دواړه جهانه
دساقي دپیالې اسم جام جم ږدم
که دخدای عبادت دادی چې زاهد کا
زه به سر په سجده وړاندې دصنم ږدم

چې لــه تيغه دجــفادې زړه مــې خوږدى

پــه پــرهــار دزړه بــه څــرنګــه مــرهــم ږدم

داغ دعشق دى که مې دام که مــې درم دى

زه پــه کورکې خــپل نه دام ږدم نــه درم ږدم

چــې شــه بار دامــانت تــيار لــه غــيبه

آواز راغــــى چــې پــــه سر بــه دآدم ږدم

مــحبت مــې تخلص بيامومند له خدايه

په اشعار کې کله خپل زه بل علم ږدم

"۱۰۵"

دم مــې ته يې ستاله غــمه ولــې نه مــرم

بــې لــه تاچې شــوم بې دمه ولې نه مــرم

زيــات دهــجرتر ماتمه کــوم مــاتم دى

الهــى لــه دې مــاتــمه ولــې نــه مــرم

مبــتلا فــلــک په درد دجــدايــى کــړم

چــې دا درد دى لــه آلمــه ولې نــه مــرم

چــې داهــسې تــل ستم رابــاندې کاندي

دخــوبــانو لــــه ستمه ولــې نــه مــرم

چې ژوندون زما عــبث دى په هــجران کې

تــرولــه هــجره دې صــنمه ولــى نه مرم

بيــلــتانه رابانــدې وخــت د ځــنکدن کړ

چــې نــه پايــمه نــه مــرمــه ولې نه مــرم

زیست چې تیر په خوشحالي شي هغه زیست دی

چې بې تانه یم خُر مه ولې نه مرم

غم که سخت دی په جهان خودفرقت دی

محبته له دې غمه ولې نه مرم

"۱۰۶"

له اشجاره دجنت کله ثمر خورم

زه چې تل د محبت له ونې برخورم

سر به ستاله بنپو[۱] هیچرې پورته نه کړم

که زرګونه دپیغور کاڼي په سرخورم

ددلبر غم خدای روزي مې کړترمرګه

څوژوندی یم دغه غم به ددلبر خورم

ساقي جام دمیو راکړ اوس که خدای کا

زه به هم اوبه له حوضه دکوثر خورم

څه لذت خوږکې مومم لب شکره

چې ترخې کنځلې[۲] ستا لکه شکر خورم

شپه وورځ دیار په غم کې مې تیریږي

چې بې غم دزلف وڕخ شام وسحر خورم

ما معذور لره په میاشت درمضان کې

په لیدو دیار دمخ روژې اکر خورم

چې بې ورونې داختر میاشت دي زاهده

زه روژه چې میاشت ووینم داختر خورم

---

(۱) بنپو= پښو

(۲) کنځلي = ښکنځلی

ژونـــدی پاتـــې به شـــم کـــله محبته
کـــه داهسې د بنويې تل خنجر خورم

"۱۰۷"

نــه پوهيږم چې له عــقله بيرون چــا کړم
چــامې هـوش له ســره يوور مجنون چا کړم
پــه غــمزوپه کرشــمو پــه مــکيزونو
پــخپل ځــان بانــدشيدا ومــفتون چــا کړم
هــم پــداحيرت مــې شپه وورځ تير يږي
چــې آزاد وم بنــديوان په افســون چــا کړم
چــاخپل عشــق راته عـطاکړ آګـاه نشوم
څــوک محسن ولــه احسانه مـرهون چا کړم
څــوک دمــينې ودولت ته مــې رهبر شه
چــامــنت رابــاند کيښود ممنون چــا کړم
پــه آزار د مــحبت محــبت خــانه
خــبرنه يم چې خسته وزبون چا کړم

"۱۰۸"

دين دنــيا مې غرض نه وي چــې دعا کړم
خواست لــه تاپه پــنځه وخته خوهم ستا کړم
پيــدا څــه لــره دې کړم پـدا درياب کې
چــې حــباب غوندې دې خدايه بــې بقا کړم
هــر قــدر چې ته جــفا وکړې رابــاندې
هــغه هــومــره زه لــه تــاســره وفاکــړم

څــه په مرګ مــې ویری[1] زه به خود ومرم

تــه دروغ وایــې لــیکن زه بــه رښــتیا کړم

درســـته شپه ســـتا د مـــجلس رونق دپاره

لــکه شــمع هــم خــندا کړم هــم ژړا کړم

پابه نه څـــم له کوڅې دې څـو شهید شم

دغـــه ځـــای بـه زه مـــیدان دکـــر بـــلا کړم

کومـه خواته درومـــم کړم تلاش یې چـرته

نـــاپـــیدادلبـــر به څـــه رنـــګه پـــیداکـــړم

خوچې وینم ښکلی مخ مفـــتون پرې زه شوم

نـــرنـــاحـــقه یـــوآفـــت په ځـــان بـــرپاکړم

پــه عــالم کــې دې رسـوا کړم محبته

ته رسوا شې لکه زه چې دې رسوا کړم

"۱۰۹"

چې داوښو ستا په غم جـــاري دریاب کړم

درست جـــهان پکې لاهـــو، لکه حباب کړم

دهـــرګـــل حـــسن بې آبه راځـــرګند شي

چـــې نـــظر دې دڅـــهرې په آب وتاب کړم

خوب هله کاځوک چې زړه یې وي بې غـــمه

زه چـــې غم لـرم په زړه کې څـــنګه خواب کړم

که هرڅو آفـــتاب یکتا دی په ښـایست کې

زه مـــخی بـــه دې دمخ کلـه آفـتاب کړم

---------

(۱) ویروې

چــې خــوَلَه مــې ستا د مخ شي مــيسره

هــم يــې ځــان دپاره عــطر هم ګلاب کړم

له دې غمه چې به څه ځــواب وي راوړي

دقــاصد راتــلو بسيار پــه اضــطراب کړم

دســوال ځواب مې هــيچرې را نه کړې

بــيهوده لــه تا ســره څــه سوال وځواب کړم

بـل هــيڅ نه کړم خراب پــه تکرار وايم

ثاخــراب کړم تا خــراب کړم تا خراب کړم

آتــش رويه شــعله خويه مــحبت ســتا

عجب اوروچې يې درست سره کباب کړم

"۱۱۰"

چــې فلک دبيلتانه په رنــځ بيمار کــړم

بــې لــه وصــله څــه دارودې د آزار کړم

چــې خــبرې ددلــدارنه کــړم ناصــحه

نــاقــرار زړه په څــه رنګــه پــه قــرار کړم

چې ظاهر په ملک د زړه مې جلوه ګر دی

يمه ړونــد چــې يې طلب پــه بــل ديار کړم

در پـــه درخاورې په سر شوم دريغه دريغه

مــينی ستا په هــسې شان خراب وخوار کړم

مال متاع منصب مې واړه ستا قربان کړل

ځــان باقــي دی هــغه هم به ترتا ځار کړم

چـې دې مخ، لکه ګـلزار را يادشي ژاړم

بـــې لــه تا هــرکلــه سيرچې دګلزار کړم

لــکه ونه دچـمراغــو کا څـوک جـوړه

داغ دعشق دې سرترښـپو(١) باغ وبهارکړم

طــوطـــي کـــله ګـــويا کيږي بې شکرو

چـــې شيرين لـبان نه وينم څــه ګـفتار کړم

هـــم پـــه زړه کـــې پخسيږم مـــحـــبته

څوک همدرد نشته چې درد ورته اظهارکړم

"١١١"

څه څيز دی قمر چې مشابه يې دقـمر کړم

خدای زوکه څـهره دې لـه آفتابه برابر کړم

نورڅـه راته هلونه ښکاريږي چې يکښې يم

مـخ دې راڅـرګند شي هـر پلوته چې نظرکړم

ومـــړم لدې غمه چې احوال د زړه مې ناوړې

حال مـې څـخوواوره چې له زړيه غم بـــدَرکړم

نه اخـــلي سلام مې چې هيڅرې له غروره

يوه ورځ لـه تا به آخرزه هم لاس په سرکړم

نوم دسـفر واخيست که له خولې دې زما جانه

زه لــــه ډيـــره غـمه لـه جـهانه به سفر کړم

هـــيڅ آګاهـــی نـــه لرم له ځانه له جـهانه

ستا شـــراب دميني پـــدارنګـه بې خبر کړم

---------

(١) پښو

خــودلــکه پتنګ له شــوقه ځان په آتش ولم

اور د عــاشقی لــه هــره اوره بــې خطر کړم

زړه چې مې مایه وه ددرست عـمر نذرستا کړ

زیات ترزړه څه نشته راځخه چې دله (۱)درکړم

هــر احــوال پوښتم د مــحبت له محبته

دی عاشق صادق دی هر چې ووایي باورکړم

"۱۱۲"

د ناصــح نصــیحتونه اول ګــوش کړم

چــې تا یادکړم هــغه واړه فرامـوش کړم

مــادمــینې شراب ســکلي(۲) دي مـغانه

زه جــرعه بــه ستاله مــیوکله نوش کړم

بې خــبر لــه دواړه کونه شوم پــدم کې

دساقــي یوې پــیالې هسې مدهوش کړم

دزاهــد خــبر ې څــه شوکه یې اورم

زه عــمل به پــه وینــا دمــیفروش کړم

بې له تامي اوس آوازله خــولې نه خیژي(۳)

بیلــتانه دې پــداشان ســره خاموش کړم

چــرته زه وم چــرته هومـره فریــادونه

داخــوستا مــینې داهسې په خروش کړم

غــرونه یومې وړه په مخ په سیل داوښو

غــم دیارلکه دریاب هــسې په جوش کړم

---

(۱) درله

(۲) چنبلي

(۳) اصل : خیجي

په یودم کې به دامـــړ زړه مې ژوندی شي

کــه دلبــره دلـــنوازه په آغـــوش کـــړم

مـــحبته چـــې پـــه زړنه ترم زړه خپل

زرین اغوندم خندا په خرقه پوش کړم

"۱۱۳"

په سپین مخ دې چـــې نظر په تورا وربل کړم

دغـــمونـــو پـــخپل ځـــان بانـــداور بـل کړم

چـــې دعـــشق جذبې دې رانکوم وځـان ته

هـــم پـــداګـجـــهان لـــه دې جـــهانه بـیل کړم

زرښـــندل خـــوځـــه دي داغـــنیمت شمارم

پـــه ښـــندلو کـــه دسر معـــشوقه خپـــل کړم

خـــود ومـــاوته بـــه مـــخ تـــوره بـــلاکا

چـــې دیار وتـــوروســـتر ګـــوته کـــتل کړم

اوس کنځـــل[۱] چـــې راته نه کوې بې رحمه

امـــوخـــته پـــخوا دې ولـــې په کنځل [۲]کړم

پـــــه کـــرم ددیـــدن خـــیر چـــرې راکړه

دعـــاګـــوی یم ســـتا د حـــسن دعـــاتل کړم

زړه مـــرشدمې دی مـــنم یې هـــر چـــې وایي

زه مـــدام غـــوږددې خـــپل زړه پـــه ویل کړم

لایوداغ دې دی راکـــړی عـــشقه وار کړه

پـــه واروار به یې هـــم ســـتالـه لاسه سل کړم

---

(۱) (۲) ښکنځل

تــه مې نوم د مــحبت وايــې بدل کړه

چــې نــامــه دې په وګړي کې خــجل کړم

بــدل کړی به مې وه که مــې تخلص وی[1]

دامــې نــوم دی ازلــي څــنګه بدل کړم

"۱۱۴"

زړه مــې دی نازک دچاخبرې زياتي کم وړم

محض ســتا دپــاره دانــاسـازې دعــالم وړم

هــرڅوک په ياري مهروکرم يوسي لــه ياره

زه پــه اشــنايــي دخپل آشنا جــوروستم وړم

هــيچرې ښادي مې له وصــاله دې يونوړه

تــل دې دفــراق لــه لاسه زه درد وآلم وړم

شــي روان په جــمع چــې لښکر دعــاشقانو

زه يې نشان چــې يم وړاندې وړاندې يې عـلم وړم

ورک بـه يې د زلفو په تياره کې عــاقبت کړم

زړه چــې پــداشپه پــدا ظلمت پدا تورتم وړم

تــه پــخندا ورې پدا ګلزار کې دګــل قدر

زه پــه ژړا آب پــدا ګلشن کې دشــبنم وړم

کوږ[2] چې په خصلت يې هــلوسم به راته نشي

زه بــه دې داخــوی لـه خپله عمره سره سم وړم

اوس خولــه ســتمه لاس کړه پورته ســتمګاره

څــوبه دې جــفازه جــفا کاره په هــردم وړم

---

(۱) وای

(۲) اصل: کوګ

هیچا وړی نه دی زړه خورم په محبت کې
څوک وایې چې زړه په محبت کې زه څُرم وړم

"۱۱۵"

چې دې ووینم له شوقه په غوغاشم
چې دې نه وینم په آه وواویلا شم
اوس راکړوتم[۱] په دام کې دې صیاده
څه امکان دی چې زه خلاص له بنده ستا شم
په دنیا وآخرت مې حاصل ته یې
چې ستانه شم په دوه کونه نورد چاشم
څه موزون قدو بالا لرې نګاره
زه قربان دې ترموزون قدوبالاشم
که دګل په رنګ ښکاره کړې مخ ګلرنګه
زه به اوس دعندلیب په شان ګویا شم
دعشق علم څومې نه دی حاصل کړی
څه په کارکه دبهلول په شان دانا شم
په شپه وایم مخ به نه کړم ستا پلوته
چې سباشي وکوڅې ته دې بیاراشم
تکلیف مه کوه ناصحه چې پند راکړې
زه له ډیره پنده ستا لیونی لا شم
محبت په مرګ وزیست به دې پرې نه ږدم
که سل ځله ومرم سل ځله پیدا شم

(۱) کښیوتم

"۱۱۶"

ستادوړاندې پــه فریاد ځکه هــر بارشــم

چــې بلبل یم ګل چــې وینم په چغار شم

شــراب خوارشم چې یې مومم ستاله لاسه

اوکــه ســتاله لاسه نه وي پرهیز ګارشم

شیــطانــان اکثــر شیخان د زمــانې دي

چــې یې وینــم پــه لاحول واستغفار شم

کــه اتــلــس کــلنې معــشوقه پــریږدم

پــه اتــلــس زره قــام به شرمسار شم

چې سجده کړم ستا دوروځوو مـحراب ته

زه پـه دین دعـشق به هـله نمانځ ګذارشم

کــه هــرڅوکــارونه ډیردي بې له عشقه

خدای دې نه کاچــې مـشغول په بل یوکارشم

څوصوفي یم هلهوهوبښ مــې په ځـای نه وي

سیه مــست چــې په شرابوشم هــوښیارشم

چــې داهــسې زړه بیمار لـرم لـه عــشقه

عــاقبت بـه زه هـــم ورســره بـیمار شم

چې دې نوم مې محبت کړباري خدایه

پــه قیامت له محبانو ســره شمارشم

"۱۱۷"

بــیګانه که زه له خــویش واقــربا شوم

غــم مې نشته چــې لــه تاسره آشنا شوم

لــه جــنجاله يې دزلفــووتی نــه شم

الهــي پــه څه بــلا کــې مبتلا شوم

هلــه شــوه راته هــستي خپله معلومه

پــه بــقا کې چــې ديار اول فنا شوم

لاړه نشــوه نــاداني په څوارلس علمه

چــې دعشق په نکته پوه شولم دانا شوم

نيست نابود لکه حباب دې ته کړم مــرگه

لــه دريــاوم پــيداشوی بيادريا شوم

پــه گفــتار، لکه طوطي کړم ستا لبانو

چــې شکرې دې په خوله مې کړې گوياشوم

څــوخاموش وم عاشقي مې وه مستوره

لــه فــرياده په وگړي کې رسوا شوم

پــه يوه ســترگه چې گورم وهــرچاته

پــه عالم کې دآفــتاب په شان يکتا شوم

بې له عشقه نورڅه کارکړم په جهان کې

مــحبت يم مــحبت لــره پيدا شــوم

"۱۱۸"

لــه نوشلو دشــراب به مــنع نه شــم

پــه گــناه يې که هرڅو په حدواهه شم

هــلوونــه مــړيرې زړه مې لــه خوبانو

خوچې وينم ښکلي مخ مفتون پرې زه شم

مـــشبکـــه مـــې ســـينه لـکه غلبيل شوه

دنـــګاه پـــه غـــشوستا چې تل ويشته شم

تله راتله کړه رالره که زيست مې غواړې

لـــکه دم زه دې ژوندی پـه تله راتله شم

ددوزخ عـــذاب هجران دې په مـاتير کړ

پـــه قـيامت بـه تردا زيات معذب څه شم

زه فـــرهاد بـــه شم که ته راته شيرين شې

که تـــه مـــاوته شـــې دازه به هـــغه شم

زړه سوری که لـکه دُر مې شي قبول دی

پـــه رشـــته کې ستاد زلـفو که پيبه شم

بې له تامې خوب په سترګو څـنګه راشي

خيال دې ماکله پريدي[1] چې زه اوده شم

پـــه هيڅ شـــان دانـــاقـرار نه قـراريږي

بـــې لــه تا تسلي بخش څنګه د زړه شم

ددنيـــا سرې څـاروي دي لـه دې خلقه

کـــشکې والـــوزم آسـمان وته مرغه شم

شوم نادان په مـــحبت کـــې دې هلکو

هرچې وايي راته ته زه دې په خوله شم

"١١٩"

زه چې دخوبانوتل بـــازار لره ورد رومـــم

يم دزړه خـــرڅونی خريدار لـــره وردرومم

---------

(١) پريږدي

بې لــه ګــلرخــساره لرټ تبنتم له ګلزاره

ګــلخهره کــه نه وي څـه ګلزارلره ور دروم

وبــولي چــې مـاله مهره زه له ډېره خیالـه

سم پـــه لارې نه ځم چې خپل یارلره وردروم

نــه درومــم بــیکاره مـیخانې وته زاهـده

کــار لــرم لــه مـیو زه خپل کارلره وردروم

زړه مــې کــااسیر پدا صـیاد مــې راروان شي

څــوک که بې پوښتي وایي چې ښکارلره وردروم

چرته خوشــبويي دې چرته عطرولې هم زه

ســودپرستادبوی کړم چې عطار لره وردروم

یــاردپــاره کــړم درقــیبانو خوشامـدې

ګــل مې په نظروي چې زه خارلره وردروم

زه چې دپرهارپه خوله مــزه یې دتیغ اخلم

خون ورته حــلال کړم چې خونخوار لره وردروم

مــاردتــورو زلــفومې ساحردی محبته

ومې خوري زه بیا هغه ښامار لره وردروم

"۱۲۰"

د هــوښیار و پــه نژدې چــې دیوانه شوم

زه هــله پــکار دعشق کې فــرزانه شــوم

څــوصــوفــي وم هیڅ خبر نه وم له هوښه

شــوم هــله خبر په هوښ چې مــستانه شوم

په جهان مې اوس داستان دعشق مشهور شه

زه په مینه په عالم کې افسانه شوم

دجمال دمخ دیار شمعه شوه بله

پرې نظر مې خوچې پریووت پروانه شوم

اوس مې خپل همه پردي راته ښکار یږي

ستا په عشق له آشنایانو بیګانه شوم

ترابده مې له مینې سره کور دی

له ازله زه له عشقه همخانه شوم

مادوروځودې لینده کړه غوره جانه

د بنود غشو ستا چې نشانه شوم

بارې شکراوس دعشق له برکته

جانانه زما شه زه دجانانه شوم

محبت چې په نامه وه زما ښکلی[1]

محبت لره پیدا په زما نه شوم

"۱۲۱"

ګل چې خپل مې کړله هرچانه پردی شوم

دهر یوسرې په سترګو کې اغزی شوم

زنده دلوهله نیک سری معلوم کړم

مرده دلوته ښکاره چې بدسړی شوم

چې یاخوب کوم یاګیدې لره غوارم

په صورت کې دسړي پیدا خاروی شوم

---------

(۱) کبنلی

سراسر پيري له کاره وم ايستلی
زه په عشق دساده رويوبيا ځلمی شوم

هم ناځيزه هم لاشی وم بې له عشقه
چې مې مينه کړه پيدا باري څه شی شوم

سياهي مې دپندار خوله زړه پريوله
که په عشق دتوروزلفوتورکودی شوم

نامردان دي چې يې زړه په حکم نه دی
ماچې زړه خپل مسخر کړ مړنی شوم

اوس په سرمې لاس راکا ږي له شفقته
په وفاسره ديار مصاحب سپی شوم

په نصيب مې ووهردم ساړه آهونه
چې په اصل کې پيدا سړه بنی شوم

بې کماله څه حاصل دي محبته
که بريخی په نسب يا کمال زی شوم

"۱۲۲"

هيڅ دزيست اميد مې نشته نه به پايم
چې دميني په بلا کې مبتلا يم

چې پتنګ يم تريوه شمعه ځاريږم
هوسناک نه دهرګل لکه بورايم

مامحروم دخپل ديدن له خيره مه کړه
چې دې پروت په دروازه لکه ګدايم

چې ظاهر شې شم ظاهر چې پټ شې پټ شم

زه سایه تـه نـمرله تا کلـه جـدایم

ځـان مې ستاد لارې خاورې کړله شوقه

کیـده بنـې[1] زمـاپه سرچې دې خاکپایم

چـې زړه خپل کنم همدرد په غم دعشق کې

یـو وزړه تـه دخپـل راز خـبرې وایم

تـه په حـسن کې یکتا لکه آفـتاب یې

چـې عـاشق دې شوم په عشق زه هم یکتایم

کـه تمـام جـهان له مـانه بیگـانه شي

غـم مـې نشته چې له تا سـره آشنا یم

که نظر په محبت مې نه کړې مه کړه

تـه زمـا که نشې مشه زه خوستا یم

"۱۲۳"

څـوژونـدی یم پدا[2] بحر کې جبـاب یم

پس له مرگه که مې څوک گوري درياب یم

چـې یـودم مې زړه بې یاره قـرار نه کا

دوصـال طـالب یـې ځـکه پـه شتاب یم

چـې په تلـه شوم په هـنگام دنزع راغلې

څه حاصل دی چې اوس زه بنپه[3] په رکاب یم

زړه پـه غـم لرم خراب په اوبنـوسترگې

دواړه کـوره مـې دي وران خانه خراب یم

---

(۱) پبنې

(۲) اصل: پدای

(۳) پبنه

نــه ذابـــح یم دبقـــرنه خـــونریـــزي کړم

زه پـــه عـــشق کې یودخپل دزړه قصاب یم

عـــشق لـــه ځـایه په خلـــقت کې دآدم دی

چـــې عاشق نه شـــم خودیویم یـــادواب یم

چې شراب مـــې ترحسابـــه زیات دي سکلی[1]

بـــې خـــطر ځـکه له ورځې دحســاب یم

هـــرچې دي دیـــارله لوریه مې قـــبول دي

هـــدوارنـــه پـــه عـــذاب نه یـــه ثـــواب یم

وړی تـــری دصـــهـــبایم مـــحـــبته

غرض داچې دشراب په اورکباب یم

"۱۲۴"

شوم کافر دعشق ولې غیرت دهر دینداریم

رنددخرابـــات یم ولـــې رشک دپرهیز ګاریم

ځـــه شوکه رنځوریم ته نظر راباندې وکړه

روغ به په نګـــاه شم چې دسترګـو دي بیمار یم

خان جهان به څه کړم ته مې ځان ته مې جهان یې

اوس زه ســـتا په عشق کې له همه واړوویزاریم

خپل دسري خپل وي که پـــکاروي که بـیکاروي

ســـتایم جـــانه ستایم که پکار یم که بیکار یم

پاک مې کړه په توره ددې زیست لـــه نجاسته

خـــومې قـــتل نه کړې نه حلال یم نه مرداریم

---------

(۱) چنبلي

زیړه مـــې ده ګـونه اوښې سرې لرم له غـمه

خودزه دې پـه عشق کې همیشه باغ وبهاریم

خوارکه دعشق نه وی[1] داعزت به مې وه چرته

هم پدا عزیز یم چې دعشق په خواري خواریم

ســـرخو وي عزیز ولې خـــوبا چې بې بهاده

مــومم که دســرپه بهــاهم یې خـــریډاریم

نوم مې مـــحبت دی محـــبت غواړم له تانه

ســینه کړه رابانـــدې چـــې دمینی سزاواریم

"۱۲۵"

په دنیـــا کې کـــه هرڅوغـــریب فـــقیر یم

پـــه جـــهان دمحـــبت کې خـــوامـــیر یم

که ددرســـت جـــهان ښادي راکره راشي

تـــاپه ســـترګو چـــې ونه وینـــم زهـــیر یم

چـــې دې ونســـي تـــرګـوتې کتی نه شم

لـــه غـــیرته زه دښـــمن دی دزرګـــیریم

زه کـــامـــل یم پـــه فـــرقه دعـــاشـــقانـــو

دوی مـــې واړه مـریدان دي زه یې پـــیریم

لعـــل ودرلـــرم داوښو ستا پـــه غـــم کې

زه مـــحتاج نه دبـــادشـــاه نه دوزیـــر یم

هـــریوکـــارمـــې دی ســپارلی وتقـــدیرته

ځـنکه زه فـــارغ لـــه فـــکره دتدبـــیریم

---------

(۱) وای

کوم یوګل مې شه غایب له سترګــو خدایه

هـــرســـحر چـــې دبلـــبل پـــه شان په ویریم

هربندي به خلاص شي ولـــې خلاص به نه شم

زه بنـــدي چـــې ستـــا دزلـــفو په زنځیر یم

کـــه عـــالم دمـــحبت مې مـــسخر کړ

زه دعـــوی به هـــله کړم چې عالمګیر یم

"۱۲٦"

زیړه ګـــونه مـــې پداده چې دردکـــش یم

خـــالص زړیم بـــې پـــرواهـــه له آتـــش یم

دادچـــاپـــریـــشانو زلـــفو آشـــفته کـــړم

چـــې پـــریشان خاطـر داهسې مشوش یم

دسړ وپـــیرو بـــادشاه لـــکه ســـلیمان یم

چـــې بنده دحـــور مـــثالې پري وش یم

زلف وړُخ چـــې دخـــوبانو مې په مراددي

زه مـــالـــک دملـــک دروم هم دحبش یم

په سرواوښو مـــې دزړه احـــوال ظاهر دی

زه لـــه ډیرې نادانـــی یـــې په پوشش یم

نور خـــواړه کلـــه ترســـتونې مـــې تیریږي

دشیر ینو شونډوستا چـــې مـــزه چش یم

کـــه لرئ په مـــحبت مې شک خوبانو

مادعشق په اور کې تاوکانئ بې غش یم

"۱۲۷"

چــې په تاغوندې بــنده باندې عاشق يم

که دخدای دمینــې دم وهــم صــادق يم

چــې شوم خاورې ستا ددرپه مزکه باندې

پــه لــويي کې تــرآســمانه هــم فايق يم

دســايې په خــير له تانــه جــداکــيږم

په هــر ځــای چـــې په ياری دې موافق يم

زه مــجــنون يم ددې دورتــه ليــلايې

کــه عــذرا دزمــانې يــې زه وامــق يم

هــميشه چې ســتا په دردعاګـويي کړم

کــه کنــځل[1] کــوې وماوتــه لايق يم

چې مې سترګې ستا په مخ باند شوې محوې

کــه وبــل پلوتــه ګــورم مــنافــق يم

د مــوسی خوتســلي پــه تجــلي شوه

زه بــه څــه کړم چې دوصل دې شايق يم

څـــه جمال يــې وخوبانــو لره ورکړ

حــق حــيران پــه صنعتو نو دخالــق يم

بــل بــه کلــه دامعني دعــشق بيان کا

پــه مضــمون دمحبت چــې زه ناطق يم

"۱۲۸"

شپه وروځ چــې ستا پــه خيال يم　　تل پــه خيال کې دې خوشحال يم

---------

(۱) بنکنځل

په دیدن دې سود مې نه شي ‌ چې مشتاق دې دوصال یم

کله ګورم وبل مخ ته ‌ چې دې محوپه جمال یم

دامې دام دامې دانه ده ‌ بندي ستاد خط وخال یم

بل مذکور مې نه خوښیږي ‌ خود عشق په قیل وقال یم

غوارم تا،ته مې دولت يې ‌ زه طالب کله دمال یم

میني ستایم قتل کړی ‌ ستادعشق په تیغ حلال یم

چې دبوی راوړي ګلرویه ‌ منت بار زه دشمال یم

چې وخپل ژړاته ګورم ‌ خنده زن په پشکال یم

څه مې حال پوښتې په عشق کې ‌ لابد حاله کال په کال یم

په مامینه محبت کړه

نازک دل ښیښه مثال یم

"۱۲۹"

که دعشق په هنر پوه شولم عاقل یم

څودمینې علم زده نه کړم جاهل یم

ته کشش پیدا په شان دکهرباکړه

زه پخپله لکه کاه درته مایل یم

نازکوم زه لیونی په لیونتوب خپل

چې دزلفو دې بندي په سلاسل یم

کوه کني فرهاد یوځله په عشق وکړه

زه مدام چې جانکني کړم ترې فاضل یم

دجبین غوټه کړه واچې زړه مې واشي

چې وربوزدې ځان ته بوټ وینم تنګدل یم

کــه ســــرلاړشي اســتقلال به مې لاړنشي

چـــې دعـشق په دين هــرگوره مستــقل يم

ددې ځـــاى خاورې مې ختې کړې په اوښو

لـــه کوځــې دې ځنــګه پاځـــم پادر ګِل يم

کــه مــې کــار تمـامی[1] نګـاه تمام کړه

زه مـــجروح په نيم نګاه دې نيم بســـمل يم

عشق مـې بيل کړله هـــوسه مـــحبته

جداکړونی چــې دحق ودباطــل يــم

"۱۳۰"

بيـــقرار يم اند وهـــګين يمه غـــمجن يم

لـــه هـــغې ورځــې چـــې تابـاندې مين يم

عـــاشقي له زړه مـــې ورکه دښمني کړه

اوس پــه مـينه کې دوستداردهر دښمن يم

څـه عجب که شوم په رنګ لکه سکروټه

چـــې دعـشق په اور دې سوی لوغړن يم

څـــو دحـــسن په شعله دې پتنګ نه شم

کـــه دمـينې وهـــم لافــې در وغـژن يم

ځـــان مې خاورې ستا دلارې کړراتير شه

هـــمـيشه پـــه انتـــظار دې ددامـــن يم

راښـــکاره کړه څـــخو مخ پرده نشينې

لـــه مـدتـــه آرزومنـــد دې ددیـــدن يم

-----------

(۱) تماموې

چـــې ګلزار دې دمخ وینم په فریاد شم
زه بلبــله خــوشــنواد دې چــمــن یم
چې ته نه یې مرم چې راشې ژوندی کیږم
تــه دروح یې پــه مــثال زه لــکه تن یم
محبت کااهــل ترس لــه درد مــنو
ته هم مینه راسره کړه چې دردمن یم

"۱۳۱"

کــه هر څو خراب خــسته پــه حال تباه یم
چــې ګــدای دیار ددرشــولـم بـادشــاه یم
بــې له عــشقه چې صراط المــستقیم دی
کــه روان پــه بــلې لارې شــم ګمــراه یم
څــوشاهــین لــري تـوبې زانــې په خیروي
هــومــره خــیردی چې لــه ستر ګوېې پناه یم
کــه شراب د جهان نوش کــړم نه مستیږم
چــې کیــفي دمــستې تــرکــې په نګـاه یم
لــه آتشــه دهجران ســیزې مــې څه لـه
چــې زه خــود ســوی لــه اوره دخپل آه یم
تورو سپین مې ســتا په لاس کې دي دلــبره
غــرض ســتایم کــه ســفید یم که سیاه یم
هــر ساعــت ظلمونه وینــم ســتاله لاســه
بــیالــه تاهــم پــه هــغه ساعت دادخواه یم

که دعشق مې په ګناه نسې مختار يې
باقي زه پخپله پوهه بې ګناه يم
بيهوده زر غون په باغ کې ددنيا شوم
چې بې ګل او بې ثمر لکه ګياه يم
ددنيا ياران اغيار شي پته يودم کې
محبته ځکه زه ترې ناويساه يم

"۱۳۲"

چې قدم په لار دعشق ږدي هغه زه يم
که مې سرځي پدالارې اړپرې نه يم
مرده دل شوم بې له تا هسې په خلق کې
ته به وايې چې زړه نه لرم بې زړه يم
دلبران که هرڅو ډير دي په جهان کې
چې زماڅوک دلداري کا دهغه يم
چې مدام رقيب په قهر يشيي [1] مې
ورته اوربه شم هرڅوکه زه اوبه يم
زه په خوب کې هم بيدار يم زړه مې ويښ دی
غافلان په ما ګمان کا چې اوده يم
ستا طلب راوښووې لوړې ژورې
سرګردان کله په سم کله په غره يم
محبت مجسم وايي چې به نه وي
مجسم محبت زه نه يم نور څه يم

-----------

(۱) ايشوي

"۱۳۳"

کـــه مین په غنـــم رنګ شولم ګـــرم نه یم

زه نـــاصـــحه څـــه فـــرزند دآدم نه یم

پـــه هـــستي پسې آفت چـــې دنیستي دی

څـه ښـادي په ژوندانه کړم بیغـــم نه یم

هرساعت دازړه مې ډک وي ســـتاله درده

چـــې خـــالي دې له اندوهـــه یودم نه یم

هـــمیشه به یې داخـــاورې مـــې بـــربادې

ســـتاد آس که مـــدام لاندې تر سوم نه یم

زه یې عکس یم که سم وي څـــوک که کوږ وي

چـــې کـــاږه دي وهـــغووته ســـم نه یم

تـــه لیلا شه بیا ســـوداته مـــې نظر کړه

تـــر مـــجنونه که څه زیات نه یم کم نه یم

کـــه له جوره دې بسیار ژاړم مـــعاف کړه

کـــرم بـــین یم امـــوختـــه پـــه ستم نه یم

وهـــر لورته چې مطلوب مـــومم روان شم

زه طـــالـــب یم اړیـــه دیـــروحـــرم نه یم

تـــر عـــربه مې شـــهره ده محبته

زه یوازې څه مشهور په عجم نه یم

"۱۳۴"

آرزومـــن که دګـــلزار یمه په ځـــای یم

کـــه مـــین په ګلرخـــسار یمه په ځـــای یم

عندلیب دباغ دمخ دي یم ګلرویه

که په آه وپه چغار یمه په ځای یم

چي له بلي لاري هم وآګاه نه یم

که روان دعشق په لاریمه په ځای یم

کاردعشق چي دی بهتر په دواړه کونه

که مشغول دعشق په کاریمه په ځای یم

که له غیره سره غیریم بي ځای نه یم

که له یاره سره یاریمه په ځای یم

چي نفیس متاع دی یار پیداً بازار کي

که دیار زه خریدار یمه په ځای یم

بیماري راوړي داستاستر ګي بیماري

که دستر ګودي بیماز یمه په ځای یم

چي بي مخ دی بنکلي بي نقش ونګاره

که عاشق دخپل نګاریمه په ځای یم

محبته چي طوطي یم په ګفتار کي

که په شعر شکر باریمهٔ ځای یم

"۱۳۵"

په کلام باند عاشق یم لیونی یم

کلام می دی زه کیفي ددغه می یم

دکلام په نیستان ګي مي مسکن دی

په بیشه دبلاغت لکه مزری یم

گوی دشعر په چوگان دژبې وړمه

په میدان دفصاحت چې مړنی یم

که هر څوشاعران ښه ښه دي تیر شوي

په کلام کې دوی زاړه شوزه ځلمی یم

ددوستانو په نظر کې لکه گل یم

ددښمن په دواړو سترگو کې اغزی یم

دقفنس په دودنفس مې آتشبار دی

سوی زه دخپل کلام داورپه سوی یم

که حسب نسب مې څوک پوښتي ظاهر دی

زه مشهور په جهان ترکا ووس وکی یم

زما پلار حافظ الملک حافظ رحمت و

ځان فرزندیې نه گنم بلکه مریی یم

په صف جنگ کې دی شهید شه زه ونه مړم

داافسوس له ما سره دی څوژوندی یم

زه بړیځی کوټه خیل یم په نسب کې

درسول ددروازې چې کوټنه سپی یم

څه عجب که همه ډک یم له کماله

چې کمال مې وه نیکه زه یې نوسې یم

پښت په پښت مې ټول نوسي دکمال زودي

له پلوه دمورزه هم کمال زی یم

له ازله مي خطاب محبت خان دی
لیونی د محبت یم لیونی یم

## ن

## "۱۳٦"

عــشق ترحد په هــورته بشه راباند ګــران

ســباقي راشه دامــشکل مــې کړه آسان

خــنګه خلاص له دې بلاشم چې په عــشق

زړه پــه خپلــه شــه زمــا آفت دځان

مــرتــبه تــرعشــقه لــويــه ده دچــا

چــې لــه عــشقه دي قــايم مزکه آسمان

بـې دعـــشق لـه تـــورې چـــاوژلي دي

دوه دښـــمنه چـــې يونفس دى بل شيطان

چـــې مې ولوست له الحمد و تر والناس

هـــر يوحرف لــه عشقه ډک دى دقرآن

هـــم له عشقه دى گريوان خيرې دگـــل

هـم بلـــبله کـــا فـــرياد پـــه گـــلستان

دعـــشق غـــشى چې په زړه لـگي دچـا

بـيالـه زړه يـــې هـــډونـــه وزي پـــيکان

چـــې ملاوتړي په لوټ کـــافرد عـــشق

دعـاشـــق نه ديـــن شـــي پـــاتې نه ايمان

عـــشق چې واخلى ديقـين توره پـه لاس

پـه يودم کـــې لښـــکر مات کا د گُمان

وچـــې شونډې گونه زيړه اوښې ســرې

عـشق عـــاشق لره داور کـــاندي سامان

چـــې دعشق دجنون لاس بـــرشي په چا

نـــه گـــريوان پريدى[۱] ثابت نه يې دامان

دهـــرچا په زړه چې عشق کاندي اوربل

اوښـــې گـــرمې يې راوزي[۲] هرزمان

عـــشق شيرين کا په خاطر دسرې مـرگ

لــه ژوندونه خپل پـخپله وي پښيمان

يـــاطبيب يـــې نـــشته يادارنځ دى خور

څوک دعشق نه دارو کاندي نه درمان

-------------

(۱) پريږدي

(۲) اصل : ووزى

عـشق همه واړه يکسان کـا پـه عاشق
هـم صـحرا هـم وداني هـم کوهستان
وعــاشق ته وي ښــکاره پايه دعــشق
دجوهـر خوجــوهــري وي قــدردان
که عاشق شولې عـارف به شې چې عـشق
سـرتـرپـايـه مـعرفـت دی دسبحان
دعـــاشق دوراندې وي طــفل مــکتب
افـلاطون که جـالينوس دی که لــقمان
مــحبته بس ســکوت کــړه اختيار
دعــشق شان کولی نشي څوک بيان

"۱۳۷"

ددنـــياياران آخــــرشي اغــياران
چې په مـرګ سره بيليږي داياران
اول ووريـــږي شي آخرتـــه شين
دنـــياتيره هـسې شي، لــکه باران
پـخواپورې زلـفې نسي[1] مخ ديار
ګـنجينه ترسـينې لاندې کا ماران
ټـول بيان کاندي اسرار دمـعرفت
چې په جوش دمستي راشي ميخواران
مبتلا په رنځ دعشق يې شه هـرڅوک
ســتابيمار روسترګــو ټول کړه بيماران
کيفيت که دشراب کاندي مـعلوم
پـه پرهيز به شي پښيمان پرهيز ګاران
يايې زړه يايې ځګر وي په حال پوه
دعــــاشق خوزړه ځګر وي رازداران
عـاشقان لکه ميږي کاندي پـايمال
چې دنازپه آس سواره شي شهسواران
په اِکــسير دنظر مــس به يې کازر
که نـګاه په محبت کــاخاکساران

--------
(۱) نيسي

"۱۳۸"

خوله چې وازه په خندا کاګلرنګان — شګفته لکه غنچه شي دلتنګان

ځان سيزي خپل په شغله يې د جمال — عاشقان چې ددې اوردي پتنګان

د براهيم ادهم له حاله شه خبر — بادشاهان کړي دې مينې ملنګان

عشق درياب دی چې پايان يې نشي موند — عاشقان ددې درياب دي نهنګان

هرګيدړ په بڼ دعشق نشي ساکن — پکې اوسي يامزري يا پلنګان

مست هاتي دعشق هله کاندي تابع — چې دځان په صرفه نشي سر هنګان

يونګاه دې شي په درست جهان غالب — نه شاهين يونه زرګونه ګُلنګان

چې خراب کاندي ښه نوم په بد عمل

محبته هسې ډير دي بي ننګان

"۱۳۹"

مه تړه ورپورې ځان — چې فاني دی داجهان

دهغه اوسه طالبه — چې باقي دی هر زمان

له جهانه دی عالم — يو په بل پسې روان

ډيربه يې په ډيرحسرت — لاړه ډير په ډير آرمان

واړه تلوني دي آخر — هم ګدای هم بادشاهان

خلاص به نه شي له مرګې — څه هندو څه مسلمان

دنياده ماتم کده — دښادۍ نه دی مکان

دلته اوسه لکه شمع — له خندا سره ګريان

غرض داچې پدې ځای — له دانا به نادان

ځکه غوره کړه سودا

ليوني محبت خان

هر چاته چې ګـورم ستا طالب دی په جـهان

لوی دی که هلک دی که سپین ږیری دی که ځوان

مـخ دې چـاونـه لیـدله جـهانه خـلقې

لاړې وعـدم تـه ددیـدن دې پـه آرمـان

نوم یې په خـوله اخلي ولـیکن په جستجوی

چـاهـلوپـیدا نه کـړنشـان دبـې نـشان

نـه دی چامونـدلی نه به بیامومي یې څـوک

ګـرزي پـه تـلاش یې هـمه واړه سرګردان

غـواړې کـه یوځـوورځې بقالکه غنچه

خـولـه کـړه خـپله پټه لکه ګـل مشه خندان

ځـان مې ته یې نه کړم په څه شان مینه پـه تا

هـرڅـوک زمـا جـانه ډیر مین وي پخپل ځان

خولـه یې سره په پانوپه نکریزویې سـره لاس

ویـنې بـه مـې توی کا چې رادرومـې پداشان

سور په آس دنازې [1] په میدان شه جلوه ګـر

زړه مـې لـکه ګـوی دی زلـفې ستا لکه چوګان

رندکله ښکاره کله معلوم شي پرهیزګار

واړه مـحبته ستا دې کارته دي حیران

---------

(۱) نازېي

"۱۴۱"

چې مې روح يې ته په تن | بې له تامرم جان من
په چشمانو يې بادام | که نرګس يې دګلشن
هم په سترګو جادوګر | که غزال يې دختن
په لب لعل دبدخشان | که عقيق يې ديمن
دحيات چشمه په خوله | که کوثر يې په دهن
خوش رنګ سيب يې په غبغب | که خورږآم يې په ذقن
سيم بدن يې په صورت | که په رنګ يې ياسمن
په قامت سروه دباغ | که عرعريې دچمن

محبته خوره شکر
چې طوطي يې په سخن

"۱۴۲"

زه دنيا له خدايه نه غوارم نه دين
بي له عشقه چې مې تل وي دلنشين
که دې زړه توردی دشرک له سياهي
څه حاصل چې سپين زړوکی کړې رنګين
تورو سپين به دی هغه راشي په مخ
هرچې وخاته په لوح دتوروسپين
که په ګوته کړې يوځل ګوته دعشق
ملک به کړې لکه سليمان زير نګين
واړه بيامې موندل ستا په بوی دزلف
هم خطاو ختن هم چين و ما چين

هـــرمشکل به مې آسان کړې پـــه يودم

راتـــه پـــرانـــزې کـــه غـــوټه دجـــبين

که نن خوب کړې په سمور وپه سنجاب

ســباخاوره ده بســـتر خـــبنته بـــالـين

عـــشق مذهب دی په دنيـــا وپـه عـقبی

پـــه کـــونين کې نه بـــل دين دی نه آئين

له ګفتاره دې لذت مومي هرڅوک

مـــحبـــته ته کلام لـــرې شـــيرين

و

"۱۴۳"

گل نثاردی ستادشونږو | څه بهار دی ستا دشونږو
هرچې لعل وگوهر غواړي | خریدار دی ستا دشونږو
په جهان چې څوک آزاد دی | گرفتار دی ستا د شونږو
هغه نازپه مسیحاکا | چې بیمار دی ستا د شونږو
همیشه خونونه کاندي | دغه کاردی ستا دشونږو
داچې لعل دبدخشان دی | باج گذار دی ستا دشونږو
مهتر خضر چې لاگرزي | طلبگار دی ستا دشونږو
هم سلیمان چې لري مهر | خاتم دار دی ستا د شونږو

محبت به دې خوله اخلي
چې دی یاردی‌ستا دشونږو

"۱۴۴"

یاران کــله مومي څــوک بې له اغــیارو

چــامــونــدلي دي ګــلونه بې لـــه خارو

آخــر سرې دمظــلومــانو شــوې په وینو

چـــې خونونه وکړه ستاسترګو خونخوارو

تــل اوبه چې په کــمزروي څای مــاتیږي

ژړا څـــکه پــه نــصیب کې وي دخوارو

بــازد ســترګــویې لري دبڼو نــوکــې

ژوبــل ژوبــل زړه زمــا کــاپــه نوکارو

زلــف یې شه لکه تــسبیح دمـــرغــلرو

چـــې یې ډیر زړونه پــېیلی دي پـــه تارو

کـــه له درده ســتایې وخــیژي دمـــونه

هــډوهـــیڅ وتــنه نه کړي پــه بــیمارو

دانـــایان پـــه یـــوکـــاته یې نــادانان شو

هـــغې مـــستې عـــقل یوور دهــوښــیارو

چـــې وچاته وهـــي سترګه چاته خاندي

یوعـــالم بـــه کـــنډ کپرکړي پـــه دا چارو

لـــکه تادمـــحبت خاطر غمـــګین کړ

هـــسې زړه دې آزرده کـــړد بـــسیارو

"۱۴۵"

پـــه زورونونه داکـــارشـــي نه په زرو

پـــردي نـــه خـــپلیږي بې لـــه ښـــوخبرو

په خــبره زړه شـــي خوږ په شکر ژبــه

ښــي خـــبرې وي لــــذيذې تــرشكرو

ښــي خــبرې وپيــيه پــه تــار د ژبــې

چــې بهــتر وي ښــه كــلام ترمـــرغــلرو

هسې غږدښه كلام دى په مـخلـوق كې

چــې وايــه شــي پــه بــدلــو په سندرو

هـمت ناک شه داخلاص وزر پـيداكړه

چـــې تـــرعـــرشــه رســي مـرد پـدا وزرو

كړه پـخولايې كه عـــاشق له تا مـانې كا

چـــې تـــه يې تـــسلي بـــخــش دمـــرورو

په وصال يې هر كمبخت كله كامياب شي

مــعشوقــه وي پـــه نصــيب دبخـــتورو

ددنـــيا پست وبـــلند به در ته هيڅ شي

كـــه شي تـــيردعـــشق پـــه لـــوړ وپــه ژورو

په جــفايې صبر كړه ياترې په خـنګ شه

غــلى شــه يـــالـــرې شــه لـــه زوره ورو

لاس په هوښ پرې باندې ږدئ چې مات يې نه كړئ

زړه نازک دمـــــحبت دى ښيـــښه ګـــرو

"۱۴۶"

پــه خوبـانو كــې ته يې مـثال دواړو

پــه رښـا دې شي ښــكاره جـمال دواړو

هــرعاشق غافل له فکره دخــپل یارشه
چــې وســتاپــلوته راغــی خیال دواړو
دســتی دپــتنګ حــال او زمــایودی
وی یــکسان دعــشق په اورکې حال دواړو
چې بلــبل طوطي وینا کا هــغه زه کړم
خــوش کــلامــه یــودی یومــقال دواړو
که لیلا ده که یوسف دی که عــذراده
پــه ښــایست کې زمــا یاردی سیال دواړو
عــاشقان همه وصال درڅخه غــواړي
یوځــواب ورکړه چــې یودی سوال دواړو
خــزانې که تــولې تل دنــیا داران کا
دقــانع پــه نــظر هیــڅ وي مــال دواړو
محبته څوک ترې خلاص آشفته ګان کا
چې دیارزلفې کړې خدای جنجال دواړو

"۱۴۷"

تــل حــمــلې وي دشهــبازو
یــاپه زانــو یا پــه قــازو

دپــتنګ پــه دود لــه اوره
ویــره نــشي دجــانبازو

لــکــه شمــع ژړا کــاروي
درســته شپه دجــانګدازو

ثــمر بــخــش شي لــکه ونه
دادی کــارد ســرافــرازو

وي عــمل پــه رضــا خپــله
هــمیشــه دبــې نیــازو

په جهان کــې یا معشوق دی
یــا نغمه د خــوش آوازو

زړونـــه تل دعـــاشـــــقانـــو مـــعشوقې يوســـي په نازو

هـــم مـــدام يې قـــتل کاندي پـــه اداووپـــه انـــدازو

تـــل يې ســـترګې جادو ګرې ســـحر کـــادســـحر سازو

پـــه نغـــمه به مې ګـــريان شي کـــه يې واورئ نی نوازو

هـــمسري لـــه مـــحبـــته

څـــله کړئ ســـخن طرازو

"۱۴۸"

دوه چشمان دې شوخه مکيف چې پـه شراب شو

تش پـــه يو کاته يې عـاشقان مـــست وخراب شو

راکـــړ دهـــر سوال ځـــواب ومـــاته فلـــسفيانو

يـــوله عشقه سوال مـــې چې ترو کړلا ځواب شو

حـــال دزړه ځـــګر مې څه پوښتې آتش خصـــلته

ســـتادغـــم پـــه اور مې زړه ځګر دواړه کباب شو

چـــازلفې پيچـــدارې خپـلې وښوې ناڅـــا پـــه

زړونـــه د عـــالمو چې ناګـــاه په پيـــچ وتاب شو

چـــاته ګوهر خپل وښيم څوک بـــه يې قـــيمت کا

دريـــغه لـــه جـهانه جـــوهـــر يان واړه ناياب شو

پـــاتې نه شـــه يوهم عـــندليب پدا ګـــلزار کې

حيف دی چـــې په باغ د دهرټول همه غُراب شو

دريغه دريغه دريغه چـــې ياران ودوســـتداران مې

واړه تـــار پـــه تـــار دزمـــانې پـــه انقـــلاب شو

خــونه دې خوره شه چې اې مرګه ستاله لاسه

هــرچې بيداران ووهــمه ګی واړه په خواب شو

ســيند د محــبت قــعردرياب دی مــحبته

لوی هلک هوښيار ليونی ډوب پدا دريابشو

"۱۴۹"

کــشکی يووي ستا ښــامارد تورو زلــفو

يــويومــار دی يويو تار د تورو زلــفو

خــو چې يوځــله پدام کــې يې اسير شه

نــه خلاصــيږي ګــرفــتار دتورو زلــفو

عــاشقــان بيــچاره راولي پــه بــند کې

بې له دې نورځــه دی کار دتورو زلــفو

لابــلا پــه بمــردم راشي چــې دتــرکو

تورچــشمان شي مددګار دتورو زلــفو

مــعطر به شــي په زلــفو يې ســاکن شه

چــې اقــليم دی عنبر بار دتورو زلــفو

چــرته نقل چــرته اصــل فــهم وکړه

نــمونه دی ســنبل زاردتــورو زلــفو

شــي تــسبيح به دې قــبول هــله زاهده

چــې په غاړه کړې زنار دتورو زلــفو

ملک دزړه چې واخلي هم په يوساعت يې

بنــدوبست کا شهر يار دتورو زلــفو

چې سوداېي دبازار ګرمه ښکاره شوه
مــحبت شــه خريدار دتورو زلــفو

"۱۵۰"

ګــرزم تاپسی په کومو کــومــومز کــو
عــزيزان مــې خــنګه نه شميري پــه ورکو
که هرڅو په خوی خصلت کې ســړی درونلوې
آخرسپک شي چــې وي هــم صحبت دسپکو
چې نيک ذات وي کارپــه رمزو اشارت کا
عــراقــي ته څــه حاجــت دی د چــابکو
نــادانان په مست دعــشق هسې غوغاکا
لــکه شــور پــه ليــونــي وي دهــلــکو
شوخ ترکان په زړه مې کاندي هسې هېې
لــکه فــوغ چــې پــه چــاراشي داوزبــکو
لــکه غــشي لګي کسي دې دســـترګو
مــردمــان مــري پــه نــګــاه دمــردمــکو
الــحــذراې مــدعــي آتــش کــلامېم
ګــوزارونــه کــا داژبــه دتــوپــکو
مــړني دي چــې وعــشــق وته ټينګيږي
مــقابــل يې څــوک کيدی شي بی له کلکو
څرته حرف د محبت څرته دبل حرف
څــه ســيالي له مرغلرو دګــنجــکو

"۱۵۱"

خدای پیداکړې ته آفتاب زما دسترګو

دکتودې چرته تاب زما دسترګو

ماهم خس هسې له ځانه سره یوسي

چې په جوش راشي دریاب زما دسترګو

داوبو استوګه غم مې په نصیب کړه

چې جاري یې کړسیلاب زمادسترګو

په شپه چرې که دخوب په اراده شم

خیال دې راشي یوسي خواب زما دسترګو

چې یې بیا مومم یوازې حجاب راشي

ترې محروم مې کا حجاب زما دسترګو

په فراق کې دې داوښوله کبله

همیشه وي کور خراب زما دسترګو

مرغلرې مې داوښو ټولې توی کړې

غم دې خاورې کړاسباب زما دسترګو

چې دې وویني زما سترګې شي مستې

ننداره دې ده شراب زما دستر ګو

ستاد مخ په آب وتاب ځوېې نظر وي

هومره جوړوي آب وتاب زما دسترګو

داابلق دې ځه قابل دسوګلی نه دی

چې ښپه[1] نه ږدي په رکاب زما دسترګو

---------

(۱) پښه

اوښـــې ګرمې چې زما له سترګو څاڅي
مـــحبت کـــز٠زړه کـــباب زما دسترګو

"۱۵۲"

چـــې دخال دې وه مدام مې خیال په سترګو
آخـــر کســی مې داستاشه خال پـــه سترګو
ګوتې ږدم پخپلو سترګو بیا یې ښکل [۱] کړم
چـــې په خوب ووینم ســتا جمال په سترګو
لـــه فراقـــه دې یم مـړبیا به ژونـــدی شـــم
کـــه راوښـــیې بیا خپل وصـــال پـــه ســترګو
په مجلس کې یې که ناست یم خاموش څه شو
زه لـــرم ورســـره قـــیل وقـــال پـــه ســترګو
کـــه هرڅـــو عاشق معـــــشوق خبرې نه کا
یـــووبـــل وته ظـــاهر کـــا حال پـه ستر ګو
پـــه جـــهان کې دې نـــظیر لـکه عنـــقادی
ســـتالـــیدلی نه دی هـــیڅا سیال پـــه سترګو
چـــې دولـــت دقناعـــت دچاروزي شـــي
هـــیڅ ښـــکاریږي ورته ملک ومال په سترګو
دهـــمای په شـــان طـالب یې شـــم دسوري
چـــې زه ووینـــم داســـتا دوال پـــه ســترګو
بـــې له تا به بـــل پلوتـــه نظر نه کا
وابه نـــخلي مـــحبت وبال په سترګو

---

(۱) اصل : خکول

"۱۵۳"

دغه وخت دی بیا به وخت نه وي دګلو

څوکولی شئ چغار کا نئ بلبلو

شګفته شه باغ په ګلونوبهار دی

ساقي زرشه پیالې ډکې کړه دملو

بې له زلفو دې نظر کړم څه سنبل ته

ستا دزلفو سودمې نشي په سنبلو

مښک عنبر څه بوی وتاوته څرګند کا

چې دې وشرمول دواړه په کا کلو

بیا دې نن په تیغ دظلم څوک شهید کړ

چې دې لاس په وینو سره دي ترڅنګلو

له غفلته دې ومرګ ته خونزدې کړم

لابه څه کړې زما حال په تغافلو

چې طلب کړم وصل وایي تحمل کړه

زه دې ووژلم په ډیرو تحملو

که هواو غواړي زړه مې لکه زرکه

وهواته ځم دبازو په منګلو

هرحشمت به درته هیڅ شي محبته

که نظر کړې دمحبوب په تجملو

"۱۵۴"

په نکریزو لاس دې سره دې خوله په پانو

نن به ولګئ ګنج دشهیدانو

که دعشق بې کفر دادی له ایمانه
لاس کړئ پورته واړه اې اهل ایمانو

عالم ځي سودا دپاره وبازار ته
ولې ماسنواېي بوزي په بیا بانو

سل منصور جلوه فرماشول په سل داره
چې مې اوښې په سرراغلې دمژګانو

سوی لرم دعشق په زړه کې نوپه سترګو
څه پوښتې ناصحه حال دخونه ورانو

په دې سروشونډو په دې حنایې لاسو
زړه دې وینې کړدلعل ودمرجانو

لکه ګل غنچه د زړه مې شګفته کړې
څخو راته په خندا شئ لب خندانو

تنګدلي مې لرې کړئ په تبسم خپل
واد زړه عقده مې کړئ غنچه دهانو

چې ګدای شوم په کوڅه دمحبت کې
نور نواب یم د نوابو خان دخانو

"۱۵۵"

همیشه وي تودبازار د درویشانو
مدام اوسه خریدار ددرویشانو

ومنزل ته په اول قدم به رسې
که قدم کیدې[1] په لاردرویشانو

مقرردحق کلام به دې ترغوږ شي
که غوږ کیدې په ګفتار ددرویشانو

له ګلزاره ددرویشوګل طلب کړه
شګفته وي تل ګلزار ددرویشانو

---------

(۱) کښېږدې

بیابه نه مومې مطلوب هڅوطالبه　　ځــوچې نشي طلبګار ددرویشانو
په بهار ددرویشانوجنت موندشي　　چــې جنت دی خود بـهار ددرویشانو
که دیدارد‌حق طـلب کړې حق طلبه　　مــشرف شه پــه دیدار ددرویشانو
دصادق درویشوحال مې درته ووې　　که صادق وې شه خاکسارددرویشانو
اوکه نه داهــسې نه وي درته وایم　　چې ځان نه کړې ګرفتارددرویشانو
آدم روی ابـلیس په دوی کې پیداکیږي　　مــکر لــوی لري مکار ددرویشانو

دمزري په پوست ګیدړهم ځان ځرګند کا
محــبت کړ فـرق اظــهار ددرویشانو

"۱۵۶"

چــې رایادمــې شــي جمال دښو یــارانو
خوب زما ورک شي پــه خیال دښو یارانو
جــدایــي دښــویــارا نــوجهــنم دی
اوجنــت چــې دی وصال دښــویارانو
دریغــه اوس راته په ځــای دافسانې شه
چــې مې اوریــده مــقال دښـــو یارانو
هغــه ښـــه یاران پــه یادمې راشي ژاړم
چې بیان کــا ځوک احوال دښــویارانو
هــسې مال دبخیل مــزکې نغړدی ښه دی
چې پکار رانشــي مــال دښــویــارانو
ورځ یې شپه نشي دچــاچې ښـه یاران وي
ورته بـل وي تــل مـشال د ښــویــارانو

دیــارانو پــه زوال دولــت زایــل شي

خــــدای دې نه کاندی زوال دښــویارانو

چــې زوال دچــا ولــوري وته مــخ کا

شي زوال یــې پــه هــرکال دښــویارانو

ښــه یاران نه لــري مــثل مــحبته

بــیا به نه مومــې مــثال دښویارانو

"۱۵۷"

یارله غیروکه اغیاروی[۱] ښــه بــه ښــه وو

کــه لــه یاروسره یاروی[۲] ښــه به ښه وو

هــغه شوخ چــې په جمال لکه افتاب دی

یــوذره کــه وفاداروی ښــه بــه ښــه وو

چــې بادشاه دی په ښــایست کې دخوبانو

کــه نــظرېې په ماخواروی ښــه به ښه وو

هرعاشق طلب معشوق کاندي معشوق هم

دعــاشق که طــلبگار وی ښــه به ښــه وو

هــرزمان هرساعت سترګې مې محظوظې

که دښــکلیو پــه دیدار وی ښه بــه ښــه وو

دوفاجــنس چې مــوندنشي که داجــنس

دخــوبانــوپــه بازار وی ښه بــه ښــه وو

چــې په زورداهسې زړونه اخــلي دریغــه

کــه دزړونو خــریدار وی ښه بــه ښه وو

-----------

(۱) وای

(۲) وای

دسیم تنوزري پوشوصدقې له
که مې سیم وزربسیار وی څه به ښه وو
ګل ومل باغ وبهار دی محبته
که په دې وخت ګلرخسار وی څه به ښه وو

"۱۵۸"

بارې زه او یاردخدای له فضله چې پخلایو
هره شپه کینو[۱] سره درازخبرې وایو
زه یې سره لبان ګورمه دی مې زیړه ګونه
ناست په خوښی دواړه یودبل په تماشایو
لاس ترلاس نیولي په صحرا وپه باغونو
ګرزوننداری کړوپه هوس وپه خندایو
لوی دولت دوصل چې زموږه په نصیب دی
بې له زرو ماله ترباد شاهه هم سوایو
تودبازار دمینې دښایست دي دوکانونه
موږه دوه مین دعشق وحسن په سودایو
زه ترې خوله طلب کړم دی له ما طلب دزړه کا
یوله بله خوښ پخپله خپله تقاضایو
یار په څنګ مې ناست دی له نصیبه محبته
ځارتردې ساعته شم چې دواړه خواپه خوایو

---------
(۱) کښینو

## ٥

## "١٥٩"

ځخوته مې هم له حاله نشه آګاه     ځوغافل به يې له ما غفلت پناه

په کږولارو چې يې له ضلالته     سمه لار پريدې (١) دعشق ولې ګمراه

دکمزورو په ايذاولې رستم شوې     خطره نه کړې دپيرزال له آه

هرفقير چې دخوبانو دکوځې دی     دهغه خوبرابرنه يې بادشاه

څه تعريف دې درخسار و دښايست کړم     يوخوبې ورې له آفتابه بل له ماه

رسم وراه دعاشقي به هرچا پريښود     که خبرشوی دمعشوق له رسم وراه

---

(١) پرېږدې

دجاذب احوال مـعلوم شي له مجذوبه     شي ښـکاره دکهر باخاصـه له کاه
ګناهونه که هرڅـوزه بې حساب کړم     هـم رحمت يې ډيرپه مادی له ګناه
مـجبت ديونظر دې حاجتمند دی
يونظر پـه مـحبت کړه عالي جاه

"١٦٠"

راښـکاره که ښـکلی مخ کړې لـه نقـابه
ګـوی دحسـن بـه تـه يوسـې له آفتابه
دقيـامت به سخت عذاب په مـآسان شي
که مـې خلاص کا خدای دهـجرله عذابه
ټـول بـيان زمـا دغـم کوې لـه درده
داد درد آواز چـې خـېژي[1] لـه ربابه
سترګې ستاچپله مستي که ښـکاره کاندي
کـيفيت بـه واړه يوسـي لـه شـرابه
هـزيمت هيـچرې نه خوري له عـاشقه
مـعـشوقه چـې هـميشه وي فـتحيابه
تـل سـايل زه دې پـه درلـکه فقـيرېم
سـرفـراز دې چـرې نه کړم لـه ځوابه
وربی پروت پرانتې سترګـی ستوري شمېرم
ستاپـه غم کې شوم فـارغ لـه خورو خوابه
چـې هردم لـکه باران پـه شېبوژاړي
قـلنګ وابـه خلي داسـترګـې لـه دريابه

--------

(١) خيجي

تاجــهان په اوښــوډوب کړ مــحبته
کور دې وران کړ دمخلوق خانه خرابه

"۱٦۱"

تــه پیداکړه ددیدن ســترګې طالبه
مــحبوبا خــوده حاضــره نه غـایبه

مــاوې زه به په هــرچا غلبه وکړم
بارې څــه کړم په ملمینه شوه غــالبه

څوک زاهد شه څوک ملاشه زه عـاشق شوم
خدای هــرچاته بـخره ورکامــناسبه

فــقیرې شاهــې لرې مــرتبې لوېې
ولــې لوی دی عشق ترهمه مـراتبه

عـاشقان دعــجایب ننداره کاندې
عـشق معمور دی سراسر له عـجایبه

خط په مــخ دمهرویانو قــدرتې دی
همسرې څوک دقدرت کاله کاتبه

عشق واجب دی بې شبهې هغه کافر دی
هرسړی چې وې منکرله دې واجبه

بنده ګې کړې خــان بنده دمــولې بولې
تو لـعنت پــداو ېــل دې شه کاذبه

صاحــبان په غــلامانو خپل کرم کا
مــحبت دی ستا غــلام زما صاحبه

"۱٦۲"

لب دې ښــکل کــړم شکر لبه
بــارې نــه یم بــې ادبــه

ســیم وزرتر تــاقــربــان کړم
زرې پــوشه ســیم غــبغبه

څــوچــې ته مې طلب نه کړې
نــه رسیــږم تــرمــطــلبه

زلــف ورخ دې بــیــخبر کړم
هــم لــه روزه هــم لــه شبه

تــه ســبــب زه مــسبــب یم
مــسبب وې لــه ســببه

عاشقان دې خدای محفوظ کا
دمـــعشوقــولــه غــضبه

یــار رهــبر زه یــې رهــرویم
څــه پوښتې مې لــه مــذهبه

چې په عشق مولامنصوب کړم — پـاتې نشـوم بې مـنصبه
دنفـس واګـې په اختيار کړه — آس مـه پرېږده بې جـلبه
په سـوروپـسې کـم عـقله — پياده يون کړې بـې مرکبه
ځـان عـالم ګـڼې بـې علمه — اې لـه جـهله مـرکبه
نه مـومـن يې نـه کافـرېې — اې پـه دين کې مـذبـدبه
بـياپار سـاوا يې وځـان ته — پارسـايي دې ده عـجـبه
دعـشق تـبې ونـيولـم — اوس زه څـه کړم زمـا ربه
کـه دارويـې مـسيحاکـا — پـرې بـه مـانږدي داتبه
بـياله تـابـه اې سـاقـيه — درنـدانـوهـم مـشربه
مـحبت لـه مې دمـينې
پـيالـه غـوارې لـبالبه

"١٦٣"

دآشنا لـه جـدايي تـوبـه توبـه — لـه دې هـسې آشنايي تـوبـه توبـه
بـې لـه ياره که نظـروي په بل چا — لـه دې هـسې بـينايي تـوبه توبه
پـه کلام کې چې ديارنه وي صفت — لـه دې هـسې ګـويايي توبـه توبه
دريـا پـه پارسايي خاندي فـجور — لـه دې هـسې پـارسايي توبه توبه
چـې پـه پوهه يې عاشق وي ليونى — لـه دې هـسې دانايي توبـه توبـه
نصيحت چې دناصح نه کاندي غوږ — لـه دې هـسې خودرايي توبه توبه
خداى دې خوک په بې عـشقي نه کا مشهور — لـه دې هـسې رسـوايي توبه توبه
چې هرځاى معشوق جـلوه کا لکه غر — لـه دې هـسې هرجايي توبه توبه
مـحبت هم صـحبتان کړل ليوني
لـه دې هـسې سـودايي توبه توبه

"۱٦٤"

په ښـــایست کې ده بې مـــثله هـــغه خوبه
خوش اندامه ده خوش شکله خوش اسلوبه

پــــه طلب یې اوســــه ته دزړه لــــه صدقه
چــــې طالــب صــادق وي رسي تر مطلوبه

لوی ظالم یې چې لړې سترګې خونخوارې
دواړه ډکـــې لــــه فتــنه ولــه آشــوبــه

مـــحــبوباتـــه پــــه داخـــت ځـګـــروایم
چـــې دزړه مې په تـــکړوکې ده محسوبه

پــــه هیڅ څیزمې رغبت نشته په دوه کونه
زه تـــا غـــواړم اې زمـــا دزړه مـــرغوبه

په جـــفا دې شوم صـــابر ترحد په هورته
مـــانامـــه دصبـــر یــووړه لـــه ایـــوبـــه

زه ومـــړم زما یـــوسفه ســـتا په غـــم کې
یعـــقوب ړونـــد شـــه زه سوایم تر یعقوبه

زه تـــرزهـــده یې بـــاده ګـــنم بـــهـــتره
کـــه هـــر څـــوده وزاهـــد وتـــه معیوبه

اشـــتقاق دی د محبـــوب له مـــحبته
مـــحبت نه جـــداکـــیږي له مـــحبوبه

"۱٦٥"

بـــهره مند که په وصـــال یې له حبیبه    بختوریې ترهـــر چـــا صاحب نصیبه

مجنون پرېښوومه نایب ولې یارانو نایب زیات شه په جنون کې ترمنیبه
هرقدر چې ته بعید له خود بینۍ شې محبوبا به هومره شې درته قریبه
چې مې ولېدې هغه زلفې پریشانې شواوراق د جمعیت مې بې ترتیبه
رنځ مې دی هغه رنځ چې بې داروکړې پاخه هورته شه له ماناداں طبیبه
خان زما ولې هم په تامین یم چې اغزی زما د ګل خوبې رقیبه
بادشاهان دباشاهې دې ذکر کاندې ته خوخپله غریبې وایه غریبه
چې په یارپسې له شوقه څوک روان شي سل فرسخ شي ورته کم تریوجریبه
شوخي کاندي زړه مې راشه محبته
په ادب بې مؤدب کړه اې ادیبه

"۱۶۶"

سمې لارې ته په هپه شه روان مه زه په چپه
خدای دې هیچرې یادنه کړ اې په عقل وفهم ټپه
له هندوخووشرمیره چې خالي نه وي له جپه
اوده پریوزې له غفلته چې غله وخورې څولپه
بې دعشق له قیل وقاله
محبته کاندې ګپه

"۱۶۷"

دفراق نه سحر کیږي په مانن شپه
یااوږده شي هم داهسې په غمجن شپه
ترشب قدره هم هغه شپه وي پرې زیاته
په وصال چې تیره کاندي دوه مین شپه

دوصال وعده په شپه ده راښکاره کړه

نن خومه ښه ورځې په لمن شپه

دشواري دشپې درد من زده چې تېرېږي

دقيامت ترور ځې سخته په درد من شپه

دګداى تيره په سردتناره شوه

که دې تيره شوه منعمه په برستن شپه

دوصال شپه نن داهسې ده روښانه

څه عجب دى که ښکاره کاورکه ستن شپه

بې له تا په محبت چې شپه تيرېږي

خداى دې هسې تيره نه کا په دښمن شپه

"۱۶۸"

ته کنځل[۱] کوې په جوروجفا ماته

زه دعا کوم په مهروو فا تا ته

ستا په غم کې چې زما په زړه تيرېږي

څوک همدرد مې نشته ووايم وچاته

لکه شمع وهرچاته مخامخ يم

که مې مخ ته ګوري څوک که مې وشاته

بې وفا دنيا آخر هرچاته شي ګ

هغه مردي چې پخوا يې کړ ساده له

له اعمالو دزاهد مې احتراز کړ

نصيحت شي دنياداو عمر د ساته

---

(۱) مکنځل

د مجنون په مرگ که وران شه زه ژوندی یم
بیاوډان به یې کړم ووایې صحراته

په جهان کې مبارک هغه ساعت وي
دآشنا خبرچې راشي وآشناته

له جنته آدم راوستلم دلته
ناچاري ده څه ووایم دې باباته

ظلم یې گوري هر طرف چې محبت وي
نه لیږي له بیر حمی خط هغه خواته

"۱۶۹"

مرم په غم دې وساته مې له مماته
اې په دم عیسی په خوله آب حیاته

ستاپه عشق کې لکه غرچې استواریم
کوه قاف دی په حیرت مې له ثباته

شپه وورځ چې دې په غم آه وزاري کړم
په فریاد دې زن ومرد مې له اوقاته

که غافل په زړه بې هیڅ به حاصل نه کړې
له صلوته صومه حجه له زکاته

اجروابه خلې که خیر ددیدن راکړې
ثواب زیات دې یوپه لس شي له خیراته

بې له تامې سترگواوړی پشکال کړ
پیش قدمي اوښو مې کړه له برساته

که له زلفې کله خال راته بلاشي
په درست عمر زه خلاص نشوم له آفاته

زه صهبا ورسولم تر مقصوده
شوه ویارته مې ریباره دابدذاته

هرساعت د محبت په ذکر اوسه
چې افضل دی پس له حمده له صلوته

"۱۷۰"

که حرمت غواړې گوری نشي بې پته
تربې پته زیات به څوک وي بې حرمته

دواړه زلفي دې له مخه څخو واخله

دسحر رڼا پيداکړه له ظلمته

بيا به مومې بلندي که فروتن شې

چې معراج بيامووند يوسف په کوهي ښکته

بې ساقي مستان دهيچا وينا نه کا

هاتيان څوک مسخر کاندي بې ماوته

هغه يارچې نه ځاييږي په جهان کې

پيدا تنگ زړه کې مې ناست دی فراغته

عاشق هر ساعت په يادمعشوقې وي

رتبه زياته ده دعشق تر عبادته

په غير جنس کې هم تاثير دصحبت گوره

اوبه يخې اور داور شي له صحبته

که هر څوراشي سيلي دحوادثو

لکه غر په عشق کې ښپه [1] لره ثابته

محبته محبت په مومن باندې

واجب شوی دی له فرضه له سنته

"۱۷۱"

چې مدام گوري دمخ دې وگلزارته

هغه کله نظر کا باغ وبهار ته

هغه سترگې به جنت ته پورته نه کا

چې ناظر دگلرخانو وي رخسارته

---------

(۱) پښه

کار دعشق چې ګران وه ماځان ته اسان کړ
حق حیران شي چې څوک ګوري زما کارته
چې ریبار هم غیر ګنم له دې غیر ته
حال دیار ویلی نه شم وریبارته
دی په حسن اوزه په عشق چې لاثاني یو
یار بې مثله وایې ماته زه ویارته
غم طالب په عاشقانو کې زما وی [1]
په لښکر کې غلیم ګوري وسردارته
هزار حیف دی بیرته بیانه راجار وزي
دعدم هرڅوک چې لاړشي وبازارته
غم دزلفو دې پوښته زما له زړیه
چې سختي دشپې معلومه وي بیمارته
که واربیا مومم څه فکر دمعاش کړم
محبت مي هڅونه پریدي[2] ووارته

"۱۷۲"

پـه تلوار ځي مسافر دعمر چرته چې له ډیرې شتابي نه ګوري بیرته
چې بې یار پخپله راکاږي له جذبه دهغه څه احتیاج دی ورهبرته
یوساعت مې روح په تن اقامت نه کا هغه دم چې ته روان شې وسفرته
عاقبت به ستا هم لار پیدا کوهي وي چې کوهي په لارې کنې برادرته
عاشقان آخرته واړه لیوني شي چې بخاردعشق وروخیژي [3]وسرته
در په درخاورې په سربه هومره ګرزي څوچې لاس نه کړي په سردیارودرته

---

(۱) وای.
(۲) پریږدي
(۳) اصل : وخیجي

بیا به مومې سیم بدنه زري پوشه که ونه ګوري طالبه سیم وزرته
ستادخولې چشمه چې خدای دچاروزي کا هغه کله نظر کاندي وکوثرته

چې دیار کوڅه څوک پریدي[1] محبته
له جنته هم هغه ځي وسقرته

"۱۷۳"

رانبکاره چې شوه ناګاهه هغه مسته
لاړشه زړه بې اختیاره مې له دسته
هرساعت دزړه کباب راڅخه غواړي
هغه شونډه یې مینوشه مې پرسته
ترابده نه خلاصیږم زه له عشقه
عاشقي چې مې روزي شوه له السته
هرمعدوم به موجود وګوري په سترګو
که ته نیست شې یو زمان له خپله هسته
بې له عشقه بلند ي په دین دنیا کې
بیا به مومې کله اې په عقل پسته
زن ومرد دې بنددزلفو په کمند کړ
مسخر دې کړ جهان له بندو بسته

چې شي خلاص د محبت په سینه ځای کا
هر یوغشی چې راووزي ستا له شسته

"۱۷۴"

چادسته دګلو په تشبیه یې راوسته
ځارشه ترګلرخود ګلونو ګلد سته

---

(۱) پربږدي

وروځـی پیوسته پـیداکړې خدای مې دقاتل
ژوبـل زما زړه لـري داتـورې پـیوسته
اوس پـه لیونتوب شوم خام سخن کنه پښوا
ماهـره خبره به پـخه تـرخولـې یسته[1]
زړه پـرهارپر هـار لـرم په ګـردلـړلی تن
مینې ستا دلـبره په داشان کړم خوار خسـته
هـلومـې لـه بنـده یې ونه لـید بیا آزاد
هـرسړی چې شه دهـغو زلـفو پـا بسته
سترګـې مې د زړه په عـاشقي چې کړې پیدا
سـیرد درست جـهان کړم پخپل کورکې نشسته
نرم شه سنګد له ستا په عشق کې محبت
زړه لـري نازک خـبره کړه ورته پسته

"۱۷۵"

کـه هـوس دې د ګـلزار شـته
نـنداره کـړه مـخ دیار شـته
دردارزان دی کـه یـې اخـلـې
ددلـبروپـه بـازار شـته
رقیـب بـیل نه شـه لـه یـاره
لـه ګـلونوسـره خـارشـته
زلـفـې سـتا پـه څـهره ښـایي
چـرته ګـنج دی هلته مار شته
ته خپل جنس لـه عـیبه پاک کړه
چې دې پـاک کړخریدار شـته
سـتالـه درده څـه بیـان کـړم
نـه آرام نـه یـې قـرار شته
رنـځ دعـشق لـه ما سـره دی
څـوژونـدی یم دا آزار شـته
مـابـه ورسـئ[2] ویـار تـه
چـې مې زړه غوندې ریبار شته

---

(۱) ایسته

(۲) ورسوي

مـــهـــرو قـــهـــر نـــه بـــيـلـــيږي　　　تـــل لـــه لـــوره ســـره نارشته

ســــتا ســــتم زمـــاقبـــول دی　　　نـــازكـــوه چـــې نازبردار شته

پـــه خـــوب كـــله غـــافـــل كيږي　　　دهـــر چـــاچـــې زړه بيدار شته

دعـــشق درد چـــې لادوادی

محبـــت يې طلـــبگار شـــته

"۱۷٦"

شور دملاجت دې په عالم كې لور په لـــور شته

هـــر پلـــو چـــې اورمه خوستا د حسن شور شته

راشه اې شـــهسواره نن د حسن په ســـورو كې

خود ته نظروكړه چـــرته تا غوندې بل سور شته

يار چې مې كاوه طلب بيامونـد پـه زړه كې اوس زه

گـــرزم بيهوده څله مطلوب مې چې په كورشته

بيتابي دعشق دې اوس مې هم نه پريدی[1] څه كړم

وايي چـــې په زړه كې دې لاصبر پاتې نورشته

خـــدای له زړه مـــې نه وركئ[2] مـــينه دبتانو

هرچې خدای نه كاندې دبنده غريب څه زورشته

څـــه غـــم دپـــيغور ومـــلامت چـې زه عاشق يم

هـــرڅـــه مالره دې ملامـــت دې كه پيغور شته

څـــوورځـــې بقـــاده ددنيا څـــه پـــرې نازيږې

عين كه بهرام گورشي عاقبت دې تله په گورشته

مـــورو پلار د زوی غـــمخواران خووي دلـــداره

خدای ړومورو پلار دې هم كه ماغوندې غـــمخور شته

---

(۱) پريږدي

(۲) وركوي

ځــوان د محبت یم محــبت مــې مربي دی
بی له مــحبته نه مې پلار دی نه مې مورشته

"۱۷۷"

چې دادواړه لب شیرین درڅخه شته | هــم شکر هم انگبین درڅــخه شته
د مــهتاب وننــدارې ته څــله ځې | ترسپوږمی[1] ښکلی‌جبین درڅخه شته
صید به کړې په دواړو سترگـو زړه دخلق | چــې هم بازاوهـم شاهین درڅخه شته
مــښک دپاره څله چین لره ورځې | چــې گـیسوغیرت دچین درڅخه شته
مــسخر دي ســتا همه سرې پیرې | د سلــیمان گویا نگین درڅـخه شته
دعشق اوربه دمخلوق په زړه کا بل | هـــر یولــب چې آتشین درڅخه شته
کشکې وي درڅخه هـسې حسن خلق | لکه دا صــورت حسین در څخه شته
کړې به مــاته د هر چاد زړه ښیښه | دازړگـــی چې دې سنگین درڅخه شته

مــحبته څـه له غــوارې لعــل ودر
چې له اوښوډک استین در څخه شته

"۱۷۸"

ته طلب وفــاد یار کړه که شته شـــته کــه نشته نشته
ځان د مهرې طلبگار کړه که شته شته که نشته نشته
کــه هر څو ظلمونه کاندي مــعشوقه مدام در باندې
زړه درحم یې امید وارکړه که شته شته که نشته نشته
کــه هر څــو نه لرې زړه دلیــاقــت د سکونت یې
تــه مکان ولــه تیار کــړه که شــته شته که نشته نشته
که هــر څــودیدن یې نشته ولې هــم ته خپلې سترگې
مــنتظرې ددیدار کــړه کــه شته شته که نشته نشته

---

(۱) اصل : سپوگمی

کــه هر څــو موندل يې نــشه ميسر په تلاښو نو
ته طلــب يې په تلوار کړه که شته شته کــه نشته نشته

که هــرڅو مال وزر نشته لوی دولت خو استغنا دی
مستغنی شه ځان زردار کړه که شته شته که نشته نشته

که هــــر څوددنيا هست دي آخر نيست محبت خانه
ته پخوا ترې زړه ويزار کړه که شته شته که نشته نشته

"۱۷۹"

زيات تر عشقه يوهنر په جهان نشته    عــــاشقي نه هيڅ بهتر په جهان نشته
دلخسته پــه څېرمې نشته په عالم کې    لــکه تاغــوندې دلبر په جهان نشته
زړه لــه خلقونه دعشق په کوډويوسې    ستاپــه شان يوسحرګر په جهان نشته
په تلاښ کې دې صحراپه صـحراګرزم    هيڅوک ماغوندې بې سرپه جهان نشته
چـــې يارراشي يار کره زما په پوهه    دااختر دی بــل اختر پــه جهان نشته
شپه وورځ مــې رڼا ته وې اوس چې نه يې    زه ګنــم شمــس وقمر په جهان نشته
مـا ناصح غوبې له عشقه منع کاندي    بــيهوده دې هسې خر په جهان نشته
د فــرقت شپه نه کميږي نه پوهيږم    شپه اوږده شوه ياســحرپه جهان نشته

دګــمان لښــکرې ماتې په يقين کا
مــحبت غوندې صفدر جهان نشته

"۱۸۰"

که شـــيرين دی ستا کلام دې نورڅــه نشته
خــوږتر قــنده ستا دشنام دی نورڅـــه نشته

نــه ســپوږمى نه يې ږنـا ده په جهان کې

مــخ ديــار مــاه تمــام دى نــورڅـه نشته

په دنــيا کې ځاى دامن که څوک غواړي

کور ديار دارالـــسلام دى نــور څـه نشته

نه امام نه څـوک پيشوادى هر څه يار دى

که پيــشوادى که امــام دى نورڅـه نشته

داد نــمــر تجــلي نه ده پــه عــالم کې

نــورد يار پــه هــرمــقام دى نورڅـه نشته

چــې مې ولــيد ددنيــا پــه خمخانه کې

لب ديــار دمــيو جــام دى نــورڅـه نشته

مخ يې ورځ دى زلف يې شپه زما په پوهه

داســحر دى دغــه شام دى نورڅــه نشته

اې کــافر ومــسلمانــو باور کــانــئ

زلــف ومــخ کفرو اسلام دى نورڅه نشته

تــه مولى د مــحبت يــې نورڅــه نه يې

مــحبت هــم ستا غلام دى نورڅه نشته

"۱۸۱"

کــه محــفوظ دبيــلتانه شــم لـه آفــته

تورمـــې هــيڅ خطره نــشته لـه قيامته

که په درکې دې دناستې ځاى مـې بيامومند

دشــاهي مــسند بــه ووهــم پــه لته

ستادوستي غوارم هردم چې ته مې دوست یې
څـــه پـــرواده ددښمـــن لـــه خصومـــته
شپه وورځ ښادي خوښی مې ده پـه کور کې
دشراب او دســـــاقـــي لـــه بـــرکـــته
لـــیونی شـــوم پـــه خود نه یم چـــې ویریږم
هـــر زمـــان دعـــشق دتـبې لـــه شدته
لـــکه تـــوره شي ســـپوږمی دنـــمر له نوره
هسې زیـــړشي نمـر دمخ دې له طلعته
دتیـــغ نشـــته هیـــڅ حاجـــت قـــاتله راشه
ســـرمـــې پریـــکړه دابـــرولـــه اشارته
کـــه راحت غـــواړې له غـــمه دیار غـــواړه
غـــم دیار کـــله خـــالـــي وي له راحته
له قسمته چې دې نوم محبت خان شه
مـــــحبت دی په حـــصه دې محبته

"۱۸۲"

ځـــای یې مزکه دی ورځـــي به ګـــورستان ته
که [۱] مـــرغه شي سرې والوزي آســـمان ته
دعـــاشـــق خبـــرې کـــله زاهـــد نـــغوږي
ددانـــا نصـــیحت بـــدلـــګی نـــادان تـــه
هـــیڅ توبنـــــه دې پیدا نه کړه څـه به یوسې
چـــې لـــــه دې جـــهانه ځـــې هغه جهان ته

---

(۱) اصل :کو، په ځینو هجو کې (که)
(کو) تلفظوي. ما خپله اوریدلي دي.

که هر څو دې اختیار په ګناه نشته

له ادبه ته یې حمل کړه وځان ته

ته د زړه په اخیستو خودزوره وریې

پرزول وښیي څوک څه پهلوان ته

په سروشوندو خپلو دا رنګه مغرور یې

چې په سترګو هډونه ګورې وپان ته

حسن ستا دی، لکه نمر څه یې تعریف کړم

خود عیان دی څه حاجت لري بیان ته

چې دې سرې شونډې تر لعلونه بهتر دي

په تلاښ یې څله درومم بدخشان ته

هرهنر دمحبت ورته معلوم دی

مینه څوک وښیي څه محبت خان ته

"۱۸۳"

درسته شپه نیولې سترګې یار مه جبین ته

هریو ستوری ګوري له آسمانه وزمین ته

زړه مې کا طلب حمله دعشق له خپله شوقه

ناسته ده کوتره منتظره وشاهین ته

بې خبره راغی که له رنځه مې خبر شې

بیا به هډو رانشي طبیب مې وبالین ته

وزه له ګردا به دیقین ملاح پیداکړه

ډوب شوې په دریاب دګمان لاړې تهترین ته

لب شــکره بویه بـې لــه شهده یې دشونډو

نه غـــوارم شکرې نه مــې شوق دی انګبین ته

زورلري داهومره دی په کوم قـوت حیران یم

عـــین که رسـتم راشي نه ټینګیږي نازنین ته

غواړې که دیداري (۱) پــیداکړه سترګې یکبینې

شایې ده دوه بـین پـلوته مخ یې دی یکبـین ته

ستادخوږې خولې که وي فرهاد مزه څـکلې

بـــیایې تـــمنا هـــډو نـــه وه وشـــیریـــن ته

شـــعر دې قابل دی دتـــحسین محبت خانه

ژ بې دمـخلوق جاري دي ستا و آفرین ته

"۱۸۴"

خوب مې لید بیګاه چې سره ملاست یوزه اوته

کله پـــه کنټ څـملو کله ناسـت یوزه اوته

تـــه طالـــب د زړه مـــې زه طالب دې دوفا

هـــردم یولـــه بـــله پدا خواست یوزه اوته

خـــاند وهـوســـیږو کړوخبرې دوه پـــه دوه

ناست یو خوښ بیغمه له برخاست یوزه اوته

کـــوږ نه ته لـــه مـــا نه زه لـــه تاګـــله ګذار

دورلـــه کجـــې دواړه سره راست یوزه اوته

زه مـــین په مـــخ دې ته زما پـــه محبت

یوپه بـــل مین بې کم وکاست یوزه اوته

-----------

(۱) دیدارې

"۱۸۵"

چې په ســـرخـوک پورته نه کا دعشق ښـته

خـــدای دې سرد هـغه پرې کاندې له ښته

غــم په هــر بــازار مــې ولـتا وه بــارې

دامـــې بیامـــونده ســودا دعـــشق له هـته

پــه ایرومې ښخو ښپه[1] په هــوښیاري ږده

اورپـــه زړه مـــې دی باقـــې لــکه سکروټه

چـــې غبار مې له کوڅـــــې دې باد یونسي

مــاپــه اوښــو کــړه داخپـله خاوره خـــته

پــه کټ کیناستم[2] دمــار لــه ویرې دریغه

مــار دزلــفو ونغــړدم ســره لـــه کــته

زیــړه ګـــونه اوښې سرې ظــاهرې کاندې

پــه هــیڅ رنګـه مـینه پاتــې نه شــې پټه

پــه قــوت بــه خلاص ترې نشې که رستمه

پــهلوان دعـــشق دې ونـــسي تـــر مـــته

درولعـــل دخـــپلو اوښـــومـــې حاصل کړه

مـــاهــم ســتا په غـــم کې ډیره وکړه ګـــته

مـــحبت مې وازمیـــیه په محبت کې

محـــبت په محبت کـــې دی بې وټه

---

(۱) پښه

(۲) کښیناستم

"۱۸٦"

اصل يې يودى كـــته ګوته ده كـــه كچه

خاوره وي يـــوه لـــونـــده وي اوكه وچـه

مـــشابه دصـــورت يوكـــه په سيرت وى

هـــيڅ بيلتـــون به دباز نه وه لـــــه زمـــچه

كـــه له شـــهده ســـره زهـــر بـرابـر وي

دمـــچۍ فـــرق به هيـــڅ نه وه لـــه مـچه

داتور خـــال دې خوزما دستركو تور دى

كـــنه ګـــلـټـــه بـــه وى دګـــلـټې پـــچـه

مـــزه دار كـــلام په سوز دمحـــبت شي

دطـــعام شـــي خـــوند سوا لكه له مرچه

"۱۸۷"

ساقي ښادكړه زړه غمجن زمـاله راحه پـــرانزه جندره دغم مې له مفتاحه

دشـــراب لــــه كيـــفيته خبر مـــشه هسې نه چې شي مينوش اهل صلاحه

مـــى داروې درنځور دعشق زاهـــده چـــې رنځـــوريم په ماده باده مباحه

ناســـته وي راته ګـــلرويه سنبل مـويه ورتـــه ګـــورم له صـــباح ترزواحه

كه فلاح غواړې پياله دمـــينې نوش كړه ډكـــه وي پـــياله دمينى له فلاحه

كه پـــه عـــقد دې ددنيا آر تينه راشي طـــلاق وركړه ويې بـاســه له نكاحه

زه لاهوشوم پـه درياب داند ينبـــنوكې ومـــې باسه راشه زر دعـــشق ملاحه

بـــې له تورې فـــتح كـــيږي حيران يم خوبان وګتي جنګ څنګه بې سلاحه

اوس چې در د ښادي بند په محبت شه
فــتح البـــاب يې په کرم کړه يا فتاحه

"۱۸۸"

ســاقي ډکــه کړه دمـی پياله فــراخه
نوبــهار دی گل جــلوه کـــاندي له شاخه
دلـــيري ته يې چې گـــورم حق حيران شم
آئينه چــې ښـــتا په مـخ راشي گـــستاخه
بـــيـــستون داعـــمارت دخطر ځـــای دی
که هوښياريې ځای کړه بيرته له دې کاخه
درقيب مـــوزي په گور چې ښـپه کېنږدې [۱]
مــې بايد حـــذر دمار کــړې له سوراخه
مـــحبت لري زړه وريت دعشق له اوره
پوخ کـــباب وي چـــاڅخه بې له طباخه

"۱۸۹"

ددې ســـترگـوله طـــوفانه وايم څه
لـــه دې بـــحر بې پـــايانه وايم څه
خدای دې چاته درد ورنه کاد هجران
ومـــرم ومـــرم لـه هجرانه وايم څه
عاشقي اوتوان وي چرته په يو ځای
زه چـې يم عاشق لـه توانه وايم څه
زه يم څوک چې ته له ځانه مې پوښتې
ځـــان مې ته يې زه له ځانه وايم څه
لـــه جهانه زه جدايم ستا په عـــشق
چــې جـدايم لــه جـــهانه وايم څــه .
دعنقاپه شان يې نه نوم شته نه نشان
لـــه دې هـــسې بې نشانه وايم څه
دبـــې مثل څوک څه وکاندي بيان
چـــې فـــارغ دی له بيانه وايم څه

---

(۱) پښه کېښږدې

زه مـومن یم ته کافـر دزړه په وړه		وکـافـر تـه لـه ایمـانه وایم څـه
زه فـقیر یې دکوځي یم دی سلطان		چـې فـقیر یم لـه سلطانه وایم څه
عـمر تیرمـې کړ تمام په خارستان		بـې خبـر لـه گـلستانه وایم څـه
دی ظاهر په محبت کـې ستا احوال
زه دې حال مـحبت خـانه وایم څـه

"۱۹۰"

چې بقا دهـوس نشته خندیدل څـه		لکه گل په بـاغ ددهر غوړیدل څه
معشوقې څله وحشت کالـه عاشقو		دمیـنو له مینـو تر هـیدل څـه
غوږدچاپه ویل نږدم چې په عـشق کې		نصـحیت دناصـحانو اور یدل څـه
که مذکورکوې کوه دعشق له دینه		ددنیا پـه قیل وقـال کې وییدل څه
ځوعروج دې په کرسی دعشق ونشي		په لـویي ترعرشه پورې رسیدل څه
که دین دارځان بولې اې ددنیا سپیه		په دنیا داهومـره بیا مشغول کیدل څه
داوبوخصـلت پیدا مه کړه که مردیې		په کمـزوري ځای نامـرده مـاتیدل څه
بـواهوسه که دعوایې کړې دمینی		بیاجفا یې پـخپل ځان نه سهیدل څه
پـه جـمال دشـمع رویو مـحبته
که پتنـگ یې له آتشـه ویریدل څه

"۱۹۱"

ولـې مالرې مـدام غمجن په څـه		ددوستانو هسې شوې دښمن په څه
هـیڅ په شپه له ما ونشوه گستاخي		ته ومـاوته گـوابنـیزې نن په څه
پـه تیاره دخط دې خال کا رهزني		دلاور دې هومره[1] کړرهزن په څه
که بنده یې هـرخدمت یې کړه له زړه		گوری شي راضي له تاځښتن په څه

---

(۱) اصل: همره

که دیدار لره یې جـوړ نشوچشمان    خدای دادوه چـراغـه کړه روښانـه

ګـل دمـخ یې عندلیب که نه کایاد    پـه فـریادکړي ډک تمام ګلشنانه

که دې مخ نه دی پټ کړی په بـرقع    پـه ناروسـورو دی مـردو زن پـه څه

چې بیلتون کاندي ولاړ وینې په سر    ترونـــن نه راکوې خپل دیدن پـه څه

نـــه نرمـیږي هلووړته په هیڅ شان

مـــحبت ته زړه دې کړ آهن په څه

"۱۹۲"

کـــه دې مهردی رابـاندې کـــه جفاده

زه راضـــي یم پـه هغه چـــې ستارضـــاده

زه عـــاشق یم که وفانه کړم نورڅه کړم

تـــه که څـخوهم وفـــاکړې ښیوه ستا ده

خـــالی نه وي یوساعت لـــه درد وغمه

نـــه پوهـــیږم چې په زړه مې څـه بلا ده

ســتا رضابویه زه څه یم څه مې ځان دی

ځـــان درځـــار به کړم که ستا رضـاپدا ده

زن ومـــرد دې له ستـــمه په فـریاد دي

ســـتاله لاســـه پـه هر کور کې واویلا ده

هـــرقدر چـنې مـــې وتاتـــه احتیاج دی

هـــم داهـــومره ســـتاله مـانه اســـتغنا ده

پـــه بل حرف ناوړي نـــا چـاریم معلمه

زمـــا ژبه یوپـــه لـــفظ دعـــشق ګویا ده

که هرڅو غریب شي ځان رحمناک جوړکړي

خـــونريزي خـــودې له ستر ګوهو يدا ده

پـه ياري کـــې شي اغياره له شـــوخۍ نه

هـــغه شـــوخه چې لـــه مـاســـره آشنا ده

زه بـــاردار د امـــانـــت يم لـــه ازلـــه

مـادعـــشق بـــيړه اخيســـتې لا پـــخوا ده

ګـدايي دې د کوڅې چې مـې روزي شوه

بـــادشاهـــي، لـــکه زمـــا هـــسې دچاده

چې مي نوم محبت خان له خدايه بيامونـد

لـــه الـــسته مـــحبت بخـــره زمـــاده

"۱۹۳"

بـــيوفا سره وفا څـــه په کار نه ده دمـکار دزړه رضا څـه په کار نه ده

بې له عشقه چې ژړاېکې پـه کار ده په بـــل غـــم آلم ژړاڅـه په کار نه ده

غـــم دهجرور ســـره دی لـــګيدلی پـه وصـال کې هـم خنداڅه په کارنه ده

ددنـــيا سودامـــې وليده بـې سوده چې بې سوده شوه سودا څه په کارنه ده

پروانه شه بې فرياد سوزه په اورکې دبلبل پـــه رنګ غوغا څه په کارنه ده

پـــدا حرف دوحدتي کثرتي ناوري چـې خبره يې رښـــتيا څه په کارنه ده

که دنيا غوارم خوستا دپاره غـوارم بي لـــه تا زما دنيا، څه په کار نه ده

وهغه ته چي يې ته درنځ طـبيب يې آشناي دمـــسيحا څـــه پـه کار نه ده

محبته رنځ دعـــشق هغه راحت دی

که دا درد لري دواڅه په کار نه ده

"۱۹۴"

لــکه چل ددلبــري هــمه تاز ده — هــسې کار ددلــدهـي واړه مازده

څـه تعليم آشنا تــه کړم دآشنا يې — هرڅې فــن داشنايي دی د آشنا زده

پــه درست عمر خبرنشوې له وفــا — جــفا کاره خــويوه دې جـفا زده

زه دتــوروزلفــو مــار خــوړلی يم — دم دې کاافــسون راباندې که چازده

لــه عاشــقه زده کړه علم د باطن — داعــلمونه چــرته شيخ ومــلازده

سحرافسون جادوکوي دزړه په وړه — دواړو سترګو ديار څـه څـه بلا زده

خپل اوقات په زلف ورخ دې تيروم — مــاخوهــم دغـه بيګــا وسبا زده

زما عــشق هم هسې زده عجزونياز — لــکه ستا ښـايست چې نازو ادازده

هــيڅ هــنر له مــحبته مــه پو ښتئ

يوله عشقه ترې پــوښتئ چې يې دازده

"۱۹۵"

چــې مې مينه په ازل کې وه نامــزده — مــحبت نوم مې جــاري شه ترابده

کــه نيکي کړې دبــدی په بــدله کې — وابه وري په ځان تحسين له نيک وبده

هردښمن چې پــه جــهان دی ستا به دوست شي — که حال وبــاسي له حرصه له حسده

که والد دې خپل له ځانه ناراضي کړ — ته هــم هــيڅ مه لــره طمع له ولده

دوبيني دې په خاطر کې څــوپــرته ده — ترهــغه پــورې جــدايي لــه احده

ته په زيست به مــخ ونه ښــيې بې رحمه — ددیدن حــسرت بـه يوسم تر احده

که طايردعرش په بندکا څه عــجب دی — لاس درازچې ستاد زلفوشه بې حده

له بند ګي نه دخپل يارچې مــخ جارباسي — مخ به خدای ته په کوم روی ښيې مرتده

خودګلزار يې ته دباغ څــه ننداره کړې — لالــه رويــه ســمن بويه سروقده

محبته پیغمبر چې دې کریم دی
هر چې غواړې طلب کړه له محمده

"۱۹۶"

مایوه مسله یورروایت نه زده
بې دعشق له حرفه بل حکایت نه زده

که کرم کړې که ستم وکړې راباندې
په هر څه شاکر یم ما شکایت نه زده

چې اول آخرې یو ګنم همدمه
مادمینې بدایت نهایت نه زده

زاهد هېوبه په لار دعشق رانه شي
چې دی پروت په ضلالت هدایت نه زده

زرښندم ترسره پورې په خوبانو
پدا کار مصرف یم ما کفایت نه زده

چې زړه سپین لرم کوم خبرې سپینې
کنه ماڅه اشارت کنایت نه زده

که مې یاروژني حامی د زړه به نشم
پدې هسې ځای کې ماحمایت نه زده

ډک دې تول له عشقه وي لولم واوره
دقرآن شریف کوم یومې آیت نه زده

په بخشش غواړي طاعت له محبته
بهانې کوي څه تا عنایت نه زده

"۱۹۷"

چــــې نجسه ده دنیا خوړ نجس ده　دامــرداره په حصه کې د کرګس ده

پــروانه دعشق په اورشه هسې مـشه　لــــکه مینه په خوږو چې دمګس ده

سرپه دارچې دمنصورپه مـثال کېدې[1]　په عــشاق کې سرداري دهغه کس ده

لکه شمع نورافشان شه هــره خواته　چې رڼا لکه وړاندې　هسې پس ده

بې له عشقه چې له عـقله خطرنه کا　ویــره ډیره وهـر غل ته دعسس ده

په خپل بند مې دجهان له غـمه خلاص کړه　آزادي چـــې ده زماستا په قفس ده

بورانه یم چې هرګـل وته هوس کړم　وعــاشق ته خو یوه معشوقه بس ده

څو به پایم چې می یارآتش مـزاج دی　دالــه اوره ســره آشنایي دخس ده

مـــحبته مـــحبت ګـــوری پــرینږ دې

که هر څو طعنه وربانډې داولس [2] ده

"۱۹۸"

دهــیچا دنیا له ســره آشــنا نه ده　داکاسـیره پـه نکاح دهــیچا نه ده

ستا د مــینې په بلازړه مـبتلا کړم　دابــلا په مــالــه مــاده له تانه ده

بهانه غـــوارم ماسرصــدقه ستا کړ　هـیڅ له تانه مــې دعوي دبها نه ده

کــه ولې دزمانې په عشق ونه مري　فـــاتحه دعــاورپــسې روانــه ده

خوچې خوله په خوله مې کیدې[3] ماژوندی کړې　شونډه څه ده ستا که عـین مسیحا نه ده

مــاپه دوه جهانه غوره معشوقه کړه　هیڅ زما په دانایــي کې خطا نه ده

جفا کارې په طینت کې دې جفاده　بــیوفایې په خـــلقت دې وفـا نه ده

ددنــیا په بنــیوه هیچرې مه غولیږه　دابنــیوه یې خوهم نن ده سبا نه ده

دفــرصت ګـــړې ده می سکه[4] محبته

سبا خدای زده چـــې دچاده دچا نه ده

---

(۱) کېښبږدي

(۲) ولس

(۳) کېښبږدي

(۴) چښه

"۱۹۹"

کــه دې سترګــه مـقیده درنګ نده مــخامــخه ده بـېرنګه په ښنګ نده
زړه مـــې صاف دتعلق دی لـه غـباره مکدره آئیـــنه مـــې پـــه زنـــګ نده
خودپه چــاه دزنخدان دې ځـان پرېباسم خطره پــه زړه مي هيڅ دګړنګ نده
ولې ســر په صحرا ګرزم آهـو چشمه مـصله مـــې که تاپـــسې لـــنګ نده
چې له شوقه ژوندی ځـــان سیزي په اورکې کـــمه مـــینه دســـتی ترپتنـــګ نده
زیات ترمانه به په عشق کې څوک رسواوي چـې مې هیڅ پروا دنام و دننګ نده
دکوم دوست آواز ترې خیژي نه پوهیږم دا نـــغمه دلکشه صرفه دچنګ نده
مـــړني خــوتل له لاســه دنامردمري فـتح هيڅ په مړنتوب وپه جنګ نده
تـــا خير مه کوه په چـــار دمحبت کې
دعـشق چار دې شتابي ده ددرنګ نده

"۲۰۰"

کـــه نابود شي یوزمـــان له خپله بـوده شې خبر بـــه لـــه وجــوده له موجوده
عشق یقین دی که ګمان دی زړه راوړی نور د عـــشق له دینه ووتي مرد وده
مـــسلمان په کـــلمه به هـــلوونه شي خود بيني که دې پـــه زړه کې ده جـــهوده
نـــه له نـــفیه بي آګاه نه لــــه اثبــاته تش پـه خـــولـــه دې لاآله الا هوده
هـمیشه به په زندان دوهـم پروت يې څـــوونه وزې اطـــلاق ته لـــه قیود ه
پـــه طاعت در یا څه قربت دې بیاموند لا بـــعید په عـــبادت شوې له معبوده
چي نقصان وي پـکې تل هغه سودا کړې هـــيڅ خبرنه يې لـــه سوده له بهبوده
خان په عشق سیزه جهان به معطر کړې بې لـــه اوره خوشبويي نه ځي له عوده

محبته دیقین ملاح پیدا کړه
که بیړۍ دې په دریاب دشک لاهوده

"۲۰۱"

مبرامې له هوسه آشنا یې ده زما مینه هوایي نده ځایي ده
دبتانووکوڅې ته پدادرومم نندارہ مې هلته کړې ذخدایي ده
سل شمشاد صنوبر ستاتر قده ځارشه څه عجبه دقامت دې زیبا یې ده
دسکندر دآئینې ده حیرت بخشه ستادمخ دآئینې چې صفا یې ده
ډیرتیرشوي خودرایان دي په جهان کې ولې ختمه په خودرای مې خودرایي ده
جام په لاس ساقي راځي زاهده وارکړه خودبه شي معلومه ستا چې پارسایي ده
لکه شمع دخوبانو ته رڼا یې تاپه سرایښې طره در عنایي ده
بادشاهي به نور تردې نه سواځه وي چې په درکې دروزي مې ګدایي ده
یارمې یارشه در قیب حجامت کیږي اوس که خدای کارېره کله دنایي ده
زړه دې خپل دیونادان په لاس کې ورکړ
محبته ستا عجبه دانایي ده

"۲۰۲"

دواړه شونډې چې خوږې لرې ترکنډه
د تلخ کامو فرقه څکه وی پرې پنډه
دهوسۍ په شان ترستر ګومې تیریږي
هوسۍ چانیولې ده په دوپه منډه
له نظره له ګذره خطر نه کړې
چې روانه یې پلارې مخ بربنډه

داصـــحاب داهـــل بیت دښمن په خدای ړو

چې مې چرته ولـید بیا موند سست په لنډه

یـــومیړه پـــریدي [(۱)] کـــکړه بـــل مـــیړه کا

دادنـــیا هـــیچرې پا تـــې نـــشوه کونډه

کـــه وخـــوار ګـــیدړوتـــه لـکه مـزری یې

ومـــــزري ته خـــوګـیدړه یـــې سورلنډه

چې ماه روی مې نه وي مـاه پـه حسن ناز کا

بـــل شـــجر چـــې نه وي ونه شي ارهنډه

لـــه رقـــیبه په ښـیګړې څـه حاصـل کړې

مـــیوه چـاحاصـــله کـــړې ده لـــه څنډه

مـــحـــبته ددنـــیالـــه باغـــه وزه[(۱)]

ګل کم قدر دلته وي ترخارو خنډه

"۲۰۳"

هـــرپلوته کړم چې نظـــر ســـتا کړم نظـاره

وړاندې ورو ســـتو[(۲)]خواوشاهـم ته شي راښکاره

نه وي ښاپیرک غوندې که ضعف یې په بصر

ســـتا به آفتاب رویـــه هغـــه وکـــانـــنداره

ســـترګـــې لرې برندې زړه بیرحم څکه زه

ســـترګـــې خـــونفـــشانې زړه لرم پاره پاره

سیند دغم په جوش دی زه ساکن یې دساحل

ونـــه یـــې بـــقاوي ددریـــاب پـــه کـــناره

-------------

(۱) اصل: اوزه

(۲) اصل : ورستو

کښېنا سته پښتوامې شهار اغله په پالنګ

اوس زمور په مېنځ ریبارې ته یې چکاره

روغ کا بیدرمانه یا یې ووژني په درد

هر چې خداوند کا بنده څه لري چاره

کوم رعناغزال له مانه لاړ چې ورپسې

غره په غره ځنګل په ځنګل ګرزم آواره

شي لذت حاصل راته دقند مکرر

واورم چې کلام دشکر لبو دوباره

خلاص به کمیني مې کاله ورځې دحساب

څوک به مې پوښتي هلته دچایم په شماره

شکر دی په کورمې هغه ماه شه جلوه ګر

نن مې محبته شوه طالعه ستاره

"۲۰۴"

| | |
|---|---|
| په وفایې وستا یله ما بسیاره | چې ستي په مخ مې راغله له بازاره |
| صدرحمت یې په وفاشه حق هم دادی | چې په مرګ هم جدانشي یارله یاره |
| امتیاز دخپل پردي خوپه وفادی | نور دیار هیڅ فرق نشته له اغیاره |
| وفاکالوړې ژورې یې یکسانې | دعشق لارشي په وفا سره همواره |
| دعشق کارپه هوس هیچانه دی کړی | سرانجام یې نه شي بې له وفاداره |
| په درباریې وي ټولې دوفادارو | بیوفا سړی محروم دی له دربار |
| که عاشق یې په چراغ لکه پتنګ شه | چې یې نورشمیري حذر نه کاله ناره |
| ځان ساته ترې که له اوره یې ویریږې | عشق له سره ترښیو(۱) ډک دی له شراره |

---

(۱) پښو

که پــه کار دعشق کې پوخ یې مشغول اوسه   اوکه خام یې لاس کړه پورته له دې کاره
که په ځان مین یې عشق نه په ښنګ ګرزه   عشق هغه کا چې له ځانه شي ویزاره
جذب حاصل کړه دادعشق هسې سودادهٔ   چــې هیچرې شوې نه ده له هوښیاره

څه حاجت دی دریبار په محبت کې
دمـــین مـــین تـــه مـــینه شي ریباره

"۲۰۵"

ســـرتر ښـــپو[۱] ده ښـــایســـته هـــغه دلبره
کـــیده[۲] غورځـــوبي یې واوره ســـرتر سره
دویښـــتویې دسـرخـــه درته تعـــریف کړم
چـــې لـــه مـــښکه خوبـــي وړي هم له عنبره
وجـــبین تـــه یـــې قـــمر نـــه شـــم ویلـــی
چـــې بهـــتر دی پـــه ښـــایست کې تر قمره
دآســـمان لیـــنده چـــې داقـــوس قـــزح ده
هـــلالي وروځـــونـــه یـــې نـــه ده بهـــتره
دبـــڼو یـــې لـــه احـــواله څـــه بـــه وایم
چـــې دســـته یـــې ده دغـــشو خود چاکره
کـــیفیت یې څـــه پوښتې ددواړو ســـترګـــو
یـــوه جـــــام دمـــیو بـــله ســـحر ګـــره
• د الله الـــف ده پـــوزه یـــې بـــې مـــثله
یـــاداګـــوتـــه دوحـــدت ده زیـــبا وره
دوه تـُــکرې دصـــدف غـــورږوته یې وایم
ولـــې نه رســـي صـــدف ورتـــه لـــه سـره

---------

(۱) پېښو
(۲) کېښېږده

لــه رخساره يې ګــريوان دی دګل څيرې

هــم تــرې داغ پــه زړه لــري لاله احمره

چــشمه څه ده چې له خوله يې شي هم چشمه

دحــيات تــراوبه خــولــه يــې ده بــهتره

چــې يې شونډې دي خوږې په شيريني کې

بــازې وړي لــه انــګــبينه لــه شــکره

دوديرش غاښ يې لکه دردي په خوله ايښي

چې وړي آب په ښايست توب کې له ګوهره

کــوهــي نه رســي دزنــې يې وچــاه ته

چــاه زنــخ يــې هــمسري کالــه کوثر ه

غــوره وي دجــنت سيب ولې حق دادی

دغــبغب ســيب يې بــسيار دی ورنه غوره

دڅــهرې يې که ونورته نظــرو کــړې

پــه انــوار کــې ډيره زياتــه ده تر نمره

څټ اوغــاړه يې په هــسې شان زينت کا

لــکــه وي صــراحــي داره مــرغــلره

دواړه لاســوته يې شاخ دګــل څــه وايم

چــې ده څــانګــه دګــل ډيره ترې کــمتره

پــه ښــايست هــره پــنجه يې دلاســونو

دمــرجــان ده لــه پــنجې نه بــرابــره

هـره ګـوته يې چـې سره ده پـه نکريزو
دعــاشق پــه قـتلول خوځــي اكثره

دســينې وصــفايي تــه چــې يې ګــورم
د اوبــو تــخته راځــي مــې تر نــظره

دواړه تي يې ښـايسته پـه ســينه باندې
دوه حـباب دي نـظر کړه اهـل بـصره

څه اوصاف دښکلې ګيډې يې بـيان کړم
صـافه نــرمه لــه ريښم ســره هـمسره

په درياب کې دښايست نـوم يې ګرداب دی
وبــه نــه وزې تـرې هـلـو شـناوره

نورمـې مـه پوښـته دسـتريې لـه حالـه
حــيانــاک کــله دســترکــه خــبره

صــفايــي يې پــداشــان دزنګــنو نو
لــکه صـافــه آئيــنه وي مــنوره

دوه پــنډۍ يې لــکه شمـع دکــافورو
دواړه سـپينې دي هــم صافـې ترمـرمره

دواړه ښپې [1]يی دهرچـا چې پــه سرکيدي[2]
هـغه سـر بــه خــالي نشي لــه افسره

فــندقې يې دښــپو [3]ګــوتې پــه نکريزو
هــره ګــوتــه تر فــندقــه يې خوشتره

هــرتلی يې ترمــالوچــو نــرم لازيــات
هــره پــونده تــر مــخملو نــازک تره

-----------

(۱) پښې

(۲) کښېږدي

(۳) پښو

صنوبرې [1] همسري نه کاله قده

زيبآوردی قدبي زيات ترصنوبره

چې په لارې يون کاشي سروروانه

وي په خای ولاړه به تر نښتره

آفرين په سروپای د محبت شه

مزينه په ښه شان شوله دلبره

"۲۰۶"

ته خوهم په مينه چرې چرې ګوره

وعاشق ته اې زما دستر ګو توره

چې دې وړيستم له کوره خپل تر دره

بس کړه غل شرلی بويه نه تر کوره

په لحدمې مه راځه چې غيرهمراه وي

خود پوهيږې ولاړيږي ننګ له ګوره

په خوبانو کې دحسن پهلوان يې

ولې ته نه يې خبرله خپله زوره

په هغې روځې به هم زه تا پرينږدم

چې پلاروتښتي له زويه رورله روره [2]

شپه وورځ چې دې له درده په فرياد يم

ګاونډ يان شوواړه تنګ زماله شوره

په لنبو دعشق که وسيزې ته ځان خپل

له دوزخه به شې خلاص هم يې له اوره

------------

(۱) صنوبرې

(۲) وروره

چې له غمه دجهان زړګی خالي کړم

ساقي ډکه کړه پياله دميو نوره

دهوس له عشقه فرق دی آګاه شه

که هوس وي محبته ځان ترې ژغوره

"۲۰۷"

زه غيرت دحورو غواړم هغه حوره

هميشه چې د نظر مې ده منظوره

حوره شي هسې بدشکله يې دوړاندې

لکه شي سپوږمۍ دنمر په مخ بې نوره

اې چې وايي عاشقان بې هنران وي

زيات تر عشقه هنر څه دی بې شعوره

له عاشقه صبر څه غواړې نادانه

دافرقه ده له ازله ناصبوره

په هجران کې دې په ماڅه تيريږي

رحم وکړه غافل مشه له مهجوره

الستي مست يم شراب که سکم[1] معذوريم

خدای ګناه دی پورته کړی له معذوره

زه ديدار ديار طلب کوم زاهده

ته حور غواړې دخپل عقل له قصوره

که مخ نه ښيې وچاته درته ښايي

معشوقه بويه هغه چې وي مستوره

---------

(۱) چښم

گلستان دې گلرخسار دی محبت دی

ساقي زر پياله دميوکړه معموره

"۲۰۸"

هيڅوک کارکولي نه شي له تدبيره
داکول نه کول ستا کاردی تقديره

نن نظر په ساده رويوکه ونه کړې
له افسوسه به سبا وکاږې ريره

دمقصود منزل ته وبه نه رسيږې
زړه څوپيردطريقت نه کړې بې پيره

آزادي څه لره غواړم ستاله زلفو
چې ممکن نه ده خلاصي له دې زنځيره

يادمې نه کاهغه يارهيڅرې حيف دی
چې مې نه هيريږي هډوله ضميره

لکه ستوري نورخوبان په حسن نازکا
راښکاره کړه څخومخ بدر منيره

نمرهرڅوکه نظيرنه لري په حسن کې
ولي ستا خو نظير نه دی بې نظيره

ځگرهم خون شه دزړه مې له صحبته
صحبت هډو خالي نه وي له تاثيره

که ديارپه درمقيم يې تخت نشين شوې
ترشاهانو شوکت زيات لرې فقيره

تعجيل کار دشياطين دی محبته

ولې کار دعشق ورانيږي له تاخيره

"۲۰۹"

کله په غضب ماره هلاک کړي په خواره

کله په کرم چې راشي وربي کړي ماره

کله ورخ کړي لويه کله شپه په زن ومرد

راولي په دوی کله غارمه کله ساره

نفس اماره وژنه په تيغ در ياضت

داغليم به مړنه کړې په توره په چاره

یـــار بوس وکنار چې شي له غیره څه پـه کار

څـــوک یې استعمال کاچې سپي لوښی ولاړه

پـــوه شه لـــکه شـــمع پـــه خـــنداوپـــه ژړا

خاندي هم هغه به چې خپل ځان یې وژاړه

چـــاوهلـــي نه دی نه تـــــړلی دی قـــلاش

داخودنـــیا داردی چـــې واهـه شي یا تا ړه

پـــوه په محـــویت شـــه دهلکو پـــه چراغ

نـــورقدیمي ویـــني څـو طفلان وي لاواړه

ګوری چې غالب نه کړې په ځان نفس وشیطان

مـــرګ دهغه خوارشي چې لیوګانو وداړه

پروت په دروازه کې یې داخواروه لکه سپی

زارد مـــحبت چـــې یې لـــه دره وشـــاړه

"۲۱۰"

په هـــای های ژاړم مـــدام پـــه غـــم دزړه

ورځ په ورځ چـې حال بـدحال وینم دزړه

هـــډونه خـــوځي له ځـــایه ستا پـــه عشق

لـکه غر هـــسې دي ښـځي [۱] محکم دزړه

چـــې په ســـرې [۲]قدم ږدي لـــه مهره یار

پـــــاس پـــه عـــرش لـــګي زما قدم دزړه

ســـــتا په غم کې دزړه حال وایم که خپل

هـــم زمـــا احـــوال تبـــاه دی هـــم دزړه

---------

(۱)ښنې

(۲) سرېږي

بــې لــه تاکــه مسيحا يــې کــادارو

لازيــاتيږي نه شــي درد مې کــم دزړه

پــه خليــل که جوړه شــوې ده کعبه

پــــه خـــدای شـــوی دی آباد حرم دزړه

طــبيب څــه کــازه لــرم په زړه پرهار

هـــېو کــړی نــه دی چــامــرهم دزړه

اوس کـــه خدای کاندي کوم يې مسخر

خښ[1] مې کړپه ملک دعشق عَلَم دزړه

يــوزمــان يوســاعت نــشي ترې جـدا

مــحبت مــې دی هــر آن همدم دزړه

"٢١١"

غمزده چې په سينه کې وينم تل زړه | په خاطــرراشي چې وباسم ترې خپل زړه

چې يوزړه وه ماترتا هــغه قربان کړ | په بل مينه هله کړم چې راوړم بل زړه

نصــيحت يي زه خوډير کوم ناصحه | ولې څه کړم چې زما کانه ويل زړه

که راحت نه وي په جــورددلآ زارو | ســتمونه بــه يې ولــې ســهيدل زړه

که هرڅو کنځل ترخه لګي هر چاته | ولي خوږشي ددلــبر وپه کنځل زړه

چې داهسې اوس له غمه يې فريادکا | تروپــخوا ولي ومـخ ته يې کتل زړه

عاقــبت هغه وحشي يې په دام راغی | کمندونه چې دعشق پرې واچول زړه

نه پــوهيږم په خاطر يې غم دچــاوه | درسته شپه چې په ناروسوروژړل زړه

محـــبته يوزړه څــه که راڅـــخه وي

مانثار به کړل په ښکليو باند سل زړه

---------

(١) ښخ

"۲۱۲"

دازه نــه وایم وفــا کــړه یــا جــفاکــړه

هــرچــې ستا رضــاوي ته خــپله رضــا کړه

بــرابر که خــپل نــقصان وجــبر غــواړې

لــکه شــمع لــــه خنــدا ســره ژړاکــړه

ماخووې چې خال یې تګ دهــندوستان دی

لــه دې تــوره ســره تــاولــې ســودا کړه

خــپل جــفا زمــا وفــا وتــه نــظر کړه

تــاکــنځل [1] چــې راته وکړل مــادعا کړه

وړاندې ورستو [2] مه ګوره رجال الغیب ته

خــود یــارپلــوته مــخ بــل پــلو شــاکړه

خــوله مې ډکــه شوه پــه مــښکو په ګلابو

چــې دیــار دزلف ومــخ مــې نــن ثنا کړه

شپه وورخ هم دادرخواست مــې دی له تانه

خــدایه ماکړه دمــحبوب محبوب زمــا کړه

مــعشوقــې که چــرې چــرې وفــاکاندي

تــه مــمتاز په هــمه واړو یــې تل داکــړه

ګوره څوک سربازي کاندي ستاپه عشق کې

تــه یــوبل ســرباز مــاغــوندې پیدا کړه

دیــن دنیاله تانــه نــه غــواړم هیچرې

الــهی یــــومــحبت لالــره راکــړه

---

(۱) بنکنځل

(۲) ورروسته

"۲۱۳"

ځـــان سیزه په اورهـــله هـــوس دمحبت کړه

مـــینه که کوې ترودستی پـــه دودپه پت کړه

عشق دزړه سوهان دی درته وایم که ټینګیږي

ځـوان ددې کارنه یې زرشه ځان ترې فراغت کړه

مـــاګـــلزار دیا دکوڅـــې غـــوره کړ واعظه

ورشـــه بیان نوروتـــه وصـــفونه د جنت کړه

زړه دې نرم نه دی څـــه حاصل دخدای له ذکره

مـــزکه کـــره تـــیاره هله پـــکې زراعت کړه

هـــم یوه دانه لـــکه صدف بـــه دله درشي

رزق کـــه دې روزي یوه دانه شي قناعت کړه

څـونا کرده کاریې نردې مـــشه وهیڅ کارته

پـــوه په معـــماري شه هـله کار دعمارت کړه

هـــیڅ دې لـــه قیامته قامت کم نه دی دلبره

پـــاڅـــه له قـــیامته پـخواته قـایم قـیامت کړه

عشق دی حقیقت واړه مجازجمله هوس دی

شـــاکره ومـجـــاز پلوته مـــخ په حقیقت کړه

ځان په اوښوډوب کړه محبت دعشق په غم کې

کـــانئ دادعـــاربه غـــــریق یې درحـــمت کړه

"۲۱۴"

مـــستعد شه پاڅـــه زرطـــلب دیار کړه پـــه تاخیر کې آفتونه دي تلوار کړه

ځوچې دوه ښپې [1]درفتار دې سلامت دي قـــدم واچوه په یارپسې رفتار کړه

ځـــوچې کار کولی شې په دواړو لاسو دواړه لاسه خپل مشغول دیارپه کارکړه

ځـــودوه سترګې درڅخه دبینایي دي تماشالحظه لحظه د خپل نګـار کړه

دواړه غــوږدې ځوشنوادي په جهان کې سامعان یې هم دیاردخوش ګفتارکړه

ځوچې دوه شونډې دې خوځی په حیات کې پــه خلاملاذاکرې[2] داذکار کړه

ترهغه چې دې په خوله کې ژبه ګرزی شام وصبح په ثنایې ګوهر بار کړه

ترهغه چې زړه دې ځـــای دسکونت دی ددلـــدار و ســکونت لره تیار کړه

تنـــدرستـــی بــه دابدروزي زمـــا شي الـــهی په رنځ دمینې مې بیمارکړه

لادوارنځ داچې ستا د مـــحبت دی

مبـــتلا مې زړه مدام پدا آزار کړه

"۲۱۵"

خـــوله طلب مـــې کړه له یارې رایې نه کړه

وعـــدې ډیرې وکړې بـــارې رایې نه کړه

څـــه مې حـــال پوښتې کدامـــه بیماري ده

چـــې ستا مـــینې دلآزارې رایـــې نه کړه

رغـــیدم پـــه یـــاقـــوتي یـــې دلـــبانـــو

بـــدســـلوکـــې ســـتمګارې رایـــې نه کړه

مـــرتبه دوصال خپل چـــې لوی دولـــت دی

غـــې[3] ملـــوکې شهـــریارې رایې نه کړه

خوښـــې غوارم ولې څه کړم چې هـــیچرې

زمـــانې ســـتم کـــردارې رایـــې نه کړه

-----------

(۱) پښې

(۲) ذاکرې

(۳) هغې

شــیرینی مــې ترې وغــوښته ولې دریغه
هــغې شــونډې شکر بارې رایې نه کړه
بیــګاوئ[1] چې خولـه سبا به دله درکړم
ولــې نن پخــپل اقـرارې[2] رایې نه کړه
امــید واروم چــې بوسـه به چرې راکا
بــیوفــا جــفا شــعارې رایــې نه کړه
دســاقي پــیاله اوس څــه کړم محبته
چې په وخت دنوبهارې[3] رایې نه کړه

"۲۱۶"

ولــې ړوندشوې بینایي دې چرته لاړه
مــحبوبا ده مــخامخ درته ولاړه
بــیاد مــینې په بــلایې مبــتلا کړم
زړه مــې وکاندي یوه نه یوه پــاړه
چې عتاب کا آفتاب رویه په فریاد شم
غرچې تودشي آوازونه کاندي خراړه
عــاقبت خوپه مرګي به سره بیل شو
زه اوتــه یوځای به پاتې نه شودواړه
که خطر دی خولـه هوله د عـقبی دی
ددنیاشي تـوله تیره هــوره هــاړه
چې دپیر طلب کوې څــه به ترې واخلې
هرچې غواړې له دې خپله زړه نه غواړه
ســبا ورکه به ژړا شي تل بــه خاندې
نن خنداکمه کړه جــانه بسیارژاړه
چې یارنه وې د ژوندون څه کیفیت دی
حیف دی بې له یاره تیرشي عمر واړه
پوردې وه راباندې سر،دلـه[4] مــې درکړ
بارې خلاصه مې له تاکړه خپله غاړه
خپل ګناه په خپل عمل سره کمیږي
بویه خپل ســپونې دپاره خپله لاړه
څــه عاشق ته دې دفتر دوعـظ پرانت
پــوچ طوماردې دی واعظه ویې نغاړه
چــې دعشق دعوې کــاڅوک بې محبته
هــغو مه ګــنه صــادق یې کاذب ویاړه

---

(۱) واېي
(۲) اقرارېې
(۳) نوبهارېې
(۴) دله =درله =درته

"۲۱۷"

نـــه دچـــاته يې هرګـــز نه دچا زه ‌ ‌ ‌ پــه دوه كـــونه ته زما يې اوستا زه
كه دروغ وي ته اقرار وكړه دوصل ‌ ‌ ‌ كـــه نه وبه مـــرمه ستا په رښـتيا زه
تـــه اوزه په حسن وعشق يولا ثاني ‌ ‌ ‌ پـــه جـــهان كې ته بې مثـلـه يې يازه
پـــه شپه وايم مـــخ به نه كړم ستاپلو ‌ ‌ ‌ چـــې ســبا شي دله[1] درپشم بيازه
پـــه عـــقبى خو به دې پرينږدم لمن ‌ ‌ ‌ كـــه بيانه مومم فـرصت په دنيا زه
حياراشي چـــې مې لاس برشي په تا ‌ ‌ ‌ ومـــرم ومـــرم لـــه دې خپـلې حيازه
په بقا كې يې فاني به ځان كړم خپل ‌ ‌ ‌ نـــاپيدا يـــار به آخـــر كړم پيدا زه
په خپل كور كې دخپل يار په جستجوى ‌ ‌ ‌ مـــسافـــريمه پـــه شـــان دآســـيازه
بې لـه عشقه مې ژوندون نشي يودم ‌ ‌ ‌ يم مـــهى [2]دعـــاشقـــى د دريـــازه

اوس سكوت دې شاعران كا اختيار
مـــحبته په اشعار شـــوم ګويا زه

"۲۱۸"

پـــه ژړا مـــې شـــه عـــالم خـــبرلـــه رازه
دعـــاشق پـــه حـــق كـــې اوښـــه ده غـــمازه
څـــودور وځـــودې محراب مخامـخ نه وي
څـــه حاصل دى لـــه ســـجدې اولـــه نمازه
بس كړه ناز به اوس كوې تر كومڅه پورې
زه خـــوومـــرم اې شـــوخـــه ســـتا لـه نازه
بـــل محبوب به زړه مې بې لـــه تا يونسي
مـــښكرک بـــه څـــه ســـيالي كا له شهـــبازه

---

(۱) دله = درله = درته
(۲) مهى = ماهى = كب

عــاقبت دې ووژلم دعــشق پــه تــوره

دا انــجـــام زه پـوهــيدلم لــه آغــازه

آواز څه لـه بدلی [1] چـې رقـيب بـولي

زه خــويم آگـــاه ســتا لـه [2] هــره آوازه

پــه هــوا دعــشق بلـند شولم تر عــرشه

پــه حــيرت دي فــربنـــتي مې له پروازه

بــې له ما کړه جــفا پـه بل چـا بـاندې

مــه وبـاســه خــپل عــاشــق لــه امتيازه

تــه قرار د مــحبت دزړه يــې راشه

اې دلــبره دلآر امــه دلـــــنوازه

"۲۱۹"

جــام په لاس که معــشقوقــه راشي نوخيزه

پــرهــيز گــار به توبـه گــارشي لـه پرهيزه

کــه هرڅو کړي عــشق دغم لبنکرې تولې

عــاشقان مــردان وي نــنگ کالــه گريزه

صـــلح نه کاپه هيڅ شان چې پــه عتاب شي

جــنگ طلبــه شــوخ ديده فتــنه انگــيزه

پــه نکريزو نه دي ســره په وينو سـره دي

دواړه لاس يې چــې خــونونه کــا خونريزه

لــه زړه څـــوک شلــولی شي رشته دزلفو

دارشـــته يــې څــه بــلاده دلآ ويـــزه

---

(۱) بدلی = بدلوې

(۲) اصل: له ستا

هــره وروځــه يې دزړه په غــو ځـــولو
تــرتيرې تــورې نــه هــم زيــاته ده تيزه
زراعــت دزړه مې شــين وي تل په اوښو
چــې اوبــه رســي پــتې ته لــه كــاريزه
داســنګدل بــتان لــه كــانــي دجــفا نه
دعـــاشــق دزړه ښــيښه كا ريز مــريزه
پــه كلام كې مــحبت چاشني پيداكا
چــې فارســي كاله پښتو سره آميزه

"۲۲۰"

كــه مې مــرګ وي ستا لــه لاسه تــرژونــدونــه دی دپــاســه
وبــه نــه رســي تــريــاره اې نــادان وهــم وقياســه
و كــنځه[۱] مــې كــه په قــهرې[۲] تــه غــصه خـپله وبــاســه
كــه عــاشق يې ځــان فارغ كړه لــه خــوراكــه لــه لباســه
مــې دعــشق تر حــلقه تــيركړه دخودي كــيف وجــاربــاســه
بــې خــطر بــې عــشقه نــه شي دابــليس ځــوک لــه وسواســه
دپيــدار پــه آس كــه ســورشوې زربــه پــريــوزې لــه دې آســه
وي قــاتل پــه صــورت ښــكلى مــا مــعلوم كــړه لــه الماســه
نــور باطــل ګڼــه بې عشقه
مــحبتــه حــق شــناســه

"۲۲۱"

تــول عــالم دی په ژړا دمــرګ لــه لاسه
هلووركــه شوه خندا دمرګ لــه لاســه

--------
(۱) ښكنځه
(۲) قهرېږي

چې یې بیا نه موند فرصت په دې بازار کې

چاونه کړله سودادمرګ له پاسه

نه په زور نه په دعا نه په زرمومي

خلاصیدون شاه وګدا دمرګ له لاسه

په دنیا کې وهر لورته چې غوږکیدې[1]

په هرکورده واویلا دمرګ له لاسه

دغفلت له خوبه پاڅه نظرو کړه

درست جهان شه سپین سبادمرګ له لاسه

عمرې[2]تیرشي که په وصل هم آخرته

یارله یاره شي جدا دمرګ له لاسه

په خپل مراد یوه ګړی هم په دنیا کې

سره نه کاندي څوک خوا دمرګ له لاسه

په آسمان لکه عیسی هر څوک به وخوت

که خلاصي موندلی چاد مرګ له لاسه

محبته که عیسی ژوندی دی څه شو

کله خلاص به شي عیسی دمرګ له لاسه

"۲۲۲"

چې دمیني دیوانه وم دیوانه یم لا تر اوسه

پدې می چې مستانه وم مستانه یم لاتراوسه

که هرڅوزه لیونی یم له خویشانو نه پردی یم

په طلب دې فرزانه وم فرزانه یم لاتر اوسه

---------

(۱) کنبېږدې

(۲) عمرېې

په جوش اوښي هرزمان دي له دې سترګومې روان دي

داوبوچې خزانه وم خزانه یم لاتر اوسه

چې له تا آشنا شوم جانه جدا شوم له خپله ځانه

چې له ځانه بیګانه وم بیګانه یم لاتر اوسه

له قدیمه عاشق ستایم په تمام جهان رسوایم

چې په خلق کې افسانه وم افسانه یم لاتر اوسه

لاتراوسه بیګانه یم چې له غیروبیګانه وم

چې له یاره یګانه وم یګانه یم لاتراوسه

محبت چې لوی دریاب دی ددریابو انتخاب دی

ددې بحر دُردانه وم دُردانه یم لاتراوسه

"۲۲۳"

کشکی راغلی نوعروسه | چې یې زه شوی قدم بوسه
که په مرګ هم وصال مومې | عاشقان نه شي مایوسه
تیرشوم ستا په ګدایي کې | تردارا تر کیکاوسه
په عاشق دې راز ظاهر شي | بې قاصده بې جاسوسه
زیرکاه اوبه یې شیخه | جمله ډک یې له سالوسه
بیدانه په مني اوړي | تش وابنه یې پروړې بوسه
په غفلت چې اذان وایې | بې محل بانګ دی خروسه

چې اذان بي محبت وي

فرق یې نشته له ناقوسه

"۲۲۴"

لــه غــیرته سوی په زړه دنمـر پــیداشــه

چــې زما دلبــر ترې ډیــر بهــتر پیدا شــه

چــې پــیداشه مــلایک مــتعــجب شــو

چــې غــیرت دحــورو دابــشر پیدا شــه

پــه نظــر خپــل خــلقې یــې ونواز لــې

پــه مــدت پــس یوصــاحب نظر پیداشه

داد چــاد باهــو شــرنګ عــالمو واوریــد

چــې هرلورته هــسې شــوروشــر پیداشه

عــاشــقان چې په عــقبی کې جــنتیان وو

پــه دنــیا ولــه[1] بیــلتون ســقر پیــداشــه

لــخت دل مــې د بڼو په ســر جــلوه کړه

پــه شــجر مې یــوتــازه ثــمر پــیدا شــه

ســوز دعشق مې حیات بخش شه لکه شمع

چــې یوســر پریکړ شــه بــل مې سر پیداشه

غــمګین مــشه چــې په غم پسې ښادي ده

هــرې شــپې لــره آخــر ســحر پــیدا شه

نورعــالم کــه مینه عیــب ګــنې ګــنې دې

مــحــبت دپــاره داهــنر پــیدا شــه

"۲۲۵"

اې پــه خــوله کــوثــره راشــه اې پــه لــب شــکره راشــه

---

(۱) ورله= درته

ستا په غم شوه ملامې ماته          اې نازک کمره راشه
په قامت نازېږي سروه          اې په قدعرعره راشه
که ساتې يې زړه مې يوسه          اې دالدار دلبره راشه
توره شپه مې کړه روښانه          اې په مخ قمره راشه
آسمان مزکه نوراني کړه          اې په نور سحره راشه
رنګ دنمر په مخ دې زيړشي          اې غيرت دنمره راشه
چې ته نه يې هېڅ نه وينم          اې نورالبصره راشه
د تمام جهان تر خلقه          اې بهتر بشره راشه
معطر دماغ زما کړه          اې په بوی عنبره راشه
په طرف د محبت هم
اې غريب پروره راشه

"۲۲۶"

اې راحت دزړه زماهر کله راشه
صدقه شه ځان مې ستا هر کله راشه
زه دنازودادې طلبګار يم
ته په نازو په اداهر کله راشه
که دزړه په وړه خوښېږې نذر ستا دی
راشه راشه دلربا هر کله راشه
د راتلو اقرار کاوه دې بارې راغلې
هر زمان بول دی بالا هر کله راشه
راشه جانه په سينه مې سينه کېږده[1]
چې دې ونيسم په خواهر کله راشه

---------

(۱) کښېږده

په ښادي وپه خـوښـي دې تشريف راوړ
پـه هـوس وپه خـندا هـر كـله راشه
چـې پـدالـوري له خـيره سره راغلـې
مـرحـبا لـک اهـلاً هـر كلـه راشه
كه راځـې چې ديدن را كړې زړه مې يوسې
داخـو مفـته ده سـودا هر كلـه راشه
تـه محـبوب زه محبـت سره جوړيږو
تـه زما يـې زه يم سـتا هـر كله راشه

"٢٢٧"

په ګـلشن ګـذار دكوم يو ګـلرخسار شه
عنـدليب چـې پـه فـرياد وپـه چـغارشه
ګـلستان راته خـار زاروه چـې ته نه وې
اوس چـې راغلې خارسـتان راته ګـلزار شه
زاهـد شپـه كـړه روڼه ولي لـكه ماشى
دمـخلوق پـه وينو سـكلو[1]شب بيدار شه
زبردست چـې خوري بوټي دزير دسـتانو
دشـاهانـو په لاس بـازهـې مـردار شه
تعلـق كـه ددنـيا په زړه چـاواخسـت
پـه مثـال كـې لـكه خرلاندې دبـار شه
شيخ صنعان وته نظركړه چې په عـشق كې
پـرهـيزګـار دتمام عـمر خمر خوارشه

--------

(١) چښلو

آئینـــه پـــه خاکـــستر شـــي لـــکه صـافه

مـــخ دیـــار صـــیقل دلارې پـــه غبـــارشه

ناصـــــح وکـــړل راته ســـل نصـــیحتونه

ولـــې یوهـــسې نه وه چـــې مـــې پکار شه

ســـیه مـــست وي پروت په درد میفروشو

مـــحبت په خـــرابات کې هـــسې خوارشه

"۲۲۸"

سـرتر بنپو[1] په داغ دعـــشق هغه گلزار شه

کـــه عاشـــق یې نندارڅـــي دخپل بهارشه

گـــوبنـــه ونسه لـــه خـــلقو کنـــاره کـــړه

تـــل لـه یاره په خـــلوت بـــوس وکنارشه

دغـــفلت په خـــوب ترکومـــه بـه اوده یې

څـخوپاڅـه ســـترگی و مږه[2] بـیدار شه

دپـــند ارله کیـــفه څوبه بیخود پـــروت یې

دانشـــه له ســـره لـــیرې کړه هـوبنیارشه

لـــکه شمع که څوک پاڅي سردې پـرې کا

ته پـــه هـغه زړه ســـیزونی لا بســـیار شه

خـــپل پردي له ســـخاوته مـحروم مـه کړه

فـــیضرســـان لـــکه باران پـه هـــر دیارشه

په صـــحبت دپاکو پـاک شـــه لـــکه توره

چـــې اوبـه وتـــاته ورســـي آبـــدارشـــه

---

(۱) پښو

(۲) اصل : ومکه

پس له مرګه څوک دچانه پکار یږي

څوژوندی یې په دنیا دچا په کار شه

محبت عقل پیداکړ په مستي کې

چې څوک وایي مست خراب دی هغه خوارشه

"۲۲۹"

چې داه ونالې جمع مې لښکر شه

ملک دعشق په دا لښکر مې منور شه

وچ کوګل سترګې په نم چې مې پیدا شوې

هویدا راته دمینې بحر وبر شه

د نګا غشی چې تاهیسته ګذار کړل

هر یو غشی دې زما په زړه کارګر شه

سخته ورځ دبیلتانه دې چې ښکاره شوه

هم پداجهان څرګند راته محشر شه

لیونو دې دناصح هم عقل ورک کړ

چې یې ستا په لیونیو باندې سرشه

آفتاب روی مې څهره پټه په برقع کړه

په اوریځ کې پوشیده یا مخ دنمر شه

جمع شوې دعاشقانو د زړه خاورې

له خمیره یې دخاورو روغ دلبر شه

ته خدای خلقو لره یوفتنه پیدا کړې

چې پیدا شوې په جهان کې شورو شرشه

مــحبت په تا حیــات دوباره بــیاموند

په یوســف لکه یعقوب صاحب نظر شه

"۲۳۰"

دگــلرخ دوړ وځویاد چې مــې شــمشیر شه

زړه زمـــا پـــاره پـــاره دگـــل پـــه څـیرشه

زړه یـــې وگـــرزیده مـــا پلـــوته شـــکر دی

چـــې یونوم دخـــدای ... وه آخر پیر شه

په ســیرت کې خوبدتر تر پـــشو نگړي دی

پـــه صـورت هـر څـوکه غیر دقالین شیر شه

لـــړلړ رحـــم هم ضـــرور دی اوس رابـاندې

بـــس کـــړه ظلم دې پـــه ما بیحده ډیر شه

په ما څـــه څه عذاب تیرشه سِـتا پـه غـم کې

اوس مـــې څه پوښتې چـــې تیرشه هـغه تیرشه

اکـــتفا که چـــا پـــه گـــنج دقـــــناعت کړه

خښ[1] دولـــت ورته لـه مـــزکې نه برسیرشه

چې دعــشق نکته مـې نقشه شوه پـه زړه کې

هـر چې عـــلم زمـــا یـــادوه واړه هـــیر شه

دخـــر مـــنومـې ښی چـــې تا پـــه ښـــپو کړې

زه بـــالا پـــه امـــتیاز شـــوم دشـــمن زیر شه

وړی ســـتا دمحـــبت پـــدا قـــــدریم

چې له خپله ځانه هم خاطر مې سیر شه

---

(۱) ښـخ

"۲۳۱"

وي خنــــداپســـې ژړا په خـــندا مشه داخـــندا ده عـين ژړا په ژړا مشه

که آشناشوې بيا به خلاص ترې نشې پوه شه آشنايي به دزړه نول شي آشنامشه

يـــکبيني مـــعنی دوصل دی يکبين شه دوبـــينی دې جدايي ده جدا مشه

چې ډيرخورب شي سړی خوځيدی نشي توانايي دې ناتواني ده توانا مـــشه

که په عـشق کې خطره له رسوايي کړې عـاشقي رسوايي يودي رسوامشه

دطوطی ګـــرفتاري خوش کلامي شي ګـــويا يي دځان بلاده ګويا مشه

پـــوهنـــده په بې بـــقا کلـــه نازيږي دنـــيا تيره ده غـره پـــه دنيا مشه

چـــې اوفوبالعهد خدای دي فـــرمايلی پـــه وفـا به دې پوښتي بيوفا مشه

وي ادنی د مـــحبت اعـــلا اعـــلاشه

ددنـــيا اعـــلا ادنـــی وي ادنی مشه

"۲۳۲"

په جلـــوه يي خاکستر اول تمام شه بيا کليم غونډې له ياره همکلام شه

که يار غـــوارې شه آزاد له نام وننګه که يې نه غـــوارې پابند دننګ ونام شه

کمـــينی کړه طـــلبګار که دلويي يې دخاصـــانو مرتبه که غوارې عام شه

سروه هـــيڅا په رفـــتار نده لـــيدلې څـــخو پاڅـــه سروقـده په خرام شه

پـــه ښايست لـــکه پيشوايې دخوبانو په ښه خوی هم دهغه واړو امام شه

کـــاردنـــن په ســـبا ماڅـــوه نادانه خـــبر دار له ګـــرد شونو دايام شه

يا محـــمود شه قـــدر کړه دوفا دارو پـــه وفـا کې ياایاز غونډې غلام شه

په صـــفت د ذوالجلال شه په اعداوو پـــه دوستانو په صفت دذوالاکرام شه

عرش وشرع وشعر يودي په حروف کې

مـــحبته په اشـــعار عـــالي مـــقام شـــه

"۲۳۳"

که هرڅو لانبودې زده وي زړه ورمشه

خطر کړه دعشق له بحره اوتر مشه

محویت دیار په عشق هسې پیدا کړه

که قیامت دې په سرتیرشي خبر مشه

زیړه ګونه سپین ویښته دې لوی دولت دی

ته طالب هډو دسیم ود زر مشه

که زړه وړې ددخسته وز دلداري کړه

او که دادرنه ونشي دلبر مشه

له رقیبه اختلاط مه کړه که کس یې

له ناکسه سره شیروشکر مشه

که غفلت لرې په غټوستر ګوړوند یې

لکه بت حیرت زده بې بصر مشه

لکه تیره دروند شه وخو ځه له سیله

سپک دخس په شان دبحر په سرمشه

که داغوارې چې دزړه عقده دې واشي

نرم دل شه لکه اوښه ګوهر مشه

سپرویارته وغورځوه عاجزي کړه

محبته پدا ځای دلاور مشه

"۲۳۴"

معتقد دبل مذهب وآئین مشه   دین دعشق په زړه قبول کړه بیدین مشه

تل ددين په غم کې اوسه که پوهيږې ددنيا په غم نادانه غمګين مشه

لااله الا الله چې په خوله وايې ومعنى ته يې نظر کړه دوبين مشه

بادشاهى کوه په دلق دګدايي کې په زرينو جامو مرغ زرين مشه

په خندا يې غوتې پرانزه د زړونو و دوستانو وته غوټه جبين مشه

دظالم راپيره مال خود ظلم مه کړه دعقاب خصلت پيدا کړه شاهين مشه

زيردستان کړه همه ګي تر سينې لاندې که لويې غوارې آسمان شه زمين مشه

په نازونويې چې نه وي اندازونه مين هلو پدا هسي نازنين مشه

محبته دکلام په زراعت کې

وړي کړه تازه پيدا خوشه چين مشه

"۲۳۵"

د خپل يار چې ښکلى مخ راته عيان شه

ماسواهمه له سترګو مې پنهان شه

چې سرې اوښې مې لـه مخه پاکيزه کړې

ډک لستو نى مې له لعل وپه مرجان شه

چې تکرې دزړه مې پريو تې په مزکه

غولى خپل راته غيرت دګلستان شه

په ژړا پسې خندا ده مدام ژاړه

چې چاوژړل آخر وته خندان شه

وهغه ته يوقدم لار دمقصود شوه

هرسړى چې په طريق دعشق روان شه

هربينا چې دخپل زړه سترګې پيدا کړې

آخرت ورته ښکاره پدا جهان شه

چــې دزلــف يې كفــرمـاوقبــول كړی

هــم پدا ســبب مې ځای په هندوستان شه

په حــيرت يم چې در دمن دعشق هيچرې

حــاجــتمند نه د طــبيب نه د درمـان شه

ز ه فــرياد دچـاله لاسه كړم په عشق كې

چــې خود زړه زما آفت مې دخپل خان شه

دمقــصود ليلا يې هــله په آغــوش شوه

چــې مجنون د محبت مــــحبت خان شه

"۲۳٦"

يورفــيق په بــدې ورځـــې پكار نــشه

بــې سايه پــه بيكسي مې څـوک يار نشه

زړه مې يووړهــيڅ شفقت يې پرې ونه كړ

دلــرباى زمــا هيــچرې دلــدار نشــه

په زر گـونوشپې سحر شوې په جهان كې

ولــې بــخت چې مې اوده وه بيدار نشه

كــه هــر څـومې ورته سوال دوصل وكړ

چــې مــصروه پــه انكار په اقــرار نشه

زړه پـــايمال مې لــكه خــاورې كړو يارته

داگــوهر دســنگ ريزې پــه مقدار نشه

چــې يوځـــله ستا دعشق په ميومست شه

په درســت عمر هغه بيا شراب خوار نشه

ستا ددې سترګو بیمارولـه اندو هـه

کوم شهلانرګس په باغ کې بیمار نشه

ړانده هم په فکر وخیال په لارې راشي

د ازل بې لارې شوی په لارنشه

هجرتیر شه ورځې شپې دهجران راغلې

ولې زړه د محبت په قرار نشه

"۲۳۷"

بخره زیاته بـه بیانه مومـې ترویشه هم پخپل قسمت قانع اوسه درویشه

که روزي بیامومې کمه قناعت کړه چې قانع شې شي به کمه دله[۱] بیشه

له ښاماره یې دزلفو څه بازي کړې دابازي نادانه یوبه نسې پیشه

څه فریاد له بیګانهووکړم په عشق کې دابلا په ماراغلې ده لـه خویشه

نیست نابوده شوه بـدي مې له خاطره مینې ستاپه هسې شان کړم نیک اندیشه

خوږوي[۲]زولن پرهـارمې دزړه ولې لاس دظلم پورته نه کړې له دلریشه

زه کلک ونیسم ایمان ولی زاهده که یې پریدې هغه سترګه کافر کیشه

که یې سترګې دي مچې عسل یې لب دی طالب ویره د مچې‌نه کاله نیشه

چې قربت لري محبوب له محبته

ته محبوب زه محبت یم رانژدیشه

"۲۳۸"

شه بلم باعور چې مل دبـدو سپي شه

سپی د کهف یاردنیکو شه سړی شه

خاتمی دلیونو وماته پریښوه

مجنون څکه ترما څو ورځې وړنبی شه

------------

(۱) درته

(۲) اصل خوګوي

بود وهـــست ديارپه مـــاكې جـــلوه ګـــرشو

زه تـــرمـــينځه نيست نابود شوم همه دی شه

دســـودامې هســـې شـــوردی پـــه عـــالم کې

خـــلق وايي دوبـــاره مـــجنون ژوندی شـــه

زه نـــه غوارم چـــې ته خوږشې که نه پوه شه

ددې آه غـــشي ترعرشـــه مـــې ورتلـــی شه

ځـــوچې ښپي [1]مي دطلب وي سرګـــردان وم

دطلب چې ښـــپې [2]شوې ماتې منزل طی شه

اوس بهار راته خـــزان شه ســـتا پـــه غـــم کې

بي له تامې ګل په ســـتر ګو کـــې اغزی شه

چـــې په عشق وي مـــستحکم بنده مـــولا شي

وبـــلال ته کـــړه نظـــر ســـاهـــومري شـــه

چـــې پياله د مـــحبت تر خـــولې مـــی راغله

دخـــودي کيف مـــې له زړه نه واړه قـی شه

په نســـب شايد بـــړيځی کوټه خـــيل وه

محـــبت ديار ددرچـــې کـــوټه ســـپی شه

"۲۳۹"

په فـــتنه دې ستا مـــفتون پوهيږي ښه   دلـــيلا په کړه مـــجنون پوهيږي ښه

وي بل ځـوک دچاله غمه څه په ګـاه   پخپل حزن هم محزون پوهيږي ښه

سترګې ستا پـــه کوڅو زړه وړي دمـــردم   چـې په سحروپه افسون پوهيږي ښه

تورې زلـــفې يې په شپه کا قتل عـــام   چې کافر يې په شبخون پوهيږي ښه

-----------

(۱)(۲) پښې

له عـاشـقه وپوښـته حق وبا طل    چې عاشق یې په بیلتون پوهیږي ښه
زرکـې کـله زده رفتـار ددلبري    هـم دلبـر مـې پدایون پوهیږي ښه
الف قـده مـیم دهـانه ستا په غم    چې یې قدشوی وي نون پوهیږي ښه
چـې څـکلي یاقـوتي یې وي دلب    پـه نشه ددې مـعجون پوهیږي ښه

ښـه بیان به کا مـعنی د مـحبت
محبت یې په مـضمون پوهیږي ښه

"۲۴۰"

حـسن بې فراغت لري هر وخت له خال وخطه
مـخ منـقش کـاندي مـشاطه یې په غلـطه
تـور زما دسترګـو لاسوا کاندي چې راشي
سپین نورې[1] اغوستی لـکه تکه سـپینه بطه
قـهر دمعشـوق پـه عاشـق قـهر الهـی دی
وسـاتې مـا خـدایه د خـوبانولـه سخطه
نـشته دی نظـیربې زه لـه چاېې مشابه کړم
یارچـې لـري حـسن بې مـثاله بـې نمـطه
سربې که څوک پرې کالا ژوندی اهـل مـعنی شي
شـي په روانـي کـې لاتـازه قلـم له قطه
هـر امر چې پیښ شي توسط پـکې اختیار کړه
زیات وکـم پکار کـی بهتر نه وي تروسطه
درست عمرمې تیرشه چې تنهادې په خواسـت غواړم
دریـغه چې مې هـیڅرې بیا نه موندې فقطه

---

(۱) نورې = نورېې

بـــې مثال جـــمال وي مـــستغنی له خط و خاله

لفـــظ دالله ګـــوره چـــې فـــارغ دی له نقطه

غـــوارې که نجـــات غـــریق دبحر محبت شه

ډوب پدې دریاب کې شه چې ورسې تر شطه

"۲۴۱"

چـــې بدي ګـــني موجوده څه هغه — چې بدي هم نیکي شمیري ښه هغه

اوده نه دی چې بې زړه ویښ ویښ په خوب و — چـــې بـــیداروي شي غافـل اوده هغه

یا کـــافر دی په جهـــان یا مسلمان — مـــذبذ به تـــه نه داشـــوې نه هـــغه

په شفقت کې نه یې ته لکه چې وې — پـــه وفا کـــې یم تر اوسـه زه هـــغه

ستا ښایست دلبره زیات شه زما عـشق — نه زه پـــاتې شوم هـــغه نه ته هـــــغه

کلـــه رحم کاخـــوبان کـــله ستم — ته هـــم داکـــوه کلـــه کلـــه هـــغه

دانه وایم چـــې وفـــاکـــړه یا جـــفا — هـــر چې ستا دزړه رضاوي کړه هغه

شمع زړه په پتنګ سیزي درسته شپه — ته هـم هـــسې شه په مـــا لـکه هغه

زړه چې عشق نه لري وي مضغه د ګوشت

چـــې وي ډک لـــه مـــحبته زړه هـــغه

"۲۴۲"

یار دغـــیر وپه وینا شــــه دریغه دریغه — بیا آشنا مـــې ناآشنا شه دریغه دریغه

ددښـــمنو هـــر زمان خبرې نغـــوړي — له دوستا نوبې پرواشه دریغه دریغه

اوس له ماســـره کا چـــارې داغیارو — نه پـــوهیږم یار دچاشه دریغه دریغه

څـــومي زړه نه وه اخیستی یار زماوه — چې مې زړه واخیست جداشه دریغه دریغه

خوب خوراک مـــې په فرقت یې واړه لاړل — اوس یې غم روزي زما شه دریغه دریغه

چې مې نوم دقیامت اوریده راباندې په فراق یې نن برپاشه دریغه دریغه
زلف یې وه توره بلا اوس په هجران کې غم دزلف یې لا بلا شه دریغه دریغه
محبت که لوی نادان نه وه نورڅه وه
چې مین په بیوفا شه دریغه دریغه

"۲۴۳"

مقید په قیددوهم شوې احمقه
مطلق نه وینې غافل شوې له مطلقه
په سورشال کې دې څهره هسې جلوه کا
لکه غر چې رابښکاره شي له شفقه
داد چا دمخ رڼا مې ده په کور کې
چې مې شپه شوه لکه ورځ بې له رونقه
دردمندان دي که دآه غشي ګذار کا
بنځوی به وزی[1] دآسمان ترنه طبقه
شي ګلاب اوبه اوبه له خجالته
خوشبويي چې دې خوره شي له عرقه
دوصال راوړه مرهم چې په فراق ستا
تيغ دغم سينه زما کړه شقه شقه
دنګاه په تاخت به ماآخر پايمال کا
امان غوارم ستا دستر ګو له ابلقه
مينه حقه ده منکر مشه له مينې
شي کافر چې څوک انکار کاندي له حقه

---

(۱) اصل : نبوګه به اوزی

محبت که حاصل نشي معلمه
څه حاصل دی له کتابه له سبقه

"۲۴۴"

امتیاز ظاهر دپاک وي له ناپاکه پـه هیڅ شان به آئینه نه شي څپیاکه
پس له مرګه په لحد مې که ګذار کړې څه عجب دی که سروکارم له خاکه
نه مجنون شه نه فرهاد نه وامق پاتې مینه ده چې خلقه يې کړه هلاکه
که ګریوان وي څيرې ما به وه ګنډ لی چاګنډلې ده ناصحه سینه چاکه
حباب نه دی دادعشق داورله سویه ددریاب په صورت پریوته تنا که
جمله واک دمعشوقې به دې په لاس شي که ته وباسې ځان خپل دنفس له واکه
میوې نه غوارم هر ګزله نورو ونو هرچې غوارم زه مینوش غوارم له تاکه
چې بیا نه مومي معشوق په خپل حیات کې مرګ بهتر دی دعاشق ترهسې ژواکه
دې میچن لکه داني واړه اوړه کړل ثابت هیڅوک تلی نه دی له افلاکه
دبامغزوفرق وکړه له بیمغزو په دنیا کې هم چغری ده هم متاکه
هله نور دمحبت به پکې ډک شي
چې زړه پاک د تعلق کړې له خاشاکه

"۲۴۵"

ته غیرت دنمر پیداشوې چې په مزکه مزکې سرد فخروایست تر فلکه
پروانې په وفاوسه چې پرې ځان خپل شمعه ژاړي درسته شپه هم سوزي ځکه
سنګ دجوردې بیل عاشق وبوالهوس کا سره ناسره لکه جداشي له محکه
صبر آرام قرارپه عشق مې همه بایلل ماسکه په جواری کړه خپله ورکه
ځان ژوندی سیزي په اورکې ستی ګوره پـه وفاتر ښځی کم مشه مردکه

کانی هم شي نرم ولې نه نرمیږي معشوقه چې ده په زړه ترکاني کلکه
لکه ګیډۍ دمالوچو څه تزویر کړې اې ظاهر په لباس دروند په خوی کې سپکه
تل جرګه وی دخوبانو په تاټوله اې په حسن دهمه واړو ملکه

ترکان واړه عاشقانوته خپل رام شو
ته آشنا دمحبت نشوې اوزبکه

"۲۴۶"

وی بدرګ په نجاست کې بدتر سګه
سپی بهتر وي په وفا کې تربدرګه
له پنچې نه دبنو به یې خلاص نه شم
چې شاهین په سترګو ولیده لګ لګه
آه دعشق که کم که زیات وي زړه پرې سوزي
چې داورلنبه څه ډیره اوڅه لګه[1]
غیرموذی دی په تن څورب که ډنګروي
چې زیان وکا برابر دی مګک اومګه [2]
په پستو خبرو زړه دې له ما واخیست[3]
زه دې وغو لولم اې دجهان ټګه
له اهلقه دناز زړه مې لګد کوب کا
چې خوبان کا خپله ستر ګه چرګ برګه

بواهوسه په دریاب د محبت کې
آخر سپک شوې اې دبحر په سرزګه [4]

---

(۱)لړه
(۲) موږک او مږه
(۳) واخیست
(۴)خګ

"۲۴۷"

یوساعت یې نه تیربري بې له جنګه

جنګیالی ده هغه ستر ګه شوخه شنګه

زړه مې هلوبه پرینږدي هغه ستر ګه

زر که خلاصه به دبازنشي له چنګه

اوس مې څه له ننګ ونامه تفحص کړي

مینې ستاایستلی یم له نام وننګه

روح له جسمه مې په څنګ به هغه دم شي

اې دلبره چې مې ته پاڅې له څنګه

سوی دعشق که اثر نه کاندي په کاڼي

شراري داور په څه خیژی[1] له سنګه

که دعشق له اوره زړه دتن ایري کړي

ملنګي هله مقبوله ده ملنګه

دیو درنګ وعده اوږده[2] کړې ترقیامته

خطره مې ډیره کیږي ستا له درنګه

مقید که ته په رنګ وخط وخال یې

څنګه لاس له به دې دریشي بې رنګه

مخ دیار به پکې وینې محبته

آئینه د زړه که صافه کړې له زنګه

"۲۴۸"

په هجران دې په ماتیرشي څوڅوکاله

یوزمان خورسندمې نه کړې له وصاله

-------------

(۱) اصل : خیجي

(۲) اصل : اوګده

په صــحرا صحرامې هــم په غــرونو غرونو

گــرزو ې ترڅــو به اې رعــناغــزالــه

تصــور دې هغه خــوب پــه ما حــرام کړ

چــې مې يوساعت هــم نه وزي له خياله

کــه مــرغــه نــظر پــدا دام ودانه کــا

خــلاص به نــشي هلو ستاله خط وخاله

هــواصــافــه د زاهــد ده لــــه غباره

ســاقــي راوړه بــاده صــافه تــرزلالــه

دوست دشــمن مــې په احوال وژړل دريغه

ولــې ته نشــوی خــبر زمــا لــه حالــه

يــو په شــپه بله پــه ورځ پــدا پــنهان وي

چــې سپوږمی نمــردي خجل ستا له جماله

قانعــان نــه کــاپــرواکــه دنــيا تــولــه

دقــارون په خــزانــو شــي مــالا مالــه

دمــعشوق شــوق مــې راوباســي له کوره

بازپــريږدی کلــه بــې صيده خپله جاله

آدم زاد دې هــمسر نه شـــي چــې تــه يې

پــه ښــايست پــري مانــنده حور مثاله

لوی جنجال راته ژوندون دی ستا په غم کې

په خپل تيغ مې راشه خلاص کړه له جنجاله

وروځــه ســتا په زړه پــدا ده ناخــن زنــه

چې ښایست یې زیات دلچسپ دی تر هلاله

غــرونه تــول راته که لعل د بدخشان شي

ســتا تر سروشــونډو به ځار کړم زما لاله

دال ومیــم حروف ددم دي تــه یې دم یې

اې دلــبره پــه خــوله میــم په زلــف دالــه

خوله خوځه چې عین مې زړه ورسره خوږشي

چــې ګــویاشي مــعــشوقه شــیرین مقالــه

بــې زوال لتــوه حــسن کــه عاشــق یې

چې دې مــینه هــم مــدام وي بــې زواله

لــکه ونــه چــې ســرســبزه پــه اوبوشي

تــه په اوښــومې زرغــون شــوې نو نهاله

محبــت نســبت له میــنې ســره وکړ

هرســړی خپــله رشته کــاند لــه سیاله

"۲۴۹"

چــې له غــمه په فــریاد دې کــړه بلــبله

ســتا ځــګر پاره پــاره شه ځــکه ګــله

شــباهت چــې ستا د زلــفو یې پــرې نښود

پــریــشاني هــم لاړه نــشوه لــه سنبله

صــیادان اســیر لــه دامــه ځــناور[1] کا

تــاســړي بنــد یوانــان کړه لــه کا کله

---------

(۱) ځناور

بــس کړه اوس تر کومه پورې به غفلت کړې

مــشتاقــان دې ومــړه ســتا له تغــافلــه

لــوی نادان وم چــې مــې زړه زرولــه ورکړ

دانــاکــار نه کــاندي بــې له تــأمــله

بــې شبــهې بــه پــرې حرام مــی طهورشې

چــې پرهیز وکاندي څوک د عشق له مله

تاپــــدام کــې ورک کــړای دحسن شاهــه

شــان د مــــهر دښــایســت لــه تجـملـه

تحــمل وصــبر څــه غــواړې لــه مــانــه

عــاشــقان بې صــبره وي بــې تحــمله

عــندلیب هلــته څــه کاندی محــبته

باغ چــې ډک شــي د زاغانو له غلغله

"۲۵۰"

کــه دنیــا ټــولــه زمــــا وي لــه ازلــه

مــابــه واړه پــه خــوبانــو وښــندله

مــاوې لرې به لــه زړه مــې بیــتابي کړې

نــه چــې لایوســې قــرار زما لــه دلــه

هــرساعت چې دجــبین غــوټه دې واشي

هــغه دم به مــې دزړه عــقده شي حلــه

زه به زرهــیړه خپل ځان تر تا قــربان کړم

کــه ته مــا پــلوته وګــورې یــوځــله

دقیامت وعده دې کړه قیامت هم تیرشه
لابه کړې خپله وعده صادقه کله
ماشامل کا په هرچاچې قهر کاندي
شنه وانبه سوزي دوچوله کبله
هر چې وکري دهقان هم هغه رسي
نیک عمل نیکي به مومې له عمله
هیڅ تقصیر نه لري څوک زما په عشق کې
دابلا په ځان مې راوسته پخپله
څه تاثیر دې دغزل دی محبته
چې په سوزی لولي خلق لکه بدله

"۲۵۱"

بوزي ستا دیدن ته مې هرهیره هرځله
ډیره خو زماله خپلوستر ګوده ګله
تا ښیلی نه دی په حیرت یم چاته مخ
ولې په جهان ده ستا دحسن غُلغُله
لاس نیوی دچا کړم ته مې پیرزه دې مرید
هلوبه پرینږدم ستا د زلفو سلسله
ما ګنه معذورکه دې په مخ کړم های وهو
څه کړم چې دعشق په زړه مې راشي ولوله
لرزه ؤمه زړه منې رحم وکړه په عالم
هسې نه چې راشي په جهان کې زلزله

لــوله نحــن اقــراب اليــه وكــړه فــهم
نشــته مــعــشوقي اوسـتا تر منځه فاصله
ډکه مــې په زړه کــله ده ډيره ســتا دغــم
هيــځ لـه خولې نه وايم دا زمـاده حوصـله
تاغــوندې چــې شپون لرمه زه په دې صحرا
څــه غــم له لــيوه مــې بې خطره ده کله
ويــره درهــزن ده مـحبته شــه روان
پاتې شوې ته ورستو[1] وړاندی لاړه قافله

"۲۵۲"

خــوله شيرينه دې پــداده بې عديله چــې چشمه لرې خوړه تر سلسبيله
کــه شريف يې قدردان شه داشرافو چــې خطاهــيچرې نه وې له اصــيله
ته په حسن کې خــرگند لکه آفتاب يې خودښـايست دې بـديهي دی بې دليله
څنگه زړه مې په قرارشي چې لـرم زه شوخ نگــاهــه مــعشوقه ډيره بخيله
مادعــشق نکته کړه غوره له علمونو چې حاصل مې دغه وليد له تحصيله
په هــرنص عمل واجب دی ولې هله چې اول دې ځان آگاه شي له تاويله
هغه نه مري چې په عشق يې زړه ژوندی شه تــه په نوروپــسې گــرزه عزرائيله
دمــحبوب له پټه رازه چــې خبر شو بيا يې خوله نه شوه آشناله قال وقيله
جــوړپه وارشي هريوكاركه صابرنه يې
محــبته كــاربه وران كړې له تعجيله

"۲۵۳"

چــرته لاړې درســته ورځ ماه تمامه چــې رانغلې په نظر مې ترمـاښـامه

---

(۱) وروستو= وروسته

عاشــقي آخرراباندې چـارې وکړې پــه آغازې خــبرنه وم لــه انجامه

چې ليده شي پکې صـاف دواړه جهانه جام دجم دساقـي زيات نه دی ترجامه

آرام څه غواړې په زړه کې د دردمنو دردمــندان کله واقـف وي له آرامه

ترخــروسه راتــه کم نه معـلوميږي مــؤذن ووايي بانګ چې بي هنګامه

ولې نه بخښې [1]ګناه مي خود پوهيږې چــې بهتر دی عـفو ډيرتر انتقامـه

راشه کړه حلال په تيغ مي چې په هجرخپل زنـډګـي دې کړه په مابانديې حرامه

دنــيکانو خــرابي پــسې تل ګرزې اې فــلکه نا هنــجاره بـدفـرجامه

چې ترتاغوندې آفتاب راڅرګند پرې دآســمان افق خجل دی ستا تر بامه

بيرته کــړه له مــخه زلفې مسلمانه څــخو فرق وکړه دکفـر له اسلامه

عنــدليب دفارس يا طــوطی دهند دی

ډير محــظوظ د محبت شوم له کلامه

"۲۵۴"

نورمــې زړه دې څـه په کــار څه يې کومه

ســتا د جورتخته مــشقي لــره ساتمــه

په پــرده کې دهــستي مــخامخ ناست يې

لــکه ړونــد زه هــر پــلودې لــټومه

زيــات پيــدا کــاندي قيــمت ترمــرغلرو

چــې زه اوښــې ستا په غــم کې تويومه

يــوذره زمــا تــر ســتوني نه تــيريــږي

بې له تا چې خورم غله يا اوبه سکمه [2]

لــکه سپی په دروازه دې زمــا ځــای دی

پــه شــړلوستا لــه دره چــرته ځمه

-----------

(۱) اصل : ببښې

(۲) چښمه

ته هــردم مې دنــګــاه پــه غــشوولــې

زه دازړه خپل لــکه سپرپه مخ کې وړمه

ته خوهم په خپل ديدن مــې څخو ښاد کړه

چــې زه تل درپــسې څــان زهــيرومه

له هر چانه مې د زړه رشــتــه کړه قــطعه

پــه تارونــودې دزلــف چــې يې ترړمه

بــيګانه له آشــنايانو شــوم محبوبه

محبــت چــې زه لــه تاسره لرمه

"۲۵۵"

چــې جــزاده دظــالم درتــه مــعــلومــه

تــرولاس ولــې پورته نه کړې له مظلومه

که په ورخ ګــوشه نشين شې شپه کړې روڼه

چــې غافل يې ترې حاصل به څه کړې بومه

دخــوبانو لــه دولتــه کــه مــحروم يې

ډير مــنحوس لــرې بخت اې په نصيب شومه

کــه پــه زړه نه لرې غــم ددلــبرانــو

دجــهان له عــيشه پاتې شوې مــحرومه

کــمه نه زيــاتــيږي زيــاته نــه کــميږي

رســي هــم هغه روزي چي وي مقسومه

پــه قــضــاپــســې روان يم خبــر نــه يم

چــې مــې چرته بيايي راوســتم له کومه

مــادعــشق يــوه نــكـــته زده مــعلـــمه

هــغه لولم چــې په لــوح مې ده مرقومه

تــه رهــبر دخــپل طريق پــيرمــغان کړه

چـــې سالک دې چرته بيايي هلته درومه

بيــهـــوده واعــظه ډيــر ځلـــه ويــېړې

عـــاشقان خـــودې وينا نه کا مــفهومــه

تـــل پرې ټول وي مـــشتاقان دزنخدان ستا

چـــاه خالي نه وی د تږيو[1] لـــه هـــجومه

ځان نادان کړه چې له هره قيده خلاص شې

خدای تکليف دی پـورته کړی له معصومه

چـــې نيـــستی ده تـــل ورسره لـــګـيدلې

څـــه پکـــاره داهـــستي چـــې ده موهومه

نـــمرلري نســبت داهـــسې ستا له مـــخه

دخـــادم لـــکه نســـبت وی لـــه مخدومه

اوس دزلـــفوله حلقـی بـــه دې خلاص نشي

چـــې مرغـــه دزړه مې بند شه په دالومه

تـــه به وايـــې مرغـــلرې وپيـــيلې

محـــبت چې پښتوژبه کړه منظومه

"۲۵٦"

منت بار به دې شم ډير که مې نسيمه    مــعطر دهغه ګـل کړې له شميمه

که ته تيغ دقـــهر وکـــارې راباندې    ســـربه کيدم[2] له رضاوله تسليمه

---

(۱) اصل : تګيو

(۲) کښېږدم

چــې له وصله سره ويره دفرقت ده　نه خوښــيږم په وصال هم له دې بيمه

که قدم ږدې خودعشق په لارې کيده　چــې دالار دعــاشقـي ده مستقيمه

توبه کله ترې کوم مــست دالست يم　داشراب مــې روح افزادي له قديمه

که سفر ته ځي څه شوله ماخونه ځي　مــحبوبامې په خاطـر کې ده مقيمه

پوشيده حکمت به هم درته ښرگند شي　که دعــشق په نکته پوه شولې حکيمه

مــعشوقان په عــاشقانو مهربان کړه　تــه پدا فــرقــه کرم وکړه کريمه

غــم پــه تاغــلطيږي مــحبته

اې زما دزړه ددرست عـمر نديمه

"۲۵۷"

څــله وکعــبې ته ځــم اوڅــه کړم بــتخانه

مــاپه زړه کــې خپل بيامــونده خپله جانانه

نورد زمانـــې به مـــې څـــه زياته وي خوبي

خــدای چې ته پيداکــړلــې زمـا په زمـانه

ډيرې مې ســجدې عبثی کړې په هـريوځای

اوس دې زمــا ســراود خــوبانــو آســتانه

پورې کړې نکريزې خوچــې وخت شي د راتلو

در دې شـــي په لاس يــوه نــه يوه بهـــانه

اوس دزړه مـرغــه ديوسړي به نشي خلاص

زلــفې چې د دام کړلــې اوخال دې کړ دانه

بــياله زاهد انوســره مــات مــې کړپــيمان

زرشــه ساقــي راوړه دشــرابــو پيــمانــه

نوم چې خپل شي هیرهـــله په یادشي نوم دیار
ورک کــړه خپل نشان بیابه یې مومې نشانه

ځـــنګه لــه شرابـــو محـــتسبه کـــړم توبـــه
پـــریووت په خلقت کې چې مزاج مې رندانه

جـــاله په څـــه جوړه کـــابلـــبله پـدې بـاغ
نـــه پـــریــدي [1] یوه، باغـوان ددهر آشیانه

هـــرچرته چې ورشي لـــیونی محبت خان
شورشي په مخلوق کې چې بیاراغی دیوانه

"۲۵۸"

ګـــل به وزي لـــکه خـــس لـه ګـــلستانـــه
کـــه پـــه باغ شي جـــلوه ګـر غنچه دهانه

دغـــنچې په رنـــګ د زړه عـــقده مې واشي
لـــکه ګل چې په خندا شي لـــب خنـــدانه

هوښ به یوسي په ساعـــت کې دهوښـــیارو
هـــغه مســـته مې کـــه راشي غـزل خوانه

هیـــڅ دمـــیني لـــــه آفـــته خبـــر نـــه وم
دابـــلارابـــانـــدې راغـــله نـــاګـــهانـــه

څوک یې څه شرح وبیان دښـایسته توب کا
حـــسن یې دی فـــارغ لـــه شرحه لـــه بیانه

جـــانانې دي کـــه هر څـــوپه جـــهان ډیرې
ولـــی تـــه جان جـــهان یـــې زمـــا جـــانه

---------

(۱) پریږدي

عشق دکوم جهان خوبي راته ښکاره کړه

چې ویزاري[1] کړم له ځانه له جهانه

محبوبا پته به شي درته څرګنده

که ته واخلي دهستي پرده له میانه

ته حلال يې دعاشق دمشکلاتو

زما ګرانه ده په تاډیره آسانه

مینه مه کړه خانمان به دې غارت کا

میني کړې ده دډیروخونه ورانه

که کافر دمحبت لکه منصور شي

معتبر به دې ایمان شي مسلمانه

"۲۵۹"

ته حساب غواړې له مانه — زه کرم غوارم له تانه

که حساب دلره[2] درکړم — فضل کړم طلب له چانه

بل بیمار کله رغیږي — بې داروابې درمانه

یودعشق رنځور فارغ وي — له طبیب او له دوانه

که مې زړه توړې خوښیږم — راشه عشقه مهربانه

څه مزه دې ده په خراش کې — اې زما دزړه سوهانه

نن دې غم میلمه زما شه — زړه مې ورکړ ورته جانه

غم دې کله موړپه زړه شه — شرمنده شوم له مهمانه

دسوداقوت مې زیات دی — دمجنون هم ترسودانه

دانوې هغه زړه شوه — زوړ قوي نه وي ترځوانه

---

(۱) ویزاربې

(۲) درلره

ياردمـــينې پـــورته نـــه شه چـــې لـه مزكې له آسمانه

تاديار حـــكم قبـــول كړ

آفـــرين مـــحبت خـــانه

"۲٦۰"

په يوځل بې راځرگند كړچې مـــخ زړه يوورړله مانه

دابـــلانـــاگهاني وه پـــه ما راغلـــه ناگـــهانه

چې دبام په سرراوخوت په جلوه يې خاكستر كړم

ته بـه وايې گوندې تندرې[1] په ماپرې ايست له آسمانه

دمخلوق زړونه پايمال كړي،لكه خاورې بنيوه كړي

چې په خيال په كرشموسره په لارې شي روانه

كه امان دادی چـــې وژنې مې په توره دفرقت خپل

زه پـــناه غـــوارم ظـــالمه ستا له دې هـــسې امانه

ددروغـــو په وعـــدو به دې ونـــه غـــوليږم مكاره

لـــه فريبه دې آگـــاه يم زه هـــلک نه يم نادانه

ترجـــهانه ته بهتـــر يې هم تر ځـــانه مې خوشتربې

هـــلهوتا به بـــرابر نه كړم لـــه ځـــانه له جهانه

ته ددرســـت جهان آفـــتاب يې راختـــلی لـــه افقه

كـــه يوســـف دمصر ماه وه راوتلی كه كنعانه

كه سړی دی كه پيری دی كه مرغان كه چـارپايان دي

تابع دار دې دفرمان دي اې په حكم كې سليمانه

څه پوښتې سروسامان مې پخپل عـــشق لـــه تجا هله

لـــه مدته دې فارغه كـــړم له سره له سامانه

---------

(۱) تندربې

ګورم وراندې به لاڅوک کافران دمحبت کړي
محبـت خودې ايسـتلى دى لـه ديـنه له ايمانه

"۲٦۱"

چې دردمن لره ته راشې په پوښتنه
تندرستان شي په غيرت ستاله دردمنه
چې ښادي دې له ما واخيسته بيلتونه
ولې نه ځې اوس څه غوارې له غمجنه
ځان به څه کړم چې ته نه يې زما جانه
څه پکار دى تن چې روح لاړشي له تنه
په وعده دې دوصال عبث خوښيږم
ته وعده به رښتيا نه کړې دروغژنه
څه خبر به زما واخلې چې هلک يې
دمرغه لانه پوهيږې په ساتنه
چې سرې اوښى مې په مخ راغلې معلوم شو
زړه مې وينې په کوګل کې شه دننه
په طلب کې به دې اوسم څو ژوندى يم
که سرلاړشي هيڅ پرې نه لرم وتنه
باغ ته څله ځې چې ستاو ننداري ته
ګل به راووزي پخپله له چمنه
چې علم دمحبت مې نه بدليږي
زه دې مينه څنګه پريږدمه مينه

"۲٦۲"

ژبه چې پیداشوه خوګفتار لره کنه

خدای چې زه ناطق کړم خواشعار لره کنه

ړوند نه یم چې نه کړم ستاومخ وته نظر

سترګې چې بیناشوې خودیدار لره کنه

کار دعاشقي که نه کانورڅه کاسړی

خلق چې انسان شه خو دې کار لره کنه

غوخ یم دفراق په توره څکه غواړم وصل

ژوبل مر هم غواړي خوپرهار لره کنه

ولې زړه مې صیدنه کړي صیاده په نګاه

باز چې عالم وساتی خوښکار لره کنه

خوب په غفلت کړه چې دې بخت نشي اوده

بخت چې دی بیدار خوشب بیدار لره کنه

روغ به دې په خوله شم ولې نه راکوې خوله

نوش دارو چې جوړشو خوبیمار لره کنه

لاندې ترسینې دبخیل مال کاندي ظالم

ګنج هرڅوک چې خښ[1] کاخوښامارلره کنه

نه وي بې معشوقه دعاشق ژوندون پکار

زیست چې محبت غواړي خویار لره کنه

"۲٦۳"

که بیان کړم ستا دهجر عذابونه

یودفتر بویه چې وښکوم[2] کتابونه

---

(۱) ښخ

(۲) وکښم، ولیکم

غم زما په شمار به نه کړې حساب دانه
که دشګو په ذرو کړې حسابونه
چې خواره دمخ انوار دې په جهان شي
هرطرف جوړشي زرګونه آفتابونه
دادچاد زلفو خیال لرم په زړه کې
هره شپه چې پریشان وینم خوابونه
په یوه جرعه شراب مرتفع کاندي
دعاشق معشوق ترمنځه حجابونه
شه بیخود چې دشهی اوستا په مینځ کې
ستا خودي دي اچولې نقابونه
ستا عاشق تاب وطاقت له کومه راوړي
عشق پریدي[1] نه طاقتونه تابونه
زړه ځګر راته زما یې چې سهي کړل
هغه مست راځخه غواړي کبابونه
محبت درنه سوالونه په دعاکا
په کنځل[2] خووله ورکړه ځوابونه

"۲٦۴"

په زړه کینوه[3] دمینې شجرونه
چې خواړه خواړه په خوله کړې ثمرونه
په پالنګ دمعشوقې به بنه کینږدي[4]
عاشقان ځوپه لاس وانخلی سرونه

-----------

(۱) پریږدي
(۲) بنکنځل
(۳) کښېنوه
(۴) کښېنږدي

بـــيامې نموند خپل وحـــشي دجهان واړه

هـــم ځـــنگلې هـــم مې ولـــتهول غـــرونه

د زړه حـــال به مې دروښـــوبارې څه کړم

چـــې بـــيرون په زړه رانـــشي لـــه درونه

چـــې دحـــسن په ميدان کـــې يکه تازيې

يـــک تنها په مـــخ روان کړې لښـــکرونه

يو کشش بويه د زړه دعـــشق پـــه کار کې

نـــه تدبـــير را ځـــي پـــکار نه هـــنرونـــه

حـــرف حـــق به په مـثال دمـــنصور وايم

کـــه زما په قـــتل جـــوړشـــي محضرونه

زه ســـاړه آهـــونه ستا لـه بيرحـــمی کړم

رقـــيبان رابـــاندې يـــخ کـــاتـهرونـــه

لـــه هغې ورځې چې ته سفرته لاړې

مـــحبت له ځـانه تل کـــا سفرونه

"۲٦٥"

که مـعـــلوم نه دي وتا ته خـــپل کوررونه

گـــورســـتان لـــه ورشه وگـــوره گـــوررونه

هـــيڅ مې غـــم له پـــيغورونو دچـا نشته

چـــې عـــاشق يم مـــالـره دي پـــيغورونه

معـــشوقـــې مـــلوکـــې مه گـــنه نازکې

لـــه عاشـــقه وپـــوښـــته د دوی زوررونـــه

زړه مې وسه آه ترخولې نه مې ونه ایست

چې په درست جهان کې بل به شي اورونه

هیچاتور راباندې نه وه پورې کړی

تورو سترګودې راپورې کړل تورونه

زړه ځګر په هسې زور راځنې غواړي

لکه څوک له چا طلب کاندي پورونه

هسې غږ دمحبت مې دی هرچرته

چې په هند په ولایت مې دی شورونه

"۲٦٦"

کله صلح سره کاکله جنګونه

دمینو ځبله تل وي دارنګونه

چې مې وویني له ورایه آهو چشمه

په وحشت لکه هوس کا غور ځنګونه

چې روان شي په طلب کې دمطلوب خپل

یوقدم شي وطالب ته فرسنګونه

قصددغره دماتولو فرهاد وکړ

بې عاشقه څوک کا هسې آهنګونه

شرم وننګ کړه یوپلوکه عاشقي کړې

نه شرمونه به عشق پریدي[1] نه ننګونه

دګلزار ګلونه ستا خراج ګذار دي

په حُسن اخلې له ګلونو قلنګونه

---------

(۱) پریږدي

هـم په زړه هم په خاطر هم مې په سترګو
راشـه کـینه[1] واړه سـتادي پـالنګـونه
ګـمان کاندي چې مګـرشوردقيامت شه
چـې څـوک واوري دپـايلودې شرنګونه
مـحبت زنخـدان ولیـد دخـوبـانو
ځـان پـریباسي دایې خوښ شوګـړنګونه

"۲٦۷"

آلـوده اوښـې مې وینـې چې له خونه
زړه مـې وینې شه راوو وت لـه درونـه
په بهـار کې چـې توبه له مينوشي کړې
تـردا چـارې بلـه چـارنـه ده زبـونه
فـراموش کړم ګـلستان چې شي رايادې
هـغه سرې شـونډې ديـار لـکه ګـلونه
کمـول يـا زيـاتول کارد تـقدير دی
پـه تدبـير کـمه روزی نـشي افـزونه
تـه پـه حسن کـې نن زيـاته ترليلايې
زه په عـشق کې اوس سـوايم تر مـجنونه
اوريـده مې چې قيامت په بل جـهان دی
تـا پدې جـهان پـه مـا تير کړ بـيلتونه
انـدورن یې واړه تش لـکه شناس وي
دنـيا داروي پـرسـیدلی لـه بـيرونـه

---------

(۱) کښينه

بــې له ياره هــڅوغـــم به مــې يونسي

ښــادي هورته شه څــه غواړې له محزونه

پــرون وې دې چــې سبا به درته رام شم

نـــن چــې ګــورم لاوم ســوايې تر پــرونه

مـــحبت يې څــــه کابې له شهې خپلې

په جهان کې که دي ډيرې ښکلې جونه

"٢٦٨"

چـــې رضا دې وي کړه هسې ســتمونه

ســتمونه دې پــــه مــــا دي کـــرمـــونه

څـــان مې خاورې ستا د لارې کړله شوقه

ګوندې کــيدې [١] په تنــدي مــې قدمونه

عـــاشق مـــشه کــه ويريږې لــه غمونو

چـــې عاشـــق شي په هــغه راشي غــمونه

خـــوچې يوعاشق پيدا شي په جــهان کې

ورتــــه مـــخ کــاانــدوهـــونه آلــمونـــه

اوس کـــوم يې مـــسخر دخداى له فضله

ما دعـــشق په مزکه خښ [٢] کړل علـمونه

زړونـــه اخــلي دســـړوله هـــره پـــيچه

ســـتا په زلـفو چـــې پراته دي داخـــمونه

چې غوږ کيدم [٣] په هرکور ژړانګـــلا [۴] ده

ســـتا له لاسه دي پـه خـــلقو ماتـــمونـــه

---

(١) کښيږدي

(٢) ښخ

(٣) کښيږدم

(۴) انګولا

کــه دې مخ وښــوعالم به قتل عام کړې

پــه لیده دې دســړو خــېژي دمــونه[1]

زه دعشق په توره غوځ یم مرهم څه کړم

طــبیبانو یــوســئ خــپل دامــرهــمونه

غــم یې ډیروه په کــاغذهډوونه خوت

مــحبت په ښکلومـات کړل قــلمونه

"۲٦۹"

یاردزړه پــه سترګــو وینه کــه دیدار غوارې حق بینه

پــه دوربین نظرې[2] ګوره ده شــها درتــه قــرینــه

نمرسپوږمی په شان ښکاره ده آفــتاب رویــه مــه جبینه

چــې یې زړه غوارې هغه کا بــې نــیازه ده نــازنیــنه

جــلوې کاندي رنګارنګــې په هر رنګ کې شي رنګینه

کــله زیړه کــله سره شي کــلــه توره کلــه ســپینه

معــرفت یې هــویــدادی لــه آسمانه لــه زمــینه

نیک وبدې[3] پــه تلاش دي لــه اصــیله تــرکــمــینه

نــه راووزی لــه حــجابه هــسې ده پــرده نــشینه

مــونده شي لــه مــحبته

نه دنــیا نه نــه له دیــنه

"۲۷۰"

عــشق خودی آزار ولـې آزارې[4] مه ګنه

وي عاشــق بیمار ولې بیــمارې مه ګــنه

---

(۱) اصل : خیجي

(۱) نظریې

(۲) بدیې

(۳) آزاریې

بادشـــاهي په لــته وهي تل دمــينې خوار
خوارې وي ترشاهــه سواخوارې مـه ګــنه
ځـــوورځي قايم چې په آسمان پاتې شي ابر
هـــغه وريـــدونی دی غـــبار ې مه ګــنه
بي لـــه ګلرخساره ګــلستان وي خارستان
يارچې په ګلزار نه وې ګـــلزارې مه ګــنه
مارکه بل چـيچل کادی ســړی نغري تمام
دابنـــامار دزلـــفو دی بل مـــارې مه ګــنه
زيات ترعاشـــقی دی بي هـــنره کوم هـنر
کارچې څـوک دعشق کاندي بيکارې مه ګنه
څه شوکه څوک خوب کاندي په ځان باندې حرام
زړه يې که بيـــدارنه وي بيدارې مـه ګـنه
يارجـــاني بـــويه څـــه پـــکار يـــار نانـــي
يارچـــې وي غـــرض دپـاره يارې مـه ګنه
هر څوک چې په دين د محبت کې وي نادان
هـــوښ که ددنـــيا لري هوښيارې مـــه ګـــنه

"۲۷۱"

کـــه غافـــل يې پـــه مـــکه ومـــدينه   ښـــاپـــيرک يې پـــه مسجد داديـــنه
ياري يـــارسره کړه غيرسره غـــيري   دهـــرچـــاده خـــپله خپله قـريـــنه
دلتنګ مـــشه دبدګـــوی له بدی هـيڅ   هرڅه ځای کړه پکې ارته کړه سينه
بـــيوفا سړی نامـــردی پـــه جـــهان   ښـځه بـــه تـــردې هـــسې ناريـــنه

ته آشتي ورســـره کړه که يې حکيم     که هـرڅودرسره کاندي څوک کينه
اوس چې زوړشوم هر ګناه مې کړه مـعاف     دمـــعصوم په ځای سړی شي ديرينه
غـــم ښادي سـره تړلي دي په دهــــر     دمـــچۍ زهـــــر ســـره وي ګـــبينه
چې دانا وي ښځه،مردې[1]وي نادان     آرتـــينه مــــيړه، مــيـــړه شي ارتينه
مـــحبت دباد شـــاها نوشـــه مولا
دخوبانـــو چـــې بنده شه کمـــينه

"۲۷۲"

مـــينه تل دمـردوزن دځـــــان بلا وه     مـــبتلا يې هم مـــجنون هم زليخاوه
مـــجنون مرد وه فريفته په ليلا باندې     زلــــيخا ښځه يوسف باندې شيداوه
پـــه قالوابلـــی شه پـوه چې عاشقانو     دعـــوی کړې يې دمـينې لا پخواوه
لــــه هغه راهيسي زه هم ستا ذ ره وم     جـلوه ګر چې آفتاب رويه څهره ستاوه
ګـــل زما چـــې غـوړيده هوادمــينې     الـــوتلی پـــدا ګـــل لــکه سـباوه
ستامجنون چې دوجود په ښهرګډشه     له هغې ورځي دعشق هـم پرې غوغاوه
لـکه شـــمع چې بينا دخندا پريووت     ورســـره يــــې لـــګـيدلی هـــم ژړاوه
پـــه نامه مـــې محـــبت شه ترابده
لــــه ازله چې زمـــا مـيـــنه پــه تا وه

"۲۷۳"

ډيـــرستو مان دزمـــانې شـــوم له ستوهه
خـــدايه کله به مې خـــلاص کړې اندوهه
چـــې له غـمه نه خـــلاصيږم بارې وايم
دنســـب حسب احوال بې مـــکرودږهه[2]

---

(۱) مردې :مردېي
(۲) اصل : مکرورره

زه پـــه اصل کې برېخی شـــرخبون[1] یم

بـــدل زی هـــم کوټـه خیل یم وکړه پوهه

عـــزیـــزان مې کـــه تریـــن وابدالي دي

زه پـــه شمار دیوســـف زویم لـــه ګروهه

کـــه اجداد مـــې دپښـــین وښـوراوک وو

روهـــیلی یم چـــې مې پلار راغی له روهه

پیداشـــوی که هرڅو په هـــندوســـتان یم

ولـــې اصل دسلـــیمان لـــرم له کـــوهـــه

چـــې طوطی یم پریختـــه دهنـــدُستان هم

ګـــویاکـــیږم واوره اې خِـــرد پـــژوهـــه

تکـــلم په عـــربي هم په فـــارســـي کړم

لـــه عـرب ومـغل دوریم په څـــو کروهه

ســـید هم نه یم غـــلام یم د ســـیدانو

مـــحبته دافـــغان یم لـــه انـــبوهـــه

"۲۷۴"

په جـــهان که ښـایسته یـــوسف بســـیار وه

ولـــیکن کـــله مـــخی زمـــا دیـــار وه

سوړبه پروت په شـــان دیخ وه ستادوړاندې

دلـــیلا دحـــسن ګـــرم چـــې بـــازار وه

کـــه متاع دحـــسن ســـتایـــې وي لیـــدلې

دعـــذراوامـــق بـــه کـــله خـــریـــداروه

-------------

(۱)

په جــهان دې نظر کړی کــه شــيرين وي
ســـرې[1] مات لکه فرهاد به په کهساروه
ستا طالب به وه که تــه يې په هنگام وې
دشــاهد عــزيز مــدام چــې طلبگار وه
کــه يوځــل پــه لاس يې تــه وې پـريوتلی
لــه ايازه بــه مــحمود شــوی ويزاروه
ځــاريده تــرتابه تــه يې کــه پــه دوروی
آدم خــان چې پــه درخــوبانډ نشــار وه
بــې اغراق وايم کــه ته يې په روزگار وی
دتل کــله به دمــن ســره روزگــار وه
هــير رانــجا، سسی پنون ســره مــين وو
يــودبل به ستا دوړانــدې کــله يــاروه
مــحبته ستا مــحبوب دواړو شــاه دی
هر محــبوب يې يوادنی بنده خاکساروه

"۲۷۵"

ته چــې تلې پرون پــه مابانــدې قــيامت وه
چــې لاړنشوې په خيرتير شه لوی آفت وه
دلآرام پــه جهان ډير دي زه يــې څــه کړم
هــغه نشته چــې زمــا دزړه راحــت وه
چــاته وگورم نــظر کــړم کــومــه خواته
هــغه نه ويــنم چې نــور دبصــارت وه

---

(۱) سرې = سرې

اوس ګلــزار واړه خــارزاردی بــې لـه تانه
دګــلزار خــوهم پـه تــازیب وزینت وه
چــې ته نه یــې ټول کارونه مې خراب دي
چـــې ته وې زمــا دهــر کاربــرکت وه
مالــداري مې ستا په عشق کــې وه بــسیار
لـــعل ودرد خــپلو اوښــومې دولـت وه
ګــدايي دې دکــوڅــې مې بادشاهـــي وه
ســتا په درکــې هرذلــت زما عـزت وه
خدایه هغه وخت مې بیا به هـم نصیب کړې
چــې هردم له خپله یاره مــې صـحبت وه
نن ناله په غــورمې پــریوته دردناکه
کــه غلط نه شم فریاد دمــحبت وه

"۲۷۶"

| | |
|---|---|
| یارلــه مانــه ګــریزان دی لکه وه | هــغه هــسې بدګـمان دی لکه وه |
| ستا وصال مــې نشه هیچرې نصیب | ډک په زړه کې مــې آرمان دی لـکه وه |
| هــلو نشوم زه دعشق له بلاخلاص | هـــم هـغه آفت د ځــان دی لکه وه |
| راغی خط پـه مخ دې حسن نه شه کم | ســتا جمال په هغه شان دی لکه وه |
| زه بـــه هیڅ نه وایم وایه راته سپک | ستا خاطر رابانــدی ګران دی لکه وه |
| غـم دی نه کړهلو لاس پورته لـه ما | هــم هغه د زړه سوهان دي لکه وه |
| نـــه کــمیږي غــم دیار زما له زړه | هـــم هغه هــسې پریوان دی لکه وه |
| چـــې مې غم لکه پخواوه هسې دی | ځـکه ځیرې مې ګریوان دی لـکه وه |

خـــواوښا چې دې ياران ووښـــو اغيار
يوعاشـــق محبـــت خـــان دی لکه وه

"۲۷۷"

امـــيد واريم هر زمان لـه خپله خدايه چـه به ورسئ[۱] مـينه مې ترځـــايه
شي فاني دې که ډيرماغوندې فـاني شي ســـتا بقابـــويه ته تـــل تـــرتله پايه
په هـــجران کې په دروغه دوصال خپل څـه کلام تسلی بخش خوراته وايه
چې کوې چارې بدترې ترچـارپايو که دوه ښپې[۲] لرې مرغه شولې دوپايه
دانګاه دې دی که غشی ياتوپک دی چې داهسې مردمان وژنې له ورايه
هرناکس لياقت نه لري چې کس شي پـــه هرچا ســـايه ګستر مشه همايه
که حريص يې دکونين خواري پـــه تاده. چـــې خسران ددين دنيا لرې ګدايه
ولـــې زړه خپل پدا کاخ ترې نادانه چې پوهيږې آخر تله دې له دې سرايه
چـــې کار نه کاپه ويل دنيک خواهانو
محبته ځان په ښنګ کړه له خود رايه

"۲۷۸"

نـــه خورشـــيد مې دی پـــکار نه قـــمربويه
مـــالـــره يو هـــغه مـــخ منـــور بـــويـــه
قـــدم رډې نـــشي په لار دمينې هـــر څوک
پـــدا لارلـــه خـــپله ځـــانه سـفر بـــويه
چـــې ښبنـــتن شـــوې زما نګاه پـه مـا کړه
دولـــتمند لـــره پـه خـــوارو نـــظر بـــويه
ســـتا قـــدم زمـا دســـرتـــاج دی راتـــيرشه
کـــله کلـــه مې پـه خـــاوروګـــذر بـــويه

-----------

(۱) ورسږې
(۲) پښې

هــغه غشی څــه پکار چــې کار ګــرنه وي

هــم په آه هــم په نالــه کــې اثر بــویه

محــتسبه ځـــان ســاته لــه میــخوارانــو

الــبته لــه مــست هــاتــیانو حذر بویه

ویـــره کـــړه په تورو زلفــوېې لــه خالــه

چــې شب روته لــه رهــزنه خطر بــویه

زده انــداز ددلبــري کـــړه کــه دلــبرېې

خـــود پوهـــیږې چې هر کار له هنربویه

کــه محبوب یې شــه آګاه له محبته

معــشوقان له عاشــقانو خبــربویــه

"۲۷۹"

زړه مــې داغ کــا په غــمونــولا له رویه

ګــل اندامــه ســنبل مــویه ســمن بــویه

معــطر تمام جــهان یې پــه نــګــهت شي

چــې خوشبوی زلفې خورې کا عــنبرمویه

وي پــه مراد د هغــه کــس دواړه جــهانه

معشوقه چې یې خوشرویه وي خوشخویه

څــه خــوبي خودې کــوڅــه لــري ترزیاته

چــې جنت ته نه ځي هیڅوک ستاله کویه

صــراحي دغــنچــې هــم پــیالــه دګــلو

ســیالي نه کــاســتاله جــامه له سبو یه

وغـــنچې تـــه مـــې د زړه بـــادســـباشـــي
هـــر یوبـاد چـې هیسته راشي ستا له سویه
کـــه هر څوپه ګــرزیده شي ښــپې [1]مې ماتې
لاس بـــه نه کړم پــورته ســتا لــه جستجویه
په کـــوم غم دې مبتلا کړچې عـــاشق ســـتا
یـــوساعـت نه وي خـــالی لـه های وهـویه
مـــحـــبته لـــه عـــجـــمه تـــرعـــربـــه
درست جهان معمورشه ستا له ګفتګویه

--------

(۱) پښې

# ی

"۲۸۰"

په ښایست هغه یکتای | هسې یودی لکه خدای
کـه یې غواړې آرایش | پـه زړه ځای کړه دلآرای
ځای کړه خپل دیارپه در | ولې ګرزې ځای په ځای
کـه طلب کړې بادشاهي | د کوخې یې شه ګدای
چې سایه کاندي مدام | ستا پـه سرلکه همای

هغه یارچې همیشه خود آرای دی خودنمای
کله را به وړي تشریف چې راکاندي سروپای
که طالب یې دخو ښي غمګین اوسه پداسرای
هغه خاندي په قهقه چې ژړا کاپه های های
کاربه ستا کاواړه جوړ
محبته کار فرمای

"۲۸۱"

په طلب يې كه آسمان ته څوک ختی
ماغوښتلی به فلک وه لرغونی
زیبایش یې وي په خاورو ستا د در
دعاشق ګرد وغبار کړ خدای کالی
ستا شیدا دی دمُرده ووپه حساب
په جهان کې که هرڅوک ګرزي ژوندی
چې نظر ددوبیني نه لري څوک
خپل ښکاریږي وهغه وته پردی
آخر تله دي وطریق ته دعدم
**دغه لارده څوک روستی[1] ځی څوک وړښی**
هغه وي رښا دیار دخاص محفل
چې پیدا کا لکه شمع دزړه سوی
زما اوښو ته باران شه هسې هیڅ
لکه هیڅ قهر دریاب ته شي نه دی

---------

(۱) وروستی

هـــسې پيښ شـــه راته عـــشق ناڅـــاپه ستا

لـــکه پـــيښ ناګـــا هـــه چاته شي مـــزری

ازلـــی مـــست يم نـــاصـــحه شـــپه وورځ

هـــمدمـــان مـــې دغـــه دوه دي مَی ونی

کـــه هـــرڅو وي اوبـــه ډيـــرې پـــه کوهي

ولـــي ســـيال بـــه ددريـــاب نشي کوهـی

لـــيوني وي ليـــونـــي هـــوښـــيار هـــوښـــيار

پـــه هـــوښـــيار څـــه شوکه خاندي لـــيونی

بـــوالـــهوس وي بوالـــهوس عـــاشق عـــاشق

مـــچ به نـــه کـــاندي پيدا دپتنګ سوی

غـــرض داچـــې ياراغـــيار سرکـــړه بيل

مـحـــبته ګـــل دی ګـــل اغـــزی اغـــزی

"۲۸۲"

هـــره ورځ می پـــه زبان قـــيلُ قال ستا دی

هـــره شپه زړه مـــې مـــشغول په اشغال ستا دی

دادخيال دی چـــې ګمان دخوب پـــه مـــا کړي

کله خوب کاندي هغه چې په خيال ســـتا دی

مـــخ په ورځ سپوږمی پنهان کا نمـــرد شپيبه

چـــې هر يـــو خجلت زده کا جمال ستا دی

پـــه دنـــيا کې جنـــت نشته ولـــې خدای ږو

پـــه دنيا کې کـــه جنت دی وصال ستا دی

هـلو زړه يـې وهـيچاتـه نـه سـپينيږي

سـيه دل چې په رخسار بـاندې خال ستا دی

کشکی کيدم[1] يې په سترګو هم يې ښکل[2] کړم

چـې د مـخ پـاکـيزولو رويـمال ستا دی

عاشـقان چـې واړه هسـې جنجاليان شول

نوريې هـيڅ نشته جنجال خو جنجال ستادی

په جـنت هـغه به حور وقـصور څـه کـا

هـرساعت هره ګـړی چـې لـيوال سـتا دی

دهـغه طالـب دسـوري خـود هـمای شي

چـې يې تـل سوری په سـرد دوال ستا دی

محـبت له کـومه ستا نظـير پيدا کا

چې بې مثله يې ته چرته مثال ستا دی

"۲۸۳"

دا مـحبوب چـې په جـهان دريکتا دی

چـې درياب د مـحبت يم خوزمـا دی

خـود هر چرته يې جلوه لـکه آفـتاب ده

چـاته وستايم جـمال يې پټ لـه چـادی

پوشيده ذات يې ظاهر دی په صفات کې

هـرصـفت يـې پـه يواسـم مـسما دی

چـې سا اخلم هـر نفس زنده ګي مـومم

څـکه وايم پـه هـردم مـې مـسيحا دی

-----------

(۱) کښيږدم

(۲) اصل : خکول

مــهرومه عــجب نعمت يې دی په خلقو

چــې[1] خوان ډک په نقره بل په طلا دی

هــر بلــبل کــاندي فـریاد ده له شوقه

هــم هر گــل يې له هــوسه په خندا دی

دخــاوند نگــاه وي تل پــه غلامــانو

مــحــبته زه بنــده يم دی مــولا دی

"۲۸۴"

داچې تيغ په لاس را ځـي خونخوار دچا دی ؟

نــن دچاوينې به تــوی کــاوار دچــا دی ؟

دنــگاه غــشي يې عــين پــه زړه مې لگي

پــدار نــکه بې خــطا گــذار د چــا دی ؟

چې لا لا[2]شه ترې داغــي شونډې دچــا دي ؟

چې شه گل ترې ځگرخون رخسار دچا دی ؟

پــه مخ گــل په تن نــسرين سنبل په زلــفو

ســرترپــايــه داگــلزار بهــار د چــا دی

داخــې ســترگــی يې بيمارې همــيشه وي

خــوزمــا آزار دی نــورآزار دچــا دی ؟

داچــې زړه مــې وخــپل ځانٔ وته مايل کړ

دلآرام دلــبر دلــدار نــگــار دچــا دی ؟

دادی ځــوک چــې په اندازو نازرا درومي

داچــې زړه پــايمــالئ [3] رفــتار دچا دی ؟

-------------

(۱) چې يې

(۲) لاله

(۳) پيمالوي

داچــې دي راتــه خــواږه ترخــه ويــل يې

لذت بخــش هسې شيرين گــفتار دچا دی ؟

داچــې هرچرته جــلوه لکه آفــتاب کا

نــپوهــيږم مــحــبته يــار دچــا دی ؟

"۲۸۵"

نــنداره يــې کــړه دقــد صــنوبر دادی

نــظاره يې دجــبين کــړه قــمر دادی

شونډې سرې اوغاښ يې سپين طلب مدام کړه

طلــبگــاره لــعل دادی گــوهــر دادی

جــرعه نوشه يې له خــولــې کړه تشنه لبه

دحــيات اوبه که غــواړې کوثــر دادی

که ســاتی شــې زړه تــرې وساته ناصحه

چې يې وړې دغه دی راغی دلبر دادی

کــه يې ولــگي په زړه اور دفــراق ســتا

دوزخــيان به هــم نارې کاسقر دادی

که بادشاه په زړه آزاد لــه بــادشاهۍ وي

بــل څوک نه دی قــلندر قــلندر دادی

چــې بانــه کــا ســم زمــا قــتل دپاره

غــشی دادی نيزه داده خــنجــر دادی

پــه طلب يې طلــبگاره ناست په کور کې

مــسافر شــه لــکه ژرنده سفر دادی

بل هنر څه هنر نه دی محبته
یود مینې هنر زده کړه هنر دادی

"۲۸۶"

چې لري مخ لکه شمع یار زما دی
چې په مخ یې پروانه شوم کار زما دی
چې رغیږم په شربت دې دلبانو
که په خوله مې خوله کېندې[(۱)]زار زما دی
دااغیار چې مې له یاره نه بېلیږي
که جدا مې چرې بیاموند پلار زما دی
ستی ځان سیزي له عشقه په بل اورکې
که په عشق ترستی کم شم عار زما دی
مجنون تیرشه دلیلا په زمانه کې
اوس دلبره ستا په دوروار زما دی
ته زما باغ وبهار یې ولې ګله
دارقیب دې په پهلو کې خار زما دی
هغه سترګه وایي صیدز ماو زړه ته
هوسی وایي ومزري ته ښکار زما دی
ستا وصال مې دی جنت هم په دنیا کې
ستا فراق هم په دنیا کې نارزما دی
محبته چې منصور دزمانې یم
که پوښتې مې له معراجه دار زما دی

-------------

(۱) کښېښږدې

"۲۸۷"

چــې کــيفي مدام دمــينې په شــراب دی

وګــزک لــره يــې هــم د زړه کــباب دی

پــه يــوحــال وي لــه ازلــه تــر ابــده

ســرمدي چې ستا دحــسن آب وتــاب دی

ديــوې بوســې لــه غــمه دې هــلاک شوم

کــه په لب مړی ژوندی کړې ډير ثواب دی

راتــر غــاړه وزه شــرم يــوپلــو کــړه

چې زه ستاشوم ته زما شوې څه حجاب دی

چــې داخل دی پــه حساب کــې دمــينو

ددنــيا کــله تر مــينځه يــې حــساب دی

چــې مې ته کــړې منتخب لــه هــره سويه

آفــريــن تحــسين زمــا پــه انتــخاب دی

ســتا په مخ کــه يې رنــګ نه دی الوتلــی

زيړ مــدام په څــه ســبب رنګ د آفــتاب دی

کــدورت دآســمان نخــبنه[1] دبــاران وي

تــول رحمت دی دبــزرګــانو چــې عتاب دی

وســاحل ته دنــجات هــغه به رســي

په درياب دمحبت چې څوک غرقاب دی

"۲۸۸"

په نــصيب کې دچا خاورې دچــا تخت دی

کــه افلاس دی که دولت هر يوپه بخت دی

---

(۱) اصل : نبنه

کــه پــه آه لــرئ اثــر فــرهــاد مــنشو

دشــرین لبــانــو زړه ترکــا نې سخت دی

دخـــزان داړه آخـــر بـه یـــې غـــارت کـــا

چــې پــه بـاغ کــې دغـنچې ترلي رخت دی

نور غـــمونه کلـــه زیات شـــي کله کم شي

غـــم دمیني په هر چـــاچې دی یکلُـــخت دی

په جـــهان ســـر بلندان خـــاک نشینان دي

چــې یې سوری په هـــر چـا لکه درخت دی

چــې آهن نشـــي ګـــداز څـوک به ګدازکا

زړه دیـــار چــې تر آهـــنه لا کـــرخـــت دی

شـــیرین لـــب په میومـــست دی مـــحبته

که بوسې ته یې هوس کړې دغه وخت دی

"۲۸۹"

کـــه دولـت دی روغ صـــورت دی روغ صـــورت عـجب دولـت دی

چـــې ګـــدای دیـــار ددر شـــه پـــه نصـــیب یـــې ســـلطنت دی

چـــې ګـــنج خبښ[1] په هغه ځای وي هـــغـــه ګـــنج دقـــناعـــت دی

دولـــــت هـــغه دی مـــونـــدلـــی چـــې مونـــدلی چـــا عـــزت دی

کـــاذبـــان وي بـــي ایمـــانـــه ایمـــان څـــه دی صـداقـــت دی

یـــاد دیار پـــه هـــر ســـاعـــت کړه دا طـــاعـــت دا عـــبادت دی

صـــلاح څـــه غواړې په عـــشق کې کـــار دعشـــق یې مـصلحت دی

-----------

(۱) بنخ

که ته مال دچا وانخلې هم دغه دې سخاوت دی

هغه نیک به هلونه شي چې دبدو هم صحبت دی

نیت ښه بویه وهر کار ته چې هر کار موقوف په نیت دی

په طلب دیار روان شه برکت په حرکت دی

خدای دې څوک بې پته نه کا چې بې پت دی بې حرمت دی

که حکمت غواړې عاشق شه عشق همه واړه حکمت دی

چې له عشقه څوک خارج شه خارجي دی په لعنت دی

په ژړا کړوني وریږي هرباران چې د رحمت دی

غرض دین دی که دنیا ده

محبت دی محبت دی

"۲۹۰"

دهر چاله دې دنیا داد وبیداد دی

چې څوک راغی په دنیا کې په فریاد دی

یوناداں هلک په هیڅ دی غولیدلی

دنیا دار چې ددنیا په ښادی ښاد دی

دنیا څه ده یولوګی دی یوځای شو ی

چې یې عمر منتظر دیوه با د دی

په مثال کې دادنیا لکه دریاب ده

په یوځای کې ددریاب کله استاد دی

بې بقا لکه بنا چې دحباب وي

ددنیا عمارت هسې بې بنیاد دی

چــې شه وار ددنیا تیر اکثر دې هــیر کړ
نوربــه هم کړې فــراموش چې څه دې یاد دی
څــوک بندي ددنیا مــشه مــحبته
سخ دهغه چې له دې بنده آزاد دی

"۲۹۱"

عــالم ګــیر هســـې دزلــفو دې کمــند دی
چـــې یې وینم یوجـــهان پــکی په بند دی
ته حــاجت دوصـــف څه لـرې آفــتاب یې
چې ښایست دې په تمام جهان څرګند دی
ډیــرتر خــه وایـــي شــکرو انــګبــین ته
خبردار چې ستاد شونډو څــوک په خوند دی
دجــهان شــیریني ستاتر شونډو ځــار کړم
که نــبات دی که شکرې دي که قــند دی
کار مشکل مې شه په عشق کې ولی خوښ یم
هــم پدا چې ستا خاطــر مشکل پسند دی
کـــه یوه ګړی وصال دې مــې روزی شـــي
نورنه مــلک غــوارم نه مال غوارم سوګند دی
نـــوم یې غــم دی ولی زه پــه عــشق یې بولم
چې زما خاطر په غم کې دې خورسند دی
رشـــته قــطعه مې له خـــویش واقــربــا کړه
اوس زمــا د زړه لـــه تا ســره پــیوند دی

پادشاهان که سرفراز په بادشاهی دي
محبت په تاج دمیتې سربلند دی

"۲۹۲"

عاشقي کړه که غرض دې خپل بهبود دی
په زبان د محبت کې واړه سود دی
دچا زړه دعشق له اوره خاکستر شه
چې ایرې یې مزکه ده آسمان یې دود دی
مسلمان په خفي شرک که آگاه نه وي
هم مشرک هم نصاری دی هم یهود دی
ځان یې پټ کړ ولیکن پوشیده نشه
چې د ذات یې په صفات کې یې نمود دی
په غضب وماته گوري خدایه خیر کړې
چې نن غشی د نگاه یې زهر آلود دی
زړه دیار چې سواسخت دی ترهغولا ده
که یې نرم کړې په آه هغه داؤد دی
عاشق تل لکه لرگی له غمه سوزي
ولې بوی تري چې دعشق پیداشي عود دی
په بنده گی دخپل صنم سری مولا شي
چې ایاز کا ځان په عشق هغه محمود دی
که بلا د محببت را باندې راشي
محبت یم دامې عین د زړه مقصود دی

## "۲۹۲ الف"

هـرسړی چـې لـه کعبې د زړه خبر دی
دهـغـه ړوزې هـردم حـج اکـبـر دی
کـه ضـعیف بـصر دې نه وي ښاپېرګه
پـه آفاق کې ښـکاره حسن بې لـکه نمـردی
دیـېولـه غـشو څـوک وېر وې جـانه
سـتا د غـشي په آرزو مـې زړه ځـګر دی
چـې پـه سـربې مـدام بار دتعـلق وي
تـرهـغـه انسـانه بـه ګـاوخـر دی
پـه هنر که څـوک لقمان دزماني شي
څـو چـې پوه له عشقه نـشي بـې هنر دی
تـه په شـوق یـې د نـګاه په غشو وله
مـرنی عـاشق خـودرتـه سـینه سپر دی
ورځ دې شـپه کـنلې ده چـې لاوده یې
کـه لـه خـوبه دغـفلت پاڅـې سحر دی
ګـمراه دی چې تا پـه بلـې لارې بیا یې
کـه په لارې دعـشق بـودې زنې رهـبر دی
پـه ګـتاه دمـحبت خـوګـنهکاریم
بل ګناه مې نه دی کړی خدای خبر دی

## "۲۹۳"

نـن زمـا اوسـتا دمـینی هسـې شور دی
چـې مذکورې (۱) په عـالم کې کورا کور دی
چې خورې (۲) په مخ دې زلفی کړې لاره مـې
لـه هـغه راهیـسي ترمې ترمې خور (۳) دی

-----------

(۱) مذکورې
(۲) اصل: ښورې
(۳) اصل: ښور

زنـــګ دزړه د زاهد کـــله ځـي لـه زهـــده

سپین به نه شي هغه ځیز چې اصل یې تور دی

بــــسم الله که ددیدن پــه عـــوض ســـروړې

ســـرحاضر مې دی که ستا رابـاندې پور دی

په دهـلیز چـــې دې ځـای راکړ تخت نشین شوم

هم ډلـــی[1] دی دازمـــا هـــم مې لاهـور دی

اې د عـــشق بیـــقراریـــه راشـــه یـــوســـه

ځـخو صــــبر مې پـــه زړه لاپـــاتی نور دی

ددنـــیا پــــه آزادي ځـــله نـــازیــــږې

هـــر آزاد ددې دنـــیا بـــندي دګـــور دی

نه پـــوهیږم ســـوزم زه لـــه کـــومـــه سوزه

داپوهـــیږم چې مـــې بل پـــه زړګـي اور دی

زور لـــرې دطـــبیعت محـــبت خانه

معلومیږي ستاله شعره چې د زور دی

"۲۹۴"

هرقـــدر چې ناز پـــروره ســـتا رابانديې ناز دی

زه چـــې یم عاجـز هومـره وتا وته مې نیازدی

څه جان بخش آواز وي چې څوک وایي دلبر راغـی

مـــړی چې ژوندی کاندي هـغه دغه آواز دی

عـــشق که مجازي وي مـــجـــازي ورته مه وایه

عـــین حقیقت دی کـــه رهبر ورته مجاز دی

-----------

(۱) ډیلی = دهلی

راشــه ننداره یې کــړه له شــامه تــر سحره

زړه مــې لــکه شمع په عـجب سوزو ګداز دی

څــه پوښتې زمــا او دمــحبوب احــوال نادانه

چــاته شي وایــه چـــې دمــینو سره راز دی

ســترګې دواړه ســتادی معــلمې دښکار یانو

زده حملې له دوی کاکه شاهــین دی که شهبازدی

څــه شــوکه دنــیالــوړې ژورې لــرې ډیرې

عــشق هغه هموار کاندې نشیب دی که فراز دی

خدای چې کړم عاشق زه بـل دمسازو همدم څــه کړم

عشق دی زما هر څه که همدم دی که دمساز دی

واوړم چې کلام یې شم محفوظ ترحد په هورته

څــار تر محــبته چې عـــجب سخن طراز دی

"۲۹۵"

چـــې دمیـــنې له ســاغره جرعه نــوش دی

په جهان کې هم هـغه صاحب دهـوش دی

تـــل پـــه یادکې دې مـــشغول یم تر داحـــده

چـــې مې ځــان هم له خاطره فراموش دی

ناقــصان په عشـــق فــریاد لـــکه بلـبل کا

چـــې کامل دی پروانه غوندې خاموش دی

ســاقـــې ډکه کـــړه پـــیالـــه دمـــی نابـــو

راغـــی وخت دبـــهار غـرېدنو شانوش دی

هــواسرده شــوه باران پــه تــرشّــح شــه
هــرطرف ته درحمت درياب په جوش دی
همـــكـــنار هـــغه كـــسان دي لـــه راحـــته
چـــې دلبرې [۱] هـــم بغل وهـم آغوش دی
ســـخاوت كړه سخـــاوت كـــه هنر مـــنديې
داهـــنر دهر يوعيـــب پـــرده پـــوش دی
راشـــه ما پخـــپله تـــوره سبـــكـــبار كـــړه
بـــې له تا داســـررابانديې بارِ په دوش دی
دهـــرچـــا صـــدا چـــې واورم وايم ســـتاده
هـــرساعت زما چـــې ستا په آواز گوش دی
محـــبت په مخ دخپـــلى گلرخسارې
دبلبل په رنگ له شوقه په خروش دی

"۲۹٦"

هربنده چې خپل خاوند ته په زړه صـــاف دی
كه تقصـــير ترې چـــرې وشي هـــم معـــاف دی
هغه كس چې په زړه صاف نه وي مخلوق ته
كـــه درست عـــمر عدالـــت كانا انصاف دی
كـــه قـــبول كړې دين دعـــشق درته به يوشي
داتـــرمـــنځ چې دمـــذهـــبو اخـــتلاف دی
پـــه برقع دنـــنه ســـتاوروڅـــې مـــې وژنـــي
عـــجب دادی چې شمـــشير دې په غلاف دی

---------------
(۱) دلبرې = دلبريې

خــود په یار فــرق دعــشق و هــوس وکــا

ددې ســره ناسره پخــپله یار صــراف دی

لــه هــر لــوري خلــقې دي درتــه مــاتې

چې شهرت دښایست توب دې په اطراف دی

کــه اودل[1] زده دواړو ولی بیــایو نــه دي

چــې ډیر فــرق د زردوزوبــور یاباف دی

کــه مات نه کا دخود ی بت طواف کړونی

دکعــبې هــم بتــخانې غــوندې طــواف دی

چــې له خدایه ملــقب په محبت شوم

مــاپــدا دمــحبت وهلــی لاف دی

"۲۹۷"

د افــلاس باعــث مې واز ماوه نفاق دی

ددولــت سبب مــې ولیــد اتفــاق دی

کــه خاکــي یې په فــرمــان دبوتراب شه

چــې دپلار په حکم نه وي زویه عاق دی

جــام په لاس معشوقه راغله مــی پرســته

اې زمــا تــقوی پــرهــیزه الــفراق دی

تــسلي یې په څــه رنــګه په پــیغام شــي

زمــا زړه چــې ددیدار پــه اشــتیاق دی

لــکه ګل چې رنګ وبوی یې شتاب لاړشي

ددنــیا هــسې څــوورځې طــمطراق دی

---------

(۱) اوبدل

کــه گټــنه دې لــیکلې پــــه جــبین ده

**یوبــه سي بازی که جفت دی اوکه طـاق دی**

چــې دچـــا هــغه پـري شــوه مــسخره

دسلیمان په شان بادشاه ددرست آفاق دی

اشـــارت دی کــفایت دعـــراق آس تــه

وتــبوته دهــندو ضــرب وشــلاق دی

ښــایسته نه دی هـــغه چې خوی یې بدوي

بدصورت نه دیهغه چې نیک اخلاق دی

کــریم کله لـــه کرمه خـــپل خـــالي وي

غم درزق ولې کوې چې خدای ارزاق دی

تل ســبق دمحــبت لــولم په زړه کې

محــبت دزړه مې ښکلی په اوراق دی

"۲۹۸"

چـــې راکړی یې دلبــر ترک اوزبــک دی

داهــم رابانــدی یوجــور دفــلک دی

لــکه کا نی هــسې ســخت زړه دمعشوقو

وعـــاشقــو لــره کــانـی دمــحک دی

دعـــاشق په بیــخودي څـه تـعجـب کړې

عـــاشق هرکـــله له ځـانه خپله ورک دی

پــه غــارت دزړه مې تل وي مــلاتــړلـې

تــه به وایـــې افــریدی دی یا ختک دی

هغه لوی مرددی چې ځان وعشق ته ټینګ کا

چې وعشق ته نشي ټینګ هغه مردک دی

کــه يې ګــورې سره درست پــاره پاره وي

هــغه زړه چې لکه ګــل په وینو ډک دی

ســتا بنده يم اې پــه حــسن کــې مــليحه

پــرورش مــې ســتا دحسن په نمک دی

رقيــبان کــه خــنلږ(۱) تــورې ومــاتــه

زه مــلنګ يم ما خــخه هــم يو کوتک دی

ته پــه عشق يې يقين نه کړې بدګــمانه

محبت عاشق صــادق دی بلاشک دی

"۲۹۹"

عاشق نه دی که يې عشق په بوی ورنګ دی

بوالهوس دی لــه عاشقه ډير پــه خــنبک دی

عــاشــقان يې دبــې نــنګ په نامه بــولي

چــې په مېــنه څــوک پابند دنام وننګ دی

ملــنګ نه دی چــې ايرې په صــورت مږي

کــه ايرې دعــشق له اوره شــې ملنګ دی

بــې دمیــنې لــه صــيقله نه صــافــيږي

دهــر چــاپه آئــينه د زړه چــې زنــګ دی

زړه په هــسې زوروحــکم رانــه غــواړي

ته بــه وايې چــې پــه مــايې داقــلنګ دی

---------

(۱) خنلږوي

تـــور بانه داســـتا چـــې دي دســـته دغـشو

لـــګیدلـی پــه زړه مـــې هـــر خـــدنګ دی

صـــلح کړې هغه شـــوخ راسره تـــن هـــم

لـــکه وړمه پرون جـنګ وه هسې جنګ دی

ســـرتر پایه معـــطر چـــې خـــدای پـــیداکړ

بـــې لونـــګ یې بوی دخولې لکه لونګ دی

چـــې په اور دمینې ځان سیزي له شوقه

محـــبت دی یاستــــی ده یا پتنګ دی

"۳۰۰"

دهـــرشـــي کلــه کـــمال کلــه زوال دی

خویو خدای دی چې هروخت په یوه حال دی

ستا په غم کې مې په حـــال څـه څـه تیریږي

نه پـــوښتې مې هومره هم چې څه دې حال دی

دګـــلابو پـــه ګـــل داپـــرخـــه پـــرتـــه ده

کـــه ګلرو یه ستا په ســـرباند سپین شال دی

کـــه عالم دځـــوارلس علـــمو شي ناقص وي

ستا په عـشق چې وي کامل صاحب کمال دی

خـــوخـــبرې دوه پــــه دوه خـــودرنه غوارم

نـــورله تا مـــې نه ځـــواب دی نه ســـوال دی

هـــر ذیروح دی پیدا شـــوی مـــرګ دپاره

که سل کاله وي ژوندی مـــرګ یې مـآل دی

راشــه زرپه تجــلی مې خــاکــستر کړه
اوس ژونــدون رابانــدی بې لــه تا وبال دی
څــخو پوه شــه په کــلام دشــاعــرانــو
چــې دهـر شــاعر په څــه رنــګه مـقال دی
نــصحیت رنګین رحــمن لری پـه شعر کې
اومــرزالـــه تــصوفــه مــالا مــال دی
دخــوشحال پـــه ســفینه څــخورندي ده
لــه شکــوې دزمــانې څــه پکــې قــال دی
مــحبت په هرانــداز چــې ویل کــاندی
هم رحمن دی هم مرزادی هم خوشحال دی

"۳۰۱"

چــې دا نوم محبت خان مې دازل دی تــرابــده مــحبت راسره مــل د ی
بــیوفــا دی عــبارت لــه مــنافــقه مــنافق دخدای رسول همیشه غل دی
لــه بدبــو یه خوشبو یې به پیدا نشې ګــل به نشې دګلابو چې بصل دی
خــبردار چې دنیکې طــمع ونه کړې لــه بدذاته چې په اصل یې خلل دی
داترخــه خواږه راغــلي دي له ځایه پــه دنیاکې هــم حنظل دی هم عسل دی
پــه جاري دریاب تازه اوبه رادرومي عــمرنه راځی بیانوی خوځــل چل دی
په اوبو چې څوک کاغول په مــخ یې ورشي وهــرچاته چې پېښیږي خپل عمل دی
زرکې بنیه [1] خپله ترحد په هــورته مرده چې له بازه کړې بازی خوستااجل دی
نــورڅه نشــته لــه ازلــه ترابــده
محبت دی که آخر دی که اول دی

---------

(۱) پښه

"۳۰۲"

هره ورځ وهر شپه په فکر ستا مې زړه مشغول دی

که سباده که بیگاده زما هم دغه معمول دی

که مې سرغوارې دلبره که مې مال غوارې حاضریم

ته چې هر حکم په ما کړې په لیمه زما قبول دی

چې عشق نه گني حکمت ځوک معلومات ورڅخه نشته

که حکیم هم داویل کادغه حرف یې نامعقول دی

چې مدام دعشق له غمه یې په مخ اوښې بهیږي

دباران درحمت تل هم په هغه باندې نزول دی

که خبرله حسن وعشق نه یې اوس زه دې خبرکړم

که مومن یې باور وکړه اول خدای دویم رسول دی

عشق واجب دی ثابت شوی له آیته له حدیثه

که پدامسله بحث څه ملا کاندي فضول دی

تر هغه به په رتبه دشهادت کې څوک لوی نه وي

چې دښکلیو دغمزې ودعشوې په تیغ مقتول دی

دانکار خبرې تل کړې په اقرار هیچرې نشوې

هم هغه کوي کلام چې له قدیمه ستا معمول دی

په فراق کې دې له غمه په وصال ستا له انکاره

محبت په زړه ملول لکه چې وه هسې ملول دی

"۳۰۳"

که سبادی که بیگاه وخت دعوام دی

دخاصانو زلف ورخ دی صبح وشام دی

هــرمولا چې په جــهان دی ســتا بنده دی

هــرآزاد چــې په عــالم دی ســتا غلام دی

داســپوږمی دغــره له ســره را ښکاره شوه

کــه مې یارجلــوه ګرشوی په خپل بام دی

خــپل مسجودته خــود مې زړه قبله نماشه

حــاجي هورته شه کــعبی ته مــې سلام دی

هــریو صــیدپــکی پخــپله راپــریــو زي

داحــلقه حلــقه ګــیسودې عــجب دام دی

کــه هر څــوپه علم وعمر سړی پــوخ شي

چــې په زړه یې دعــشق اوربل نه وي خام دی

دادچــا دکــور رڼــالــه ورایــه راغــله

چــې تــرمخ یــې خــجل مــاه تمــام دی

مــی دعــشق مې چې دي سکلي [1]له الستـه

څکه شــوق مــې وشــراب وته مــدام دی

اقــتداور پــسي کانئ مقتــدیانــو

محبــت دعاشــقانو نــن امام دی

"۳۰۴"

زاهــدځه شو که شپه روڼه کاندي بــوم دی

پــه ســحر یې مخ ته مه ګــوره چــې شوم دی

داپــوهیږم چــې مــجذوب دیوجــاذب یم

نــه پوهیږم چې صــاحب د کشش کوم دی

---------

(۱) چنبلي

ته خادم یې په خدمت یې قاصر مشه

که قبول کایاپې نه کاندي مخدوم دی

پتیدی [1]شي کله غل له نظر بازو

ستا احوال راته له سترګو دې معلوم دی

چې پداجهان د زړه سترګې یې نه وي

له دیداره په هغه جهان محروم دی

داظالم مظلوم یوازې زه ته نه یو

معشوق هر کله ظالم عاشق مظلوم دی

ملک ومال زرو دولت مې پکار نه دی

الهی راکړې هغه چې عشق یې نوم دی

عشق مې عقل یوړ خلاص شوم له تکلیفه

چې سړی بیرون له عقله شه معصوم دی

په شهید دمیني تل رحمت وریږي

چې شهید په تیغ دمیني شه مرحوم دی

چامونډلی دی آرام په محبت کې

که آرام په محبت غواړې معدوم دی

"۳۰۵"

چې له فهمه وي بیرون هغه جانان دی

هرچې درغی په فهم ستاګمان دی

که ځان وباسې له دې کون ومکانه

خپود به وګورې چې ځای دې لا مکان دی

---

(۱) پتیدای

کـــه شـــي پـــټ دبې بـــصر وتـــر نظـــره

نور دې ځـــای لکه عیسی پاس په آسمان دی

داچـــې خلـقوته لیده شـــي ټـــول فـــاني دي

چـــې بـقا لـــري ترســـترګوېې پـنهان دی

کـــه هر ځـــو څـــهره یې پـــټه په نـــقاب ده

ولـــې حسن یې لـــکه نمـــرهسې تابان دی

مـــخ یې پـــټ اوپه جـــلوه یې جلوه ګـردی

کـــه قمر دی اوکـــه مـــهر درخـــشان دی

لـه جـــهانه دې بـــیرون بـې شـــک وریـــبه

اولـــه نـــوره یې روښـــان تـــمام جـــهان دی

لـــیده نشي په هـــیڅ شـــان دسر پـــه سترګو

که دې زړه ســـترګې پـیداکړې نمایان دی

د بـــیرنګ په نـــیرنـــګي رنګـــین دي واړه

که صد برګ دی که لالا[1] که نافرمـان دی

بـــوی یې نـــشته اوپه بـــوی یې مـعـــطر دی

یاسمن دی که سـمن دی کـــه ریـــحان دی

هـــر یوه تـــه یې نـــګهت دی رســـیدلـــی

که عـــبیر دی کـــه عـــنبر که زعـفران دی

ســـترګی نه لري لیـــکن پـــه توره شـــپه کې

دواړه مـــیرې احـــوال ورتـــه عـیان دی

غـــوږې نشـــته ولیـــکن که څوک کلام کا

دخـــبرو یـــې ســـامع پـــه هـــر زمـان دی

--------

(۱) لاله

ژبــه نه لري لیــکن که څـوک ســایل وي
وځــواب ته یــې حــاظــر په هــغه آن دی
لاس یې نشــته ولې ګــوره یې قــدرت ته
چــې هــرکارد ده په لاس د درست جهان دی
بــې نــشانه دی لیــکن که فـــهم وکړې
دامــخلـوق دجــهان ټــول دده نشان دی
پــه یوشــان دی لیــکن بیا که یې ګــورې
هــره ورځ وهــره شپه پــه نوي شــان دی
هــرالحان هــره نغــمه چــې اوریــده شي
هــم دده نغـــمه ده هـــم دده الـحان دی
هــیڅــوک نه کــانــدي کلام پــخپله ژبه
هــرګــویا چــې ویــل کــاد ده زبـان دی
لـــه ازلـــه تـــرابــده نــه زړیـــږي
پــه ځـواني لکه چې وه هــم هسې ځوان دی
غــرض داچې هر څه دی دی نورڅه نشته
ځــکه کړی دابــیان مــحبت خــان دی

"۳۰۶"

که هــوښیار دی کــه مــجنون دی دهـــر یــووتــا تــه یــون دی
ســـتادمیـــنې ډکـــی جـــانــه عــین پــه زړه زمــا زرغـــون دی
څــه پــوښــتې قــیامت لــه مــانه کـــه قیامت دی خـــوبـیلتون دی
پــه عشق مــرګ غـــواړم له خدایه مـــرګ په مــینه عین ژوندون دی

پـه نکـریزو لاس دې رنـګ کـړ یـاد چـا دېکړی خـون دی
آخـر خبښ[1] پـه ځـای به پرېږدي مـال دې زیات که ترقـارون دی
نـن د چـاغـم دی رابـانـدې چـې مـې هـسې حال زبون دی
لـه چـرې دبـیر حمـې دي خوږ زمـا هـمه لـړ مـون دی
چـې عـشق نه لـري کم ذات وي کـه مـغل دی که پـښتون دی
دادچـا پـه فـکر خـدایـه سـرمـې ایـښی په زنګـون دی
چـې له عـشقه څـوک مـنکروي هـم مـردود دی هـم ملعون دی

محـبت مې پـه دوه کـونه
رهـنمای اور هـنمـون دی

"۳۰۷"

چـې په زړه دې قبول کړی دعـشق دین دی
محـبته سـتا پـه پـوهـه آفـریـن دی
تریخ کـلام چـې دې په ژبه راشي خوږشي
خدای ډک کړی ستاپه خوله کې انګبین دی
تـه به وایې چې په ستوریو کې سـپوږمی ده
پـه خوبـانو کې چې ناست مې مه جبین دی
په آسـمان افتـخارمـزکه څـنګه نه کـا
چـې هـغه خورشید طلـعت نمرد زمین دی
کـه هر څـوواړه سرې پـه صـورت یودي
آدم نـشي چـې یې خـوی دشیاطـین دی
کـه نـظر لـرې وفـرق تـه یـې ګـوره
پـه یوه رحـمت وریـږي بـل لـعین دی

--------
(۱) ښخ

دمزري خصلت به هڅوپيدا نه کا
که په شکل د مزري شيرد قالين دی
کوم عاشق هسې وهلی دی په لته
چې له ضربه به يې مخ ټول دآسمان شين دی
نيرنګي کوي بيان چې دبيرنګي
محبته ستا کلام څکه رنګين دی

"۳۰۸"

دقفس عندليب څه زده بوستان څه دی
خارستان وي په څه رنګ ګلستان څه دی
دګلرخ په تصوريم نه پوهيږم
چې بهار کوم يوموسم وي خزان څه دی
که ترمنځه يې دمينې فرق نه وي
ترحيوانه امتياز دانسان څه دی
داناصح نصحيت مست کله غوږ باسي
ودانا وته کلام دنادان څه دی
چې آفتاب دمزکې ته يې ورته ښايي
که په فخر مزکه وايي آسمان څه دی
چې کثرت دخپلو اوښو ګورم وايم
بې مايه قهر درياب دی باران څه دی
سرمدي جهان دعشق لکه غقبی وي
دهغه جهان په مخ داجهان څه دی

مـــدام مـــینی رســـتمان دي پـــرزولـــي

چـــې عـــشق راشي په کښتي پهلوان څه د ی

جـــام په لاس ناســـته شـــها درته تر څنګه

مـــحبته نـــور په زړه دې ارمـــان څـــه دی

"۳۰۹"

کوم ســـړي مدهوش دعشق په شراب نه دی

زړه دې کـــوم چې يې لـــه غـــمه کباب نه دی

بیـــداري يوپلـــو هـــسې کـــم نـــصيب يم

چـــې ديدارې میـــسرمې پـــه خـــواب نه دی

چـــې پـــه مینه کې څوک بې سروسامان شه

هـــم هغه لـــری اســـباب بې اسباب نه دی

چې يې خدای په عاشقانو کښـــې حساب کړه

وهـــغه ته غـــم په ورځ دحـــساب نـــه دی

دشـــنهي نـــغمه دلکـــشه تـــرې راخیـــږي

دا آواز دربـــاب خـــود درباب نـــه دی

پـــه کتاب کې چـــې دعـــشق خبرې نه وي

غه[1]پـــوتي ده دهنـــد وانـــو کـــتاب نه دی

چـــې طوفـــان دخـــپلو اوښـــو ګـــورم وایم

چـــې تردې دريابه لـــوی بـــل درياب نه دی

پـــه بهار کـــې چـــې توبه لـــه مـــینو شي کا

دهـــغه عـــقل خـــطا دی صـــواب نه دی

-----------

(۱) غه = هغه

دهـــستي پـــرده کـــړه لـــرې مـــحـــبته
ستا ديار تر مينځه نور هيڅ حجاب نه دی

"۳۱۰"

چـــې آزار دعـــشق صـــحت دی آزار نه دی
تروبـــيمارې هم تندرســـت دی بيـــمار نه دی
يـــار هـــغه دی چـــې ويـــل ديار قبـــول کا
يار پـــه خـــولـــه چـــې داغيار شي څـــه يار نه دی
پـــه دنيا کې هر چه کار دی خود دعشق دی
بـــې لـــه عشقه چې نور کار دی څه کار نه دی
کـــه عاقل ته ګران کارونه ګران ښکار يږي
وعاشـــق ته هـــر دشـــوار هـــيڅ دشوار نه دی
بيدار هـــغه دی چـــې زړه يې غـــافل نه دی
کـــه غـــفلت لـــري په زړه کـــې بـــيدار نه دی
دنـــيا مـــکردی حديـــث ولـــوله ورشـــه
کـــه زمـــا پـــه ويـــنا ســـتا اعـــتبار نـــه دی
مې دعشق سکه [1]چې پـــه ورځ دحساب خدای ړو
داګـــناه دګـــنا هـــونـــو پـــه شـــمار نه دی
کـــه عالم وي هـــم عامـــل دڅوارلس علمو
چـــې عـــشق نه لـري ګـــمراه دی په لا رنه دی
کـــه ديـنـــداربې مـــحبت وي مـــحبته
بې شـــبهې هغه کافر دی ديندار نه دی

---------

(۱) چبنه

"۳۱۱"

پــوهیدم چــې کار دمینې څــه ګران دی
چې مې ولید ډیر مــشکل دی آســان نه دی
عــاشق مه ګڼه صــحیح سالم چې عشق یې
لـــوی مرض دی دمــرض که پــه شان نه دی
مــخ دیار لــکه نمــراې رنده په ستر ګــو
اشــکال را دې کـــه وتاته عــیان نــه دی
حــیرت بخــش د آئیــنی نه یــې یــوازې
هسې څوک دی چې په مخ دې حیران نه دی
ســتاله غــمه لاله رخــې ګــلرخــسارې
کوم یوګـل دی چې یې څیرې ګریوان نه دی
لکــه اوښ چــې بې مهار دچـا پــه لاس وي
پـــه قــضاپسې دی څــوک چــې روان نه دی
غــم یې هسې په جــهان کې عــالم کیږ دي[1]
چـــاونه وې چـــې یې غــم مې په ځان نه دی
چـــې یې ســترګي وي د زړه هغه یې ویني
جــهان عــشق دی دا جهان څه جهان نه د ی
چـــې دیار په غـــم پریشان وي مــحبته
خـــاطر جمع د هغه دی پریشان نه دی

"۳۱۲"

ســتاکرم لکه په مــاوه هــسې نه دی لـــکه مهر دې پخواوه هسې نه دی

-----------

(۱) کښېږدي

له اقــوال وله افـعاله یې پــوهیږم چــې آشنا لــکه اشناوه هسې نه دی
پیالـه نوشه کړه شاید چــې زړه یې نرم شه پـه سختي لــکه ملاوه هسې نه دی
درقــیب صحبت اثر دربـاندی وکړ لکه خوی خصلت چې ستاوه هسې نه دی
پــه کاســد بازار ددې ناقـدر دانو لــکه قدر چــې زما وه هسې نه دی
یار بیکار اقـرار دنن کړنن چې ګورم پـه وعـده لکه بیګاه وه هسې نه دی
مـقرر چا جفاکارې زړه یې واخیست لــکه یار چې بیوفــاوه هسې نه دی
په راتلــه دې نن قـرارشه خلق واړه شور پرون لــکه برپاوه هسې نه دی
شکر لب کوم یوپنهان له دې طوطي شه
محبــت لـکه ګـو یاوه هــسې نه دی

"۳۱۳"

پــه ښــایست کې بې مثال وبې همتای دی
ســرتــر پایه زمـا یارقــدرت دخــدای دی
په طلب کې که دخــدای یې زړه رهبرکړه
چــې هــم زړه دخدای دلارې رهــنمای دی
قــافــله دعــمر یون کــاندی خامــو شه
څه کاروان دی چــې رفــتن یې بــیداری دی
یار کــه لاړ زمــا لـه زړه خــونه دی تلـی
پـه خــپل ځای لـکه چې وه په هغه ځای دی
بادشاهــی کاندی مــدام چې ستا ګـدای ته
ددوال ســوری دې ســوری دهــمای دی
یوبادشــاه بـه ورســره سـیالي ونــه کــا
شــان شوکت لیــدلی ماســتا دګــدای دی

په نسب سره حاکم محکوم بیلیږي

کنه یودی کار گذار که کارفرمای دی

په آفتاب لکه جهان چې منور شي

آرایش دزړه موقوف په دلآرای دی

کار دعشق په لاس ونښپو[1] چا نه د ی کړی

محبته ځوان دکار بې دست وپای دی

"۳۱۴"

چې جوهر دوفا نه لري لاشي دی په صفت تر بیوفانه به سپی دی

مړنی کله سړی شي په جنگونو چې له عشقه مقابل شي مړنی دی

لیونی دعشق هوښیار په حقیقت وي اوهوښیار چې ددنیا دی لیونی دی

چې لاس پورته له دنیا شه واړه یودی جام د زروکه دخاورو کنډولی دی

دعاشق تنبل شپیلی آه وناله ده چې څوک بل تنبل شپیلی وهي شپیلی دی

ماته څه وایې ناصحه زړه مې پوه کړه مست خو دی په هرشاعت دعشق په می دی

زه یوازې شاکي نه یم ستاله جوره په فریاددې که سپین ږیری که ځلمی دی

بیگانه له ما مخلوق شه ستا په عشق کې هرسړی چې پرون خپل وه نن پردی دی

چې یې نوم محبت خان شه یقین کاندې

پیدا شوی محبت دپاره دی دی

"۳۱۵"

راشه ساقي وخت دنوبهار راغلی دی

ډک کړه جام چې فصل دگلزار راغلی دی

سرتر ښپو چې شوم لکه گلزار په داغ دعشق

نورمې نندارې ته زما یار راغلی دی

---------

(۱) پښو

بیامې استخوان به لـګد کوب کاندي چې بیا

سـور په آس دناز هـغه شهسوار راغلی دی

زړونه بـه دخلـقو کا پایـمال لـکه میږي

یارچې نـن له خیاله په رفـتار راغـلی دی

مه ځه ننداړې ته یې دسترګو چې هر ځـوک

روغ کـه هـلته تلی دی بـیمار راغـلی دی

ګـوره شوه اوریځ سـاقي نظر کړه په آسمان

مـی راوړه بـسیار ابر بـسیار راغلـی دی

بـیا یـې په کـشش دلبره راوسـته ترمـا

هـرچرې دازړه مـې خپل پـکار راغلی دی

یـارکه له اغـیاره نه بیـلیږي څه عـجب

ګـل سره مـدام له ځـانه خار راغـلی دی

کـوم آئینه روی شه مـقابل د محبت

نن لکه طوطی چې په ګفتار راغلی دی

"۳۱۶"

تـه به کـله هـیر وې هغـه وګـړی

چـې یې عمر ستا په یاد کې وي تیر کړی

چـا په زړه خپل درد وغـم ددې اخیستی

چـې تا عـیش عشرت نه دی وله ورکړی

هـم پداسـبب هـر څـه غـوارم لـه تانه

چـې پوهـیږم ته په هـیڅ نه یې نیمګړی

هـيخ طالب په ګـرزيده نه ستړی کيږي

پـه طلـب ديار که نشي پـه زړه سـتړی

هـرعاشق چې په وصال ښادی مرګ نشي

څوژوندی وي دمـعشوق وي پـوروړی

چـې دعشق له اوره سـوی دزړه پـيدا کا

لـکه شمـع لاژوندی شي سـر پـريکړی

زنـده دل په دوه جـهانه ژوندی شماره

مـرده دل پـه دواړه کـونه ګـنه مړی

بـيلتانه مـې په خاطر خواږه ترخه کړل

کـه پـه خولـه کړم ګـبينه نشي رانغړی

زړه دې کوه دی پـه مثال زه لکه کاه يم

تعجب دی چې په غره دروند شي خسړی

په زنځـير به يې دوسـپنوبند نه کړې

محـبت له بويه سـتا دزلـفو پړی

"۳۱۷"

شـی به نشي چې يې خدای کانـدي لاشي

چـرته شـوی دی شپين ږيري بـيا ځـلمی

رصـاص زرخاورې اکـسير شي پـه کيميا

بدسـړی په هـيخ شان نـشي نيک سـړی

خـوک کـولی شي اوبه پـه ډانګ جـدا

پـه وهـل شـړل به خپـل نشـي پـردی

نه خـــوري هـــيڅ په خپــله ګټه ريزه خور

دمـــزري راوړي خـــصلت لـــه مـــومه سپی

لـــه نامـــرده طمـــع مـــه کـــړه دمـــردی

چـــالـــيدلـــی دی غـــوولـــنی مـــړنـــی

ونـــالـــې وتـــه نـــظر کـــړه دبلـــبل

دعـــاشـــق عجـــب اثـــر لـــري زګـــيروی

چـــې ديار په محبـــت کـــې شه يکبين

محبت په درست جـــهان کې ويني دی

"۳۱۸"

ګـــل جلوه کړه عـــندليب په چـــغار راغـــی

ســـاقي ډکه کړه پـــياله چـــې بـــهار راغـــی

اوريـــځ ګوره په آســـمان باندې ښکاره شوه

شـــراب ډيـــر راوړه چـــې ابربـــسيار راغـــی

په ګـــيسو ســـنبل په خوله غنچه په رنګ ګل

ســـراپاګـــلزار يعـــنی چـــې نګـــار راغـــی

ټول غـــمونه مې ده واخيسته پـــه ځـــان خـــپل

زړه زمـــا پـــه بـــدې ورځـــې پـــکار راغی

دجـــهان دونـــو پـــانې پـــه شـــمار راغـــلې

ولي غـــم دعـــاشـــق کـــله په شـــمار راغی

پـــه را تله يې دخـــاطر غـــوټې مـــې واشوې

هـــيڅ مشکل مې پاتې نه شه چـــې يار راغی

تــرپـــزونه پــورې غــم میــلمه زمــا وه
نــن میلمه شه درقــیب چــې دلـدار راغــی
هــغه خاورې مې رانــجه کــړلې دسترګــو
لــه پلــوه يې هــر يو چــې غــبار را غی
نــن یار راغــی پــه بازار دې مــحبته
شکر کړه دخدای چې ستا خریدار راغی

"۳۱۹"

سرچې ترې نثارمې کړ جانان مــې دی موندلی
وه خــوګران بهاولی ارزان مــې دی مــوندلی
مــاوې چې مشکل سره به لاس لـره مې راشي
شــکردی الله چــې اســان مــې دی مــوندلی
هــم پداجهان کې دحــباب پــه شــان یارانو
بله مــز که خپله بل آســمان می دی مــوندلی
شان چې زما ویني بادشاهان هم په غیرت شي
ستا په ګدایي کې هسې شان مې دی موندلی
هــرڅه زما خپل شو چې دعــشق لــه برکته
هــم هغه جــهان هــم داجهان مې دی مــوندلی
سرې شوندې دیارد خدای له فــضله مې روزي شوې
هــم ګوهر مې بیا موند هم مرجان مې دی موندلی
شــه اعراف هم دلته په ماتیر چې په دنیا کې
کــله مــې وصال کله هجران مې دی موندلی

ښـــپې اباڼ ســــرتورا وتن په خاورو ټول لړلی

دا پـــه عاشقي ســروسامان مــې دی موندلی

یار چې ثابت ولیدم په عشق کې دایې ووې

ځوان دمحبت محبت خان مې دی موندلی

"۳۲۰"

ز ه خـــو دنه یم په دلــبرو پسې تللی پـه کمـند دزلفو دوی یمه راښکلی

چې په دام کې یې ورکیوتم [۱]داهـــسې خدایه څوک مې په نظروه کیو تلی[۲]

که مقبول یم که مرد ودیم خوهـــم ستایم پـــه دوه کونه ســتالمن مې دی نیولی

بـــیرته بیاراغـــلی نه دی‌هــلو چرې چې دیارترکوڅې څوک دی ورغلی

که له زړه دخلقو پریوزم غم مې نشته چـــې دیار لـــه زړه نه نه یم پریوتلی

نه پـــه دم نه په دارو دچـــارغیـــرې بـې له وصـلـه دفـــراق بـلا وهلی

چـــې پدارنګـــه حیران دی سرتر پایه آئـــینی شایــد جــمال ددې لـــیدلی

هـــغه بیا طالب دشـــهد و شکر نشه چې دشونډو یې لذت دی چاڅکلی

خوی[۳]هم ستا وخوږفریب کنه تراوسه

مـــحبت لـــه ســـره چا نه وه ټګـــلی

"۳۲۱"

ته که دســـتم هرڅو په ماشې شـــدت کړونی

زه چـــې ستا شاکریم نه بـه شم شکایت کړونی

ذکـــر خپل وســـتا کړم دفرهـــاد ودشیر ینې

تیرې شوې قصی زه یې نه یم حکایت کړونی

عـــشق ته چې واجب وفرض وایي بې لـــه مانه

څـــوک دی ددې هسې روایـــت کـــړونی

---

(۱) کنبېوتم

(۲) کنبېوتلی

(۳) خویې

پــــندې [۱] راکـــوه لاله[۲] پتايې چې نظـر شه
لـــکه زه وم هـــسې شه زما نصحيت کړونی
خوچې دساقي پـه مخ نظرې [۳] شه ميخوارشه
شيخ چې وه وماوته هــروخت ملامت کړونی
سـعی بيهوده ده هـــم هـــغه ورته رســيږي
هــرچې وهر چاوته قسمت کا قسمت کړونی
هيــــڅ اثر دنــوح ويل په زوی يـــې ونه کړه
**څــوک دی بې لـه خدايه دګمراه هدايت کړونی**
غــوارم چــې داروردرنـــځ دمينې ترې ومــاته
دريــغه عاجـــزي ظاهره کا طـبابت کړونی
نــوم دمينې اخلی واړه ولی په جـهان کې
بې له محبته دی بل څوک محبت کړونی

**"۳۲۲"**

يامدام داسرمې خاورې ستا د در وی — ياد درخاورې دې تل زمـا په سروی
کــه چا نه کتــلی مه کتـــی ومــاته — خود يوصــاحب نظر پــه مـانظر وی
يوڅــله دې رقـيب وايستی له کوره — چــې زما پرې خواسره اويخ تېروی
مــابــه زړه درکړی نـــه وه دلآزاره — **پـه جهان کې که بل تاغوندې دلبر وی**
مکلف شوم چې لـه ځانه خبردارشوم — کشکې زه لـــه خپله ځـانه بيخبروی
داکشش د زړه دچــابه پــکار نه وه — که مــوندل دمعشوقې په زور و زروی
لـــه مـزرو سره زما به هـــمسري وه — لکه سپی که په کوڅه دې مې ګذروی

---

(۱) پندې = پندېې
(۲) راله
(۳) نظرې = نظرېې

مـــاخواري قـبوله کړې به دعشق وه   که ترداهم زيات احوال مې لا بتر وی

مــقرر بــه جـنتي وی مــحبــته

**خوله دیار که دې روزی لکه کوثر وی**

**"۳۲۳"**

کـــشکې يوځـــله وصال د ښـکليو وشوی

بـــيا عـــدم وته که تـلی روان هلــه شوی

چې اســان شوی رســيدل تـرياره کشکې

بـــال وپرځان لـه پــيداکــړلی مـرغه شوی

لـکه شمع اورد عشق په زړه حـاصل کړی

سـرتــر پايه له ګــدازه يــې اوبــه شــوی

يوساعت هــم ژوندی وی په هــجران کې

نيست نابــود پـه اول ورځ دبيــلتانه شوی

لاپــــخـــوا ترجـــدايي پـه وصـــل ومـــړي

چـــې دهـجر درد ودوک لـه پاتې نه شوی

نورځـه نـــاوريدی پـه ديــن وپــه دنيا کې

خـــود مـــيني لـه کـــلامـــه اوريـــده شوی

يا په تور لـــيمه عـــاشق ړوند وی په ستر ګو

يـــاد يار ځـــای يې په سترګـو په ليمه شوی

دريـــغه هــسې دارونشـــته پـه جــهان کې

چې بــې وصله دفـراق له رنځه ښـه شوی

يوځـــله خويـــار زما په خولــه شوی دريغـه

چـې په وهيره درقيب خاوري په خوله شوی

یا له یاره سره ملاست په یو پالنگ وی

محــبته یاد مرگ په خوب اوده شوی

"۳۲۴"

که وهر چــا ځـــخه [۱] مــهر دســلیمان وی [۲]

مې باید هر څوک بادشاه ددرست جهان وی

هــرســـړي بــه پــیــغمبر یــابــه ولــي وه

پــه دنیا کــې که ســـړي واړه یکسان وی

دآشـــیاپه حــقیقت هـــر څــوک به پــوه وه

کــه پــه علــم وپه حکمت لــکه لقمان وی

دعـــراق دآس بـــه څـــه قـــدر وقـــیمت وه

کــه داخـــره وقـــچـــرواړه عـــراقـیان وی

چـــاغـــنم بـــه گـــران بهـــا اخیـــسته ځــله

کـــه دغـــوبـــتو پــه مـــثال غنم ارزان وی

فـــراغـــته واړه ناســـت بـــه پــه آســمان وو

دهـــر چـــا که دعیسی په ځـــای مکان وی

څـــوک بـــه لعـــلو لـره ته وبـــدخـــشان ته

کـــوتي لعل که لـــکه لـــعل دبـــدخشان وی

لـــتهول بـــه چـــا خـــواړه خـــواړه امـــونـــه

کـــال کـــونړی که لـــکه ام دهـــندوستان وی

ورځ روښـــانـــه بـــه دچـــا نـــه وه پــــکاره

کـــه په شـــپه توره رڼـــا دورځ پـــه شان وی

---

(۱) اصل : سخه

(۲) وای

قــدردان د محــبت بـــه دکـــلام ورو

که خوشحال ژوندی په دهر یارحمن وی

## ي

"۳۲۵"

لـــوى تادان يې چـــې په لارې دخـــنداخـــې

پـــه ژړا راغـــلې اوبـــيا بـــه پـــه ژړا ځې

بې بصر ې [1] هـــيڅ نه وينې حيران ناست يې

بت په شان څه شوګه سترګې دې دي وازې

نـــه دې څـــه راوړي دي نه به څـــه يوســـې

چـــې تش لاس راغلى يې تش لاس به بيا ځې

---

(۱) بصري = بصري

یــوه ورخ بــه آخــر پــریوزې وګــړنګ ته

چـــې هرلـــورو ته په شـــان دنابیـــنا ځې

زوړ شـــوې اوس خوقـــدم واچـــوه دوړاندې

عـــقل وخـــورې لاتر څو به پسې شا ځې

چـــې وزر دالـــواتـــو دې پـــیدا نـــه کـــړه

پـــه څـــه رنګ به له هـوسه پـه هوا ځې

زړه تـــه نه ګـــورې نظر کړې هـیسته هورته

ودانـــي پریږدې نـــادانه پـه صحرا ځـــې

زړه اوژبــه یــوزمــان مـوافـق نـــه کـــړې

بـــیهوده ویـــیږی کـــړې خبرې سپیازې

مـــحبته ځان جـــداکـــړه له کثرته

څه یوازې چـــې راغـــلی یې یوازې

"۳۲۶"

شـــهسواره ته پـــه سردســـتار زریـــن ږدې

کـــه پـــه آس دحُـــسن داد زرو زین ږدې

کـــه نن سردیار ددر پـــه خـــاورو کیـــدې [۱]

ســـبا ســـربه دســـندسو پـه بالـین ږدې

زړه مـــسجود دی راشـــه دیروحرم پـریږده

بـــیهوده پـــه هـــر یودرخـــله جبین ږدې

ســـاقي بیا به مې ژوندی کړې که مې راکړې

لـــه هغې پیالې چې ته پرې لب شیرین ږدې

-------------

(۱) کښیږ دې

مـــشاطې هومره مـــې ږدې پـــه زړه داغـونه
ځـو پـه مـخ يې ته خالـونه عنبرين ږدې

چـــې دې نـــيش دمـــچۍ نه دی قـبول کړی
خولـــه بـه څـرنګه په نوش دانګـبين ږدې

آخـــر اړخ بـــه دې وي پـــه تورو خـــاورو
ځـوبه ښـپې [1]له ډيره خياله په قالين ږدې

عاقـــبت لکه قـــارون به په ځـای پـريـــږدې
خښ [2] پـه مزکه کې هرڅوکه سره اوسپين ږدې

دمـــشتاقـــو زړونه څـــه کـــم دي تـــرګلـــو
چـې پـه زلـفو کښې ګلونه دنسرين ږدې

هـــم زمين به دې پـه ګـور کـاپښتۍ مـاتې
چې قدم خپل لـه غـــفلته پـه زمـــين ږدې

کـــه دُسـرديار دښـپو[3] دلانـــدې کيښـود
بـــې شبـــهې به قـــدم پاس په عـلين ږدې

ورکـــوه مه، زړه خونـــخوار تـه مـــحبته
طـــمعه نده چـــې دوړاندې دشاهـين ږدې

**"۳۲۷"**

| | |
|---|---|
| پـــاس پـــه عـــرش تر مـــزکې لاندې | واړه تـــه يـــې لانـــدې بـــانـــدې |
| پـــکې زړونـــه اويـــزانـــد شـــي | چـــې کـــړې زلفې اويـــزانـــدې |
| په خـــوښۍ مـــې زړه مـــعمور کړې | چـــې په ډکـــه خـــوله وخاندې |
| زه پـــه عـــشق کـــې بـې تقـــصير يم | زړه مې کاندي هـرڅه چې کاندې |

---------

(۱) پښې

(۲) ښخ

(۲) پښو

بیرته نه گوري وماته لکه عمر ځي دوراندي
زمانه ورنبی کا ورستو [1] اوور ستی [2] کاندي دوراندي
دامخلوق لکه دولاب ټول سره اوري لاندي باندي
ملاقات له دنیا دارو محبت څه لره کاندي
لکه پیاز همه بې معزه
څره پوست دی لاندي باندي

"۳۲۸"

دمخلوق زړونه پامال کړي خوش رفتاري
چې له خیاله خپل روانه شي په لاري
لاعجب که ژوندی پاتې یوساعت شي
چې څوک ویني داستا سترګې خونخوار ي
چې يې ولیدي توکړي توکړي [3] يې زړه شه
تاځکر دګل پاره کړ ګلرخساري
سرګردان مشه په کور بیا به يې مومي
څخوبښي [4] ته خپلي ونسه قرار ي
خود په خود دمیخوارانو په خاطر کې
ستا دراز خبري ټولي شوي اظهاري
اوس چې زه شوم دوه په دوه له خپله یاره
ته زمور له منځه وتي ریباري
هم صحبت چې له رنځوره وي رنځورشي
مابیماربه کاندي ستا سترګې بیماري

---

(۱) وروستو= وروسته

(۲) ورستی = وروستی

(۳) ټکړي ټکړي

(۴) پښي

پــه دا خــپل لــب شــیرین څخو زما هم

خــوله خوږه کــړه اې په شونډو ښکرباري

خوار خسته کړمه خراب کړمه رسوا کړم

هــسې وکړې مــحبت رابانــدې چارې

"۳۲۹"

چې پدارنگــه دلچسپې کــړې خبرې زړه به یوسې له هر چانه ښیوه گرې

نمرکه دی لاثــاني هم پدا جهان دی ته پــه دوه کونه بــې مــثله یې نادرې

که دیارلب ودندان مې خدای روزي کا صــدقه به یې کړم لــعل ومرغلرې

ته چــې بې له مایوازې مینوشي کړې دامې وینې دي بې رحمه چې یې نغرې

په څه شان مــې زړه حریف بې دبنو شي دی یــوازې دی هــغه پلو لبنکرې

پروانه مري چــې وشمع ته نژدې شي هــومره پایم څــوله تایم څــخولــرې

که بــل غشي وي مازغره به په برکړه دنگــاه غــشي دې ښوی وزې ترزغرې

چې خــوره یې دلــبانو شیرینې شوه پــه جهان کې بې رواجې شوې شکرې

کــله مینه یې پــخلا[1] کا کله گرزي مــعشوقې لــه عاشــقانو مــرورې

معلومیږي یارې [2] راغی چــې نن اورم

محــبت کره ویــلې شــې ســندرې

"۳۳۰"

لــکه دُرچې وي دندان هــسې لــرې شونډې لعــل دبدخشان هسې لرې

دخــوبانو به شوکت همه کړې مــات چې په حسن کــې ته شان هسې لرې

ځان ډوب پــه دې کوهي کاندي عالم چــې ته چاه دزنخدان هــسې لــرې

پاتــې نشي یوســړی بــه مــسلمان چــې دزلــفو کفرستان هسې لرې

-----------

(۱) یاربې

(۲) پخلا

نورخوبان خوشوندې سرې کاندي په پان ته بې پانه خپل لبان هسې لرې

هیڅ زاري مې ستا په زړه نه کا اثر چې خاطر لکه سندان هسې لرې

زړه به کړې دعاشقانو آشفته چې په مخ زلفې پریشان هسې لرې

ټول عالم به بې سامان کړې عاقبت دښایست چې ته سامان هسې لرې

سپین سبا به دازما کړې توره شپه چې جبین مه تابان هسې لرې

محبته څه ناصح ته ښیې ځان

څیرې څیرې چې ګریوان هسې لرې

"۳۳۱"

رانجه نه کا ستا عاشق په سترګو پورې

رانجه څه کا چې یې ته دسترګو تورې [۱]

غم دې خپل په هر ساعت زما خوراک کړ

بیا غمخورمې بولې ځان عجب غمخورې [۲]

غیر په عشق که دی رښتین غم دې قبول کا

درو غژن ورسوه تر حده پورې

که ظاهر دې کتی راته غل به نه وې

ته چې پټ ګورې وما ته زما چورې

بیابه نه مومې روزي له نُه افلاکه

خدای کاسې دآسمانونو کړې نسکورې

ګورې زړه مې ذکروانه ورې دمینې

لیونې دې ورته کړې خبرې نورې

هغه کس دی روند چې تالتۍ [۳] ګرزي

که یې سترګې وې بیناته یې نه ګورې

---

(۱) تورې = توریې

(۲) غمخوریې

(۳) لتوۍ

نـوردسـترگـودې حـيرت يوور غـافـله

لـکه بت عبـث په غـتو سترگـو گـورې

مـحـبت دچـابـنده نه دی آزاد دی

ولې ته يـې پـه ديدن پـيرې هم پلورې

"۳۳۲"

چـې هردم د محـبت لـه ونـې بـرخورې

سـخ دی ستا چې هـميشه خواږه ثمر خورې

چـې په مراد لـرې سيم تنه زري پـوشـه

بـوالهوس يې کـه بـيا غـم دسيم وزرخورې

کـه پندارله دې ځای ورکـړ په دمـاغ کې

پـه تلوار به خـرد ماغـه ته خپل سر خورې

د آدم اولاد چـــې سـتا دي واړه ورونـه[1]

بـويه داچـې غـم د هـريـو برادر خورې

دمنـعم نعمت گـندهير شـه پـه تا بـاندې

چـې بې شکره يې نعمت شام وسحر خورې

ځـان کړې مـوړ لايو پـهر تير شوی نـه وي

چـې بيا گـيلې لره غـم دبل پـهر خورې

ولـې خـيرتـولی[2] گـرزې بـې هـنره

هـنر زده کړه چـې خواږه دخپل هنر خورې

چـې امـوال اولاد فـتنه دي خـدای ويلي

ترولـه غـمه يې په څه خون دځـگر خورې

---------

(۱) رونړه

(۲) تولوې

غــم دعــشق زهر قاتــل دي محبته
ولې ته يې پــه مزه لــکه شکر خورې

"۳۳۳"

دجــمال ديــار بــه هــله تمــاشــا کړې
چـــې په لاس ورته سريوسـې رونما کړې[۱]
تاو دعـــشق په اورکه وخـــورې بــوالهوسه
لــکه زرچـې وي مـغشوش ځان به رسواکړې
انــدرون دې هـــمه تـــور دی له کـــساده
زرقلـــب يې چـــې ظاهـــره بـريـــښنا کړې
شـــپه اوږده د بـــيلتانه شوه نـــه کـــميږي
خـــدايه شام به دهـــجران کـــله سـبا کړې
هـــېڅو کـــار دآشـــنايي درنـــه ونـــه شـــه
پـــه حيرت يم خـــدای زمـا ځـله آشنا کړې
په خنـــدا چې راته کړې کـــنځلی[۲] ډيرې
داتـــرخې خـــبرې هـــم راتـــه حلـوا کړې
خـــوچې راغلې شورو شرپه جهان پـــريووت
خـــدای عـــالمـولـــره يوفـــتنه پـــيداکـــړې
چې په مـــرګ دپروانې خنداکـــړې شـــمعې[۳]
عـــاقـــبت ولاړه درســـته شـــپه ژړا کـــړې
ددنـــيا په شـــان چـــې ته هم بيوفا يې
محبت تـــه کله مخ کړې کله شاکړې

---

(۱) اصل : چې په لاس سريوسی ورته ته رونما کړې
(۲) ښکنځلې
(۳) اصل: شمعه

"۳۳۴"

بویه داچـــې نوش دمـــینې می نـــاب کــړې

نــه چې ځان پـه دې ترخواوبــو خراب کړې

ســیه مست دمی دخـــم دلاندی پـــروت یې

نــه دخدای ویره نه خــلقونه حجـاب کړې

هــیڅ پیدا انســانیــت دې هـلږونــه کــړ

دحیوان په دود یا څـرکی [1] یا خواب کړې

دســـحـــر رڼــاخــوره شـــوه لاوده یــې

لــه غفلته ته ګــمان پرې دمــهتاب کــړې

چـــې عمـــل پرې نــه لــرې نورڅـــه دپاره

مـــسلې په خـــولـــه بـــیا نې دکـــتاب کړې

درســـته شپه دشـــاهـــدانو وروځـې ګـورې

ســبا پاڅـې مخ په لـوري دمـــحراب کړې

شـــپه وورځ یې پروت په هوویــه لعـب کې

هــمیشه لــوبې په چــنګ وپه ربــاب کړې

عــاقـبت ورځ دحـــساب شـــته نه ویــریږې

چـــې داهـسې ګـــناهونه بــې حـــساب کړې

دشـــراب دمحـــبت جـرعه ونـــسکې [2]

بیهوده په میخانو کې ځان خراب کړې

"۳۳۵"

کــه دزړه وآئــینې وتــه نظــر کړې تماشابه دجهان لکه سکندر کړې

---

(۱) کوې

(۲) ونه چښې

نامعلوم به همه کي درته معلوم شي    که ځهل ځان له ځهله ځانه بيخبر کړي

دسنګدلو [1]په زړه آه که دې اثر کا    بې شبهې لکه فرهاد سورى به غرکړي

په هغه صيد ځاى درحم دى صياده    چې په دام کې شکسته يې بال وپر کړي

هم په يوقدم به رسې ومنزل ته    دوحدت په لويې لارې که ګذر کړي

مرور ګرزم له ځانه له جهانه    يوساعت که ځان له مانه مرور کړي

په نظردې خوبان خواردې لکه ستورې    بې نظيره خداى پيدا چې لکه نمر کړي

پوخ په عشق يې که پتنګ غوندې خاموش مرې    خام يې لا لکه بلبل که شورو شر کړي

ورخ شي شپه چې مخ کړې پټ په شام دزلفو    شپه شي ورځ چې يې عيان لکه سحر کړي

دخپل مخ په رڼا وايه آفتاب رويه

کلبه ګور دمحبت به منور کړي

"٣٣٦"

ټول سبب يې دادى چې مدام راسره جنګ کړي

نوم مې محبت دى ته له دې نامه نه ننګ کړي

وينې ستا له لاسه يوعالم ژاړي بې رحمه

بس کړه په سرواوبنو دې څهرې دډيرورنګ کړي

ښايسته په آرت زړه له غيروسره خاندې

ماچې وينى مخ هم راته بوټ کړې زړه هم تنګ کړي

نافهمي له عشقه ډيره لويه نادانى ده

پوه په مينه نه يې عبث لافې دفرهنګ کړي

دانه وايم ديرته څه يادرومه ومسجدته

هرپلو چې ياروي هغه لوري ته آهنګ کړي

-------------

(١)

مـــست یم دالـــست خـــرابـاتـــي یم محتـــسبه

پرې بـه نه دم می که مې سنگسار په خشت وسنگ کړې

بل نه څوک عاشق دی نه معشوق هم دواړه ته یې

شمع دمـــجلس شې چـرته چرته ځان پتنگ کړې

تـــله ددلآرامې وپـــالـــنگ تـــه آســـان نـــه دي

ســـرخپل په لاس واخلې هله قصدې [1]دپالنگ کړې

زړه مـــې کـــدورت پیداکـــړاشه مـــحبته

ته به مې صـــیقل دآئینی همه ګې زنگ کړې

"۳۳۷"

کـــه یودرنگ له مـــاسوایې ځان په څنک کړې

تـــماشا بـه یـــې دمـــخ په هغه درنگ کړې

صـــلح وجـــنگ دې دواړه یـــودې وعـــاشق ته

ســـتا رضاورسره صـلح کړې که جنگ کړې

چـــې باطـــن دې هـــمه تـــور په کـــدورت دی

پـــه ظاهر دې څـــله سپینې جامې رنگ کړې

ریـــایـــي خرقـــه دې خـــپله په دارنـــگ کړه

چـــې پـدې رنگ کې پیدابل نام وننګ کړې

بـــې دزړه لـــه جـــذبه بیا بـــه یې نـــه مـــومې

که درســـت عـــمر مصلې وریسې لـنگ کړې

چـــې دلتـــنگ شې یوســـاعت چـــرې لـــه مانه

هـــغه وخت راباندې آرت جـهان تنگ کړې

---

(۱) قصدې = قصدیې

که په هسې شان دې حسن عالمګیر دی

بادشاهان به ته په ځان پسې ملنګ کړې

که ته چا دزنخدان لرې داهسې

ډیر عالم به آخربند په دا ګړنګ کړې

وهر چاته په زړه نرم لکه موم شې

محبت وته زړه سخت په ځیر دسنګ کړې

"۳۳۸"

ته چې خدای لکه الف په قامت سم کړې

لکه دال الف قدان به واړه خم کړې

ستا ستم اوکرم دواړه مې مرغوب دي

باقې تازده که کرم کړې که ستم کړې

چې دعشق په اوردې ځان وسه عاشقه

نورله اوره ددوزخ څه لره غم کړې

له اوله چې تشریف دې راوړ عشقه

پوهیدم چې مې رسوابه په عالم کړې

زیات دمینې بدي څه واېې ناصحه

دابه ونشي چې عشق له زړه مې کم کړې

پوهیدم چې راشې درد به مې څه کم شي

داخبر نه وم چې زیات به مې آلم کړې

ستارنځوریم خوهم ستا په دم رغیږم

په دروغ ربنتیا هرڅه چې په مادم کړې

چې داهسې کړې په مخ زلفې پریشانې

ته په مابانديُ رنا روځ به تورتم کړې

دقضاکا تبه څوک له دې خبروه

چې مې نوم به محبت په لوح رقم کړې

"۳۳۹"

راغی عید دقرباني ډیربه احسان کړې

که نن ورځ ترخپله ځانه مې قربان کړې

درد لرم دبیلتانه نادان طبیبه

بې له وصله نورپه څه به یې درمان کړې

یامقلب القلوبه زما خدایه

دبتانو زړه رابانديې مهربان کړې

عشق مې ډیرآسان ګڼه ولې مشکل شه

دامشکل مې په کرم سره آسان کړې

یارمې وخیژوې [۱] بام وته له فضله

لکه نمر ې[۲] له افقه راعیان کړې

بل پلووته نظرمې پریشان نه کړې

خوخپل یارته مې داسترګې نګران کړې

په تیاره دبیلتانه زړه مې تاریک شه

په جمال دمهرو یانو یې روښان کړې

زورمې وباسې له دې کون ومکانه

په خپل فضل زما ځای په لامکان کړې

---

(۱) اصل : وخېجوې

(۲) نمریې

اې دعـشق دریا به څوک لـه دې خبروه
چې به ډوب په خپل امواج محبت خان کړې

"۳۴۰"

په هرسوال به مې ایاایا تر څـو کړې یوه روځ خوعـاقبت به راته اوکړې
مـوانـکې دیـقین پاڅـه زرپـیداکړه ولې ځان ډوب په امواج داند یښنو کړې
عاقـبت هـغه خـبرې افسانې شي که هرڅودعشق خبرې په ورو ورو کړې
سروپاې زه ستاد درد خاوروغـوارم ته به کله داخلعت په ما پیرزو کړې
اې ښـامـاره یې د زلـفو عـالم واړه اژ دهاغـوندې ترحلقه به فرو کړې
یوانسان مسکین خوځـه دی که مزری وي هم دحسن په هیبت به یې پشوکړې
محبـته که دې رنـځ دمـحبت دی
بیـهوده څه لره خیال در غیدو کړې

"۳۴۱"

کـه زلال دعـاشـقی تیرتر ګـلو کـړې
دحـیات اوبـه بـه زهـر هـسې تـو کړې
سـامري به خپلې کـوډې کـاندې هـیرې
دغـمزې که ته ښکاره ورتـه جـادو کړې
ـادار چې کړې پیدا مـاغـوندې بـل یو
هـله تـه زمـا ومـرګ وتـه آرزو کـړې
ومـحراب پـلوته بـیا به مـخ ونـه کـا
زاهـد انوته ښکاره که خـپل ابرو کـړې
چـې دې اوښې کړې جارې زما له سترګو
عاقـبت پدا دریـاب به مـې لاهـو کـړې

رڼا ورځ پــه خلقو بانــدې توره شــپه شي

په سپین مخ باندې پریشان چــې تورګیسو کړې

دخــپل زلــف دمارخــوړلي ته پــار ویــې

روغ به شــي که ته افسون وربانديې پوکړې

دګــریوان که چــاک مې وګـنډې ناصــحه

داپــرهار دزړه بــه څــرنګـه رفــو کــړې

چــې پیري دې ســروقــده قامــت خــم کا

دقــمری په شان بــه خــود هــله کوکو کړې

دوحــدت توره تــیره چــې دې پــه لاس ده

دکــثرت پــه مــملکت ولــې نه هنوکــړې

وبــې [1] رسي ترخــولې دعــشق پــه اورکې

ځــان لــوګــی که ته پــه دود دتمــاکو کړې

درقــیب په زنــګانه کــه دې ســرکــیښود

ســربه کــوز زمالــه غمــه په زانــو کړې

که دې کښیناوه [2] په څنګ کې غیر ګلرویه

خــار دغم دمــحبت به پــه پــهلو کړې

"۳۴۲"

ســتا رضــا کــارونه بدکــړې اوکه ښه کړې

پــه هغه نوم به باله شــې هر چې ته کــړې

اندوهــګین یې کړې غمګین یې کړې بې رحمه

څـه څه چارې چـې مدام زمـا په زړه کــړې

---

(۱) وبې = وبه يې

(۲) کښیناوه

که دچـــا دزړه رضـــاوي اوکـــه نـــه وي

خـــوچې ســـتا دزړه رضـاوي هـــغه وکـــړي

پـــه پرده کـــې ددوســـتی پخـــپل دوســـتانـــو

هـــیڅ دښـــمن چې نه وي کړې هغه کړه کړي

چـــې په خوی کـــې دې جـــفاده خو کوې بـــه

تـــه به هلو خـــپل خـــصلت مـبدل نه کړي

لاس وښـــپې [1] که مـــدام سره کړې په نکریزو

پـــه سرواوښـــوبه بسیار مـــخونه ســـره کړي

زړه مـــې ویـــنې هـــمګـــی دې کـــړله غـــمه

تـــردا زیاته نـــور زما پـــه حال به څـه کړي

شهدي [2] کړې په خولـه دخاورو چې قابل وي

دشـــکرو دلایـــق خاورې پـــه خـــوله کړي

دحجـــاب کـــړي بهانه پـــه ورځ چـــې درشم

که په شپه دلره[3] درشـــم ځـان اوده کـــړي

توروســـپین دمحبت چـــې دې په لاس دي

هسې نه وي مخ یې تورپه سپین ویښته کړي

"۳۴۳"

ولې مخ راته ښکاره لکه نمر نه کړې    ولې شپه دبیلتانه مې سحر نه کړې

ولې مرګ ته دې نژدې له بیرحمی کړم    ولـــې مـاوتـــه درحم نظر نه کړې

ولې تـــاج دالـــتفات مې په سر نږدې    ولـــې شاه دجهان خپل قلندر نه کړې

---

(۱) پښې

۲ شهدي = شهدیې

(۳) درلره

ولې نه کړې شاه ګدای خپل له کرمه ولې سورې مې همایه په سرنه کړې
ولې شیر کړې پشونګړې رقیب وماته ولې ته مې په رقیب دلاورنه کړې
ولې ځان څخه مې نه رابولې یاره ولې غیر له خپله کوره بدرنه کړې
ولې زړه مې لکه غل هسې په غلاوړې ولې هیڅ د زړه په وړه مې خبر نه کړې
ولې یو ځل راته وګورې بیا شاکړې ولې مخ وماته بار دیګرنه کړې
ولې غوږ دمحبت په سخن نږدې
ولې ته یې په خبرو باور نه کړې

"۳۴۴"

زما ستا عالمو جوړې افسانې کړې ته تراوسه دوصال لابهانې کړې
که مې لاس ورسې لاس دهغه پرې کړم چې دې زلفو لره چاجوړې شانې کړې
په ژړالکه یعقوب درپسې ړوند شوم په جهان مې ته یوسف د زمانې کړې
دآسمان باغوانه تاپدې ګلزار کې ډیرې ورانې دبلبلو آشیانې کړې
ماتسپې داوښولوستې ستا په غم کې تاپه مخ مې هغه هم دانې دانې کړې
هم پدا چې ستانه دارڅوک مددوکا ماتلاشې ډیرې تاپسې ستانې کړې
زما زړه دغشو نښې لره بیاموند کمان دارمې چې تلاشې نښانې کړې
توبه ګار له مینو شې وم ولې څه کړم ساقې ډکې دشرابو پیمانې کړې
چې دلدار دې شمع روی دی محبته
بویه داچې ته هم کار دپروانې کړې

"۳۴۵"

بې له بویه دې ګلرخې دل افروزې له ژوندونه خپل راغلی یم ترپوزې
یار آفتاب دی زه یې سورې یم زاهده ترې جدایو قدم کشکې که مې بوزې

شه وورخ مې زلف ورخ دې فـرح بـخش دي　تــه زمـا آرام جـان دشب ورو زې
دعـــاشق آه ونـــاله واوره دردمـــنده　که له زړه بې طـلبګار دسـازو سوزې
چې دعشق وحسن جـنګ شي فـتح ستاده　ته په هروخت په عاشق باند فيروزې
پــه ديدار دخپل جمال پـرده نشينې　دواړه سترګې کړه زما خوبنــې اندوزې
دمــعشوق په ديدن وړ نشوې عاشقه　تل بې ګـورې هم مشتاق بې لاهنوزې
که دعشق حرم ته يون کړې په ســردرومه　طلــبګاره که مـکې وته په بنپو ځې

ته مــهی دعـــشق دسيندې[1] مـــحبته

چې پدا قعر [2]درياب کې په لانبو ځې

"٣٤٦"

لکه غير په مـــا جـفا کابيرحمي کـــاندي يارهـــسې

ځــنګه کرم پروردګاره چې يار هسي اغيار هسې

په ګفتار کې دې شوخي ده په رفتار کې چـالاکي ده

په خـــوبانو کې دچادی ګـفتار هسې رفتار هسې

داپرده دخود بيــنی دې ځـوپه مخ بـــاندې پـرته ده

مـــعشوقه چې ده خودبـينه دربه نه کاديدار هسې

چـــې دلعل له کـــوتي لاله امتـــياز پــه نظـر وکـــا

جـوهري مې يوبيا نه مـوند ددنيا پـه بـازار هـسې

دمنصور په شان چې کيدې[3] سـرله شوقــه په داد باندې

پـــه لښکر دعاشقانو بل بــه نه وي سردار هــسې

دفراق پــه نري رنځ کې څوک دې خدای مبتلا نه کا

بـــې دوصل له دارونه روغ بـه نشي بيمار هـــسې

---

(١)　سيندې = سيند بې

(٢)　اصل : قهر

(٣)　کښېږدې

کــله بــاغ دارم رســي وبهــار دې دکوڅــې تــه
په جنت کې به هم نه وي يقين وکړه ګلزار هسې
دهــلک په مثال زړه مې لــکه ګـل پرزې پرزې کړ
ناچارې ده چــې مابيا مـوند له قسمته دلدار هسې
غم نشــه دمحــبت ده محبان يې مشتاقان دي
عاشقان هغه مې غوارې چې پيدا کا خمار هسې

"۳۴۷"

که عاصي دعاشقۍ په مـعـصيت شي | بې پوښتنې ته داخل به په جنت شي
رتبــه تيره به دې شــي تر مــلا يکه | ولــې هله چــې باردار د امانت شي
کــه دمی دحقيقت پياله کړې نوشه | بــې شبهې به مستقيم په شريعت شي
دمجازله عشقه ځان خــوواقف نه کړې | هــومره کله به آګاه په حقيقت شي
صحبت هــم لرې تاثير که عــاشق نه يې | مــې بايد دعــاشقانو په صــحبت شي
ذادې ټــوله سردردي دهوښياري ده | لــيوني شه هــميشه به په راحت شي
که دې بل لذت هيرنه کړزه ضــامن يم | که خبر ځــخو دمــينې په لذت شي
مزکه ګــنج به دقارون درته برسيرکا | که خلــوت نشين په ګنج دقناعت شي
سلامت به خپل ايمان په امان يوســې
محــبته که کــافر دمحــبت شــې

"۳۴۸"

خبردار که دهــغو شونډو په خوندشي | زه ضــامن که بيا طالب دشهدو قند شي
برابر که زرپاشي په خاص وعــام کړې | لکه نمر به درست جهان کې به څرګند شي
ځــان اول له کمـينی په خاورو خښ[1] کړه | لــکه ونه بــه آخر ته سربلند شي

---

(۱) ښخ

ددنـــیا ودین لـه قـــیده به آزاد شـــې که بـندي دیار دزلـفو په کمند شې

زړه دخلقو لکه خاورې به پامال کړې که داهـسې سوردحسن په سـمندشې

چـــې سورلی په آس دنازو کړې ظالمه پـه تاراج دهوش وصبرلا دوچند شې

دشـــمنان زهر قاتل به هـله ګوټ کا چې له دوسـتو سره ته په شکر خند شې

دښـــادي کلاه مـــې ورسي تر عـرشه یوسـاعت چرې له مانه چې خورسند شې

محـبته ستالـه عـــقله ډیــر بعـید وو

چې عاشق په خود نمای وخود پسندشې

"۳۴۹"

مـــحـــتاجي ده ددنـــیا په سلـــطنت کـــې

بادشـــاهي کوه د فـــقر په دولـــت کـــې

جـــام دزهر د محـــبوب لـه لاسه نوش کړه

دالـــذت به چـــرته مـــومې په شربـت کې

چـــې قانع لکه صدف شوم دُرمې بـــیا موند

ګـــنج روزي مې شه په ګنج دقناعت کې

کـــه ښادي غواړې دعشق لـه غـــمه غواړه

چې عشرت دی ډک دمینې په محنت کې

پـــه ســـیرت کې ددنیا ســـړی دواب دی

کـــه هر ښـــوبنې آدم دی پـه صورت کې

دمـــجاز مـــنزل اول په ښـــه شان طی کړه

بـــیا قـــدم کیده[1] په لارد حـــقیقت کې

دبـــې پت دنیا هم هیڅ وي هم یې دین هیڅ

کـــه عزت ددین دنیا دی خوپـه پـــت کې

-----------

(۱) کښیږده

ذات صفات یې هم په دا نه عین نه غین [1]شو

**چې یې ذات کړپوشیده په خپل صفت کې**

که طالب دمحبت شې بیا به مومې

خدای رسول دین ودنیا په محبت کې

"۳۵۰"

شه پیرو دزړه دعشق په کاروبار کې

بې رهبره قدم مړده پدا لار کې

زه له شوقه لکه ګل څیرې ګریوان کړم

چې ته کیدې [2]ګل له خیاله په دستار کې

بې نصیب هیڅ سودونه کابې له زیانه

که تمام عمرې تیرشي په بازار کې

یارمشغول په صید دزړونو همیشه وي

دښکارې سرې زړه ډیر لګي په ښکار کې

امتیاز که درحمت وغضب نه وي

تروبه هیڅ نه وه تفریق په نوروناركې

په مخونوبې قدرت دخالق ګورم

خدایې وینم دبتانو په دیدار کې

په هر وار چې بې په لاس کښې وینم توره

زه له ځانه ناامید شم په هروار کې

بیکسان آزارېې [3] په تاوېر یړم

چې خطر دی دبیکسو په آزار کې

-------------

(۱) اصل : غیر

(۲) کښېږدي

(۳) آزاروې

دقــمس زه عــندليب يم بــهار څــه کړم
چــې مــحروم يم لــه بهــاره پــه بــهار کې
ګــلزار څــه کړم مــحبته بــې ګــلرويه
په هيڅ رنګ نه لګی زړه مې په ګلزار کې

"۳۵۱"

دعاشق حرمت عزت دی په پيغور کې ... څه يې نسي محتسب دعشق په تورکې
هــغه کلــه ومــهتاب وتــه نظر کا ... **چــې مهرو يه معشوقه لري په کور کې**
ددنــيا غوغا محروم کــړم له آرامــه ... خوب کولی نشي څوک پــه شروشور کې
پــه اربع عناصر اورهم يوعنصر دی ... عــشق له دې عنصره خيژي په څلور کې
چې قدرت کشش د زړه لري په مينه ... **داقدرت دی نه په زرکې نه په زور کې**
**د مزار سنګ به ترسره يې پرتاو[1] کړم** ... بيتابی که مې ظاهــره کړه په ګــور کې
مــحبت دعــشق له سويه خطر نه کا
خوپتنګ غوندې ځان ولي په بل اورکې

"۳۵۲"

رامــعلوم ديار کرم شه پــه ستم کې ... **بيامې موند عيش وعشرت په درد وغم کې**
ماژوندون په تورو زلفوکې يې بيامــوند ... دحيات اوبــه موندی شي پــه تورتم کې
وکعــبې ته څله ځې بيا به يې مومې ... که تلاش يې کړې دخپل زړه پــه حرم کې
ددنيا مستان چې دي کاږه لــه کبره ... واړه ســم شي دهغو زلفو په خم کې
مرهم څه کړم دادعشق دتيغ پرهــاردی ... ددې زخم شفانشته پــه مــرهــم کې
که تــه حور يافرښته نه يې تروولــې ... ســيال دې نشته په جمله بني آدم کې
چــې نظير دې په عالم نشته بې مــثله ... لــه عــالمه ته جــدايې پــه عــالم کې

-----------

(۱) پرتاو = پرتاب

دم مې خېژي راشه څـه رابانددم کړه چـې رغـېـرم ستالـه دمه په يودم کې

دم هم ستا وهم هم ستا په لار قـدم ږدم زه ثابـت يم سـتا دعـشق په دم قدم کې

محـبته دکـلام دې هـسې غـږدی

چې مشهور شه په عرب وپه عجم کې

"۳۵۳"

هـغه يارمې دی ځای کړی په خپل ځان کې

نه ځـايېږي چـې په مـزکه پـه آسـمان کې

بـې لـه تا جـان جهـانه قـسم واخـله

يـوساعت که ژوندون غـوارم په جهان کې

نـظر نه کړم په چـمن کـې ويو ګـل ته

ستا پـه رنګ نه وينم ګـل چې په بُستان کې

چـې لـه مـاتاب وطـاقت غـوارې نادانه

توانايي لـه کومـه راشـي پـه ناتـوان کې

ګـريوان څيرې وناصـح ته څه څرګند کړم

چې مې يوتار هـم پرې نه ښـوګـريوان کې

چـې دولت يې دوصـال بيا مـومم چرې

زمـانه راځـخه يوسـې پـه زمـان کـې

اوس پـه خوب راته وصـال يې حاصـلېږي

چـې يې خيال تل راسره وي په هـجران کې

غـم دعشق غوارم عشرت ته که مې زړه شي

چـې بـهار مې دی مـوندلی په خـزان کې

پــه تلــخي دځــنکدن آګــاه بــه نــه شم

که خوږې شونډې مې کيدې[1] په دهــان کــې

پــه نيــستي کــې آزادي ده مــحــبته

څو هستي ده هومره پروت يې په زندان کې

"۳۵۴"

تشنه لــب دې يم لــه ماکه په سلوکې رانژدې کړه خپلې داشونډې ملوکې

اې پــاړوزه يم دزلــفو مــار خوړلی روغ بــه نه شم څله دم راباندې پوکې

محتسب که دې مــانع له مينو شي شي درته ښــايي چــې په ړيره يې وتوکې

شونډې ســرې زړوکې شنه دې يادومــه شنه طــوطيان چې راښکاره شي سرې مښوکې

په پالنګ زما دوړاندې څــخوخوب کړه چــې زه ناست وهم په ښهو[2] دې نرمې موکې

هسې غــرېزمادعشق دی په عالم کې لــکه ستا دحسن دې په جمال کوکې

زړه مې ژوبل ستا ښو په هسې رنګ کړ لــکه ولګې په چــادنــيزو څــوکې

دام درم دداغ دعشق دې چې ترې بيامونډ

محــبته زرخــريد ته يــې مــملو کــی

"۳۵۵"

چــې له فقره آګاهي لري په زړه کې کل دولــت دباشاهي لــري په زړه کې

که نيکي نه کړې هم اجر به يې مــومې دعالم چې نيکخواهي لري په زړه کې

هــغه کاندي ددنيا قــــصې دراز ې چــې دعقل کوتاهــي لري په زړه کې

وهــيچاته زړه به ســپين دهــغه نشي لــه ازلــه چې سياهي لري په زړه کې

هم هغه سرې دی امــر قــبول کړی چــې خطردمــناهي لري په زړه کې

دهــادي په هـــدايت نشي په لارې هغه کس چې ګمراهي لري په زړه کې

-----------

(۱) کښېږدې

(۲) پښو

په درياب دعشق بيړی اچئ[1] څله چې يې بيم دتباهي لري په زړه کې
سپاه گيري که کړې نوی هم سپاهی دی چه تل قدر دسپاهي لري په زړه کې
چې دعشق مرتبه زړه يې ده موندلې
محبت عالي جاهي لري په زړه کې

**"۳۵٦"**

بادشاهي کوم دعشق په خاکساری کې
ماعزت بيامووند دميني په خواري کې
په غفلت دزړه چې درسته شپه بيدار وي
څه حاصل به کازاهد په بيداري کې
که طلب کړې رغيدن رنځور ديار شه
چې صحت دی دمين په بيماري کې
په دوستی کې يارله ياره وفامومي
تاجفا راته عطا کړه په ياري کې
چې دولت په درويشي کې درويش مومي
سرداران نه مومي داپه سرداری کې
زړه که اخلې په ساتنه يې هم پوه شه
چې هنردی ډير پکار په دلداري کې
که هوښياري[2] څان غافله له دنيا کړه
چې غفلت دی ددنيا په هوښياري کې
کار دعشق په ژوندانه درنه ونشه
عمر تير دې کړعبث په بيکاري کې

-----------

(۱) اچوي
(۲) هوښياريې

چې په تا پسې عاشق دی بیقرار دی

په څه شان شي بې له تاپه قراري کې

محبته کاڼی ولې دې په آه کړل

څه اثر دی ستا په آه وپه زاري کې

"۳۵۷"

دځواني مستان هوښیارشي په پیري کې

نادانان تجربه کارشي په پیري کې

که هر څود ځلمي توب په خوب اوده وي

عاقبت سړی بیدار شي په پیري کې

که هر څوېې شتابي وي په کارونو

په سکون وپه قرارشي په پیري کې

که هر څوپه سړي بار دمعاصي وي

چې توبه کاږ سبکبار شي په پیري کې

که هرڅو یې په ځواني کې حرمت کم وي

باعزت وباوقار شي په پیري کې

که هوڅو پندار په سرکې یې بسیار وي

کم له سره یې پندار شي په پیري کې

که هرڅو په مستي کوږ درومي له لارې

هم آخروته په لارشي په پیري کې

که هرڅو وي بداطوارهم بدکرداروي

خوش اطوار وخوش کردار شي په پیري کې

مـــحبته پیري ښـــه ده آخر هـــر څوک
په تـــوبه په اســـتغفار شي په پیري کې

"۳۵۸"

بـــې میوداهسې چـــې مخموري لـــري سترګې
یارمـــې په مستی څـکه مـــشهوري لـــري سترګې
شوخ مې خدای دې نه کاچـــې شرابو ته نژدې شي
ولی دښـــایست پـــه می معـــموري لـــري سترګې
هـــره شـــپه بلقیږي ولې څـــه رونـــق پـــیدا کا
ســـتوري چې دوږاندي بـــې نوري لـــري سترګې
حـــورې دجنت وي ښایسته ولـــې خوش چشمه
کـــله ستا په شـــان دجـــنت حورې لري سترګې
هـــرعاشق به خـــپل لکه نرګـــس هسې بـــیمار کا
هـــغه نرګس چـــشم چې رنځورې لري سترګې
نـــه خوځي له سترګوېي نګاه مـــې یوساعـــت هم
څـــه کرم دنـــظر مې چې مـــنظورې لري سترګې
هـــلږونـــظر نه کـــاپـــه احـــوال دبیـــد لانـــو
ګـــوري کله چـــاته چې مغروري لـــري سترګې
کـــله هـغه خوښ به دبـــهښت پـــه نـــنداره وي
څـــوک چې په دیدار د یارمسروري لـــري سترګې
چـــرته چې اوبه وي تـــږی هـــغه پـلوګوري
چرته چې محبوب محبت هوري لري سترګې

"۳۵۹"

ســترګې مې په مخ چــې دخوبـــانو لګـیدلې

تـولې ناکردې خــوبه په مابـــاندې کـــیدلې

تـــن مې داوبو په سر په خـیر دخس روان شه

اوښــې چــې زمـا لــکه دریـــاب وبـهیدلـې

تل چې ستا په غم مې څڅیدل داوښو څاڅکي

ویـــنی مې د زړه هـــم ورسره وڅـڅـیدلـې

خـــدای چې زه پــیدا کړم وفادار له دې کبلـه

ستا تـولې جـفامې پـــخپل ځــان وســهیدلې

خـــط دې په مخ راغـــی وایه اوس زمـا دلـبره

چـــرته هغه حـــسن چې به تـــه پرې نازیدلې

ومـــړه قاصــدان که له جهانه کاغذورک شه

وړانـــدې چرې چرې ســـتانامې رارسیدلې

**اوس هسې وحشي شوې نه پوهیږم څه سبب دی**

وړانـــدې خودا هـــومره ته لــه مانه ترهیدلې

تـــیرشه هغه وخـــت چــې لکه پرخه په ګلونو

مـــابه چې ژړاکـــړه مـــعشوقې به خندیدلـې

پرابه نـــزي غوټه دخـــاطر دې مـــحبته

هر مشکل لري مشکل کشای ولې بیدلې

"۳٦۰"

یا دعـــشق واورته مـاچوه منګولې [۱] یا پـخپله پخپل ځـان کړه لنبی بلې

-----------

(۱) اصل: منکلی

لکه ستوري له سپوږمۍ سره روان وي تـول خوبان درپسې ګرزي ډلې ډلې
ته بـدمه وايه وچـاته چې نه ښايي لـه شيرينو شونډو ستاترخې کنځلی [(۱)]
ډير ښـهرونه چې آباد ووپه دوستانو دمرګي له لاسه واړه شول[(۲)] ځنګلې
دعـاشق واړه عقدې شي آخر حلې عـشق يې کاندي پراسان همه مـشکلې
زړه مې شي چې لبان ښـکل دهغه کس کرم چې يې ښکلې شونډې ستا کړې وې ښکلې[(۳)]
ستا د حسن وښايست ته نه رسيږي که هـرڅولري هوسۍ سترګې کجلې
دخوږوشونډوچې خوله دې لاله [(۴)]راکړه دجـهان راته مـزې دې وبخښلې[(۵)]

محـبت دغـلامانو دې غـلام دی
د کرم نـظر پرې نه کړې ولې ولې

"۳۶۱"

بـې له تا په کـارې نه دي زما ټولې مـعشوقې که دجهان شي راته ټولې
چې نظيردې پيدا نه دی په کونين کې درته ښايي که ته ځان بې مثله بولې
چـاموندلـې ده جزاتر عـمل زياته هـغه نه ريبي غنم چې کري شولې
ددنـيا پـه کـدورت مـکدر مـشه اوبـه صافې خپلې ولې کړې خټولې
نه دچـا خپله دنيا شوه نه بـه ستا شي بـيهوده ورپـسې اخلې زلـې زولـې
نـظر کړه سسي او هـيراو زلـيخاته معشوقې کړې عاشقې په زړه زمولې

محـبت به دروندوي تردرسته جهانه
چـې يې تله ده وزمـينه څه يې تولې

"۳۶۲"

تل بـاقي يې ته فاني بـولې ځـان ولـې نيست نابـود کوې خپل نوم ونشان ولې
که محکوم يې دحاکم پـه حکم کارکړه چـې عمل پرې کړې لولې قرآن ولې

-----------

(۱) ښکنځلې

(۲) شوې

(۳) اصل : خکلی

(۴) راله

(۵) اصل: بخلی

دحجاب پـرده به لــرې په شراب شي　مشکل کار نه کړې په ځان خپل اسان ولې
تل کارونه کړې دفسق نوم پرې دعشق ږدې　فـرق نه کوې دکفـرو ایمان ولـې
زړه زمــا په نیم نګاه خپل ولـې ناخلې　قـیمتي متاع ته پـیرې ارزان ولې
مــالــداري ددرویشي په بـدل اخلـې　نفع خپله ځان دپاره کړې زیان ولې
چې ســامان دآخــرت بې سامـاني ده　لـټوې پدې جهان کې سامان ولې
چې نه زړه کې دې مـوجوده ده دلـبره　په تلاش یې عبث غوارې جـهان ولې
هــم تنګي هم فراغت وي لــه قـسمته　پـه ناحقه دې بدنام کړآسمان ولې

بیا دې زړه خپل دیوطفل په لاس ورکړ
مــحبته شــوې داهــسې نادان ولــې

"۳۶۳"

یار په زړه چې لرې بیایې غـوارې ولې　ګل په بردې لـکه پرخه ژاړې ولې
رزق پــه تاترتامین دی څه فریاد کړې　لـکه خرپه سبزه زار کې ناړې ولې
چې مسجود لرې په زړه کې بې بصره　بـیهوده دیرو حرم ته لاړې ولــې
پـه حیات دې وي تیری دارې په خلقو　اوس پـه خاورو پروت یې چینګې دارې ولې
کــه بنده نه یې قمري دخپلې سروې　نه وبـاسې تروداطوق له غاړې ولې
زړه رهـبر دې شه روان په سرد لاړې　مــنتظر دبل رهــبر ولاړې ولــې
چې دحسن په جلوه دې خاکستر کړم　تــرولـن زمـا له خاورو نغاړې ولې
که ســنګدله نه یې اې په ظاهر نرمـې　وعـاشق ته کړې خبرې لوارې ولې
بــیا به نه مومې بې عشقه لــب شکره　تویوې لـــه خولې په خیال یې لاړې ولې
آباد زړونه ورانــوې پــه څـه له غـمه　ودانې کړې هــمیشه ویجاړې ولــې

پـه کــلام دمــحبت هــمسربه نه شي
عندلیب سره سیالي کړې خرارې ولې

"۳٦٤"

بیا د زړه په تـــالان څــه لره رادرومې زړه مې یودې وریخوا اوس به څه مومې
کرشمې ښیوې دې زړه راڅخه غواړې ورې کړم وچاته وساتم له کومې
اوس دزړه مرغه زما به څنګه خلاص شي چــې دې کیښووې دزلفوورته لو مې
دساقي دجام شراب که دې ترخولې کړل پــه یقین چې د کوثــر پیالې به شومې
زه یـــوازې یم آخـــر بـــه مـــې تالا کا چـــې عشوې غمزې دې دې راته هـــجومې
چـــې مې ولـــیده شها خپله مـــوجوده دجـــهان شوې معشوقې راته معدومې

محـــبته زړه غافـــل مې وله[1] ورکړ
خرخـــښې فتنې یې نه وې رامعلومې

"۳٦٥"

پـــندانـــې دې دمـــالـــوچـــود انـــازنیـــنې
واړه نـــرمې په صـــورت پـــه زړه ســـنګینې
څـــخو زړه مې خـــوبش دلبره پـــه خـــندا کړه
زه پـــه غـــم کې دې تـــرکـــومه ژاړم وینې
بـــیتابې مې ګـــورې بـــیا لـــه خـــپله درده
لـــه مـــاڅه پوښتې چـــې حال پـــخپله وینې
پـــه تنکی وریځ کې نمر غـــوندې ښکار یږې
چـــې پـــه تن کیږې ته واغـــونـــدې مـــهینې
مـــخ دې نوردی لاپـــرې نور عـــلی نورشي
چـــې ته کـــیدې[2] په پګـــړې طـــرې زرینې

-----------

(۱) ورله

(۲) کښیږدې

دلــيلا مـــجــنون كيسى شــوه لاړه تــيره
اوس بــيان كيــږي زمـــا اوســـتا دمـــينې
نـــن په هجرووصـــل وژنې كه پريدې[1] مـــې
مـــخ دې سپين شـــه ته كـــوه خبرې سپينې
زړه مـــې يوور مـــستې شــوخـــې دلآرامـــې
ســـروقـــدې ګـــل انـــدامـــې مـه جـــبينې
زه پـــــه رنګ دمحبت لارنګا رنګ شوم
چې محبوب مـې جوړې واغوستې رنګينې

"۳٦٦"

چـــې ومـــاتــه پــه خــنداشــوې دخـــاطـرعـــقدې مـــې واشــــوې
تـــورې زلفـــې تـــورې ســـترګـــې زمــــا ځـــان لـــره بـلا شــــوې
خـــولـه خوراكـــړه كه دې شونډې دبـــيمار ومــــسيحــا شـــــوې
زړه مـــې دركړ چـــې دې خپل كړم ولـــې تـــه كـــلـه زمـــا شــــوې
زمـــا نـــشـــوې لـــه مـــالا ړې نه پـــوهـــيږم چـــې دچـــا شـــوې
كـــه جـــمال دې پـــټ دى ولـــې خلـقې مـفـــتونـــې ســـتا شـــوې
بـــيا لـــه كـــومـــه راغــلې مـــستې چـــې آفـــت مې دتـــقوى شـــوې
مـــړپـــه مـــرګ دمـــفاجـــات شوم چـــې نـــاګــاهـــه راپـــيدا شـــوې
چـــې مـين شـــوې مـــحبته
پـــه وګړي كې رسوا شوې

"۳٦۷"

چې ښـكاره راته هـــغه سترګـــې شهلا شــــوې
دواړه ځـان لـــره زمـــا تـــورې بـلا شـــوې

---------

(۱) پرېږدي

په قــيامت راته قــيامت شــوې غــرض دادی

يــوآفت يــې چــې ومالــره پــيدا شــوې

ويــل چاته کــړم نــظر پــه کومــو ســترګــو

دواړه سترګې چې زماوي محوې ستا شــوې

زه خــوتــاتــه ګــورم ته هــم ګــوره ماتــه

اوس چــې ستا شوم زه دلبره ته زما شــوې

داژړا درتــه زمــا څــه تــماشــا شــوه

چــې دې ولــيدم لــه ورايه په خندا شــوې

چــې نــظر پــه ســاقــي وکــړ زاهــدانــو

مــصلې يــې تــرپــه مــيود مــينا شــوې

تــرنښــتره هـــم تــرســرو صــنو بــره

ته بــالا پــدې مــوزون قــدو بــالا شــوې

تـــه په حُـــسن يې دوچـــند تـــرښـــايســـته وو

په صــورت هم په سيرت کې چې زيبا شــوې

دور نګي دې له زړه نه ځي پدی باغ کې

مـــحـــبت لــره پيدا ګــل رعنا شــوې

"۳٦۸"

| | |
|---|---|
| **چې په ټولو ښايسته وو کې چيده شوې** | دهــر يوصــاحب نظر پسنديده شوې |
| که جلوه دې کړې نه وي په صــفات کې | ته په ذات به کلــه چاوته لــيده شوې |
| تـــه زما دســترګو تورته مې ليمه يې | **ته مــې نورته مې بصرته مــې ديده شوې** |
| لـــکه والـــوزي له چـــا مرغه نيولی | هـــسې ته زمـــا له لاسه پريده شوې |

مـــاپه سل جـــفا دې یومانی ونه کړ　　ته پــه لــږ شکایت هومره رنجیده شوې
چـــې پیوندمې لـــه تاوکړ زما نورې　　که له چاسره رشتې وې بریده شوې
رنګ دنمر ځنګه زیږ نشي ستا په مخ کې　　ته غیرت دښـــایسته وو آفریده شوې
یوزمان هم نه بیلیږي ترې دلـچسپې　　ته زمـا په زړه کې هسې چسپیده شوې
لـکه ګل چې دشبنم　په نوغوړیږي　　هـــسې ته زمـا په اوښو بالیده شوې
مـــحبته چې پرې بار دزړونو پریووت
دواړه زلـــفې ددلـــبروخـــمیده شوې

"۳۶۹"

کـــه دچـــا آشنا پــه طمـــع ددنیا یې　　ولـــې لافې ددوستي کړې بیوفا یې
ددنـــیا دپاره ســـل ځـــایه یاري کړې　　هـــلوچانه کړې معلوم چې یارد چایې
چـــې د زړه ورپورې هـــسې دی تړلی　　دادنـــیا به څـــووی ته ترڅو به پایې
چې دچا تعلق زیات حاجـــت یې زیات وي　　که بادشاه ددرست جهان شي هم ګدایې
غـــمزده که ددنـــیا یې پـــه غـــمو نو　　ژاړه ځـــان خپل چـــې اخته په لوی بلا یې
نفع بیا مونده ترې چا چې ته به مومې　　سودبه زیان کړې ددنیا که په سودایې
بادشاهې ده استغنا چې پرې یې نږدې　　دولتمندې [1] لـه دنیا که بې پروایې
مـــعرفت لـــره پیداشـــوې بې یقینه　　ته ګـمان کړې چـې دنیا لره پیدایې
محبته ګـفت وګوی عاشـــقانه کړه
ددنیا مذمت بـــس کړه څوبه وایې

"۳۷۰"

کـــه ګنجونه په منت بخښې لئیم یې　　یو فلوس که بې منت ورکړې کریم یې
چې عاشق شوې نورحکمت څه لره غواړې　　دغــه مینه دې حکمت ده ته حکیم یې

---

(۱) دولتمندې : دولتمندیې

ددوېږ سياهي دې پرې نه وله له زړيه تــه بـدبخـته دازل سيه كليم يې

پــاځــه زردارويې وكــړه پــه شرابو اې رنخـوره كه په رنخ دغـم سقيم يې

دمـستانو كلام نغوږه كه په هوښ يې مـينو شي كوه په طبع كه سليم يې

يووصال دى بل هجران ديار دى واوره پــرسنده كه دنـعيم و دجـحيم يې

كــه مينوش دحقـيقت يې له ساغره مـعلوميږي چې په شرع مستقيم يې

تكــلم كــوې دعــشق كه پـه خبرو لــه معشوق حقـيقي سـره كليم يې

له ازله زه مخصوص په محبت يم

مــحبــته ته زمــا يار قــديم يې

"۳۷۱"

اې چــې هسې قــوت ناک وپــهلوان يــې

راشه ښيې [۱]وعشق ته تينگى كړه كه ځوان يې

دروازه دې ديقــين كــړه پــه ځــان پــورې

مقــيد پــه قــيد دوهــم ودگــمان يــې

كــه آگــاه نه يــې له ځــانــه بد خــصلــته

بــيهوده دخــداى دپــوهې په آرمــان يې

په هـيځ شان دخداى به دوست نشې غــافـله

چــې داهسې په غــفلت دښمن دځــان يې

كــه ځان وپــيژنې هــله بــه مــعلوم كړې

چــې ته څـله پــيداشــوى په جــهان يې

كــه دزړه ژبه دې نــشته پــوچ گــويې كړې

چــې دخولې پــه ژبه درسته ورځ گــويان يې

---------

(۱) پښې

ددنیا په تماشو چې هسې غولیږې
لاسواترهلکانو هم نادان یې
تمام عمر دې خپل تیرکړ په غفلت کې
نه افسوس کوې تراوسه نه پښیمان یې
یوقدم وسمې لارې وته نه ږدې
چې روان یې په کږې لارې روان یې
یوساعت هم وبهبود ته نظر نه کړې
روا دارهره ګړی دخپل نقصان یې
خونه ورانه به دې وي بې محبته
محبت که دې پیدا کړکوروډان یې

"۳۷۲"

هم په رنګ هم په بوی فخر دزمن یې ‏ ‏ ګله ته ګل شهرت ددې چمن یې
که دې پټه خپله خوله لکه غنچه کړه ‏ ‏ خوخاموش به یې آخر په خندیدن یې
شي فګار پرک دګل چې پرې قدم ږدې ‏ ‏ سرتر پایه زیات تر ګله نازک تن یې
ګل په باغ کې پژمرده شي په څوورځې ‏ ‏ ته مدام تروتازه پداګلشن یې
سرتر پایه که ګلزار نه یې نور څه یې ‏ ‏ چې ګلروی وګلرخسار وګلبدن یې
لاله لب ونرګس چشم وسنبل موی یې ‏ ‏ په رنګ ګل په خوله غنچه په بوی سمن یې
که یوسف بینایي بخش دیعقوب شه ‏ ‏ ته زما جان بخش په بوی دپیراهن یې
لکه ګل هم دغه دوه درڅخه نشته ‏ ‏ ته په عهدوپه وفا کې مبرهن یې

هم پدا چې نوبهار یې سرتر پایه
محبت دی ستا شیداته یې مین یې

"۳۷۳"

مـــعشوقه چــې بیوفا ده هــغه تـــه یې چــې جـــفالره پیداده هــغه ته یې

پــه یاري کې چارې تل داغیاري کړې چــې آشناهــم ناآشنا ده هــغه ته یې

په تمام جهان کې شوردې دښـایست دی چــې یې هر پلو غوغاده هغه ته یې

قـــراري نه مـومـــي خـــلق له آشوبـه چــې فتنه یې تل بـرپاده هغه ته یې

ســـتا د مخ شمس وقمر کله سیالي کا چې په حسن کې یکتاده هغه ته یې

یا آفـت یې یا قیامت یې غرض دادی چــې په قــدبلا با لاده هــغه ته یې

دهــر ځیز یو مثل شته دی په عالم کې چــې بې مــثله په دنیاده هغه ته یې

نه رعــنا شته نه زیبا شته په جـهان کې که رعــناده که زیبا ده هــغه ته یې

چــې وتاته پــه وفـــا دی هـــغه زه یم چــې وماته په جــفاده هــغه ته یې

محبت مثال چراغ څه کا په کور کې

چـــې دده د کـــور رڼا ده هغه ته یې

## ي

"۳۷۴"

په صيقل دمحبت د زړونو زنګ ځي

که مورچې وي دمدت په يوه درنګ ځي

نامردان دي چې دنفس په لارې درومي

مرد هغه دی چې له دې لارې له څنګ ځي

په دانه ځي وګلشن ته مې ګلرويه

چې دوړاندې يې دګل له مخه رنګ ځي

عاقبت سرومال ځي دعشق له لارې

په ورنبي قدم يې ټول ناموس وننګ ځي

پــوخ عــاشق په عـاشــقي هــغه بالــه شي

چـې له شوقـه په بــل اورلــکه پــتنګ ځــي

عــجب زیب کــالــیوني چــې ســتالــه دره

درست پــه خاورو آلــوده لکه مـلنګ ځـي

صـــوبه دارد عشق لـه زړه مې صبرو تاب وړي

باج ګـذار شوم چې له مزکې مې قلنګ ځـي

بــیتابي مــې دی څــوک هــلته یې کــا یاده

چــې آرام دپــاره یارمـــې پـه پالــنګ ځـي

مــحبت دې دنــګاه په غــشي وویشت

په ســینه یې ســتابانه لــکه خدنګ ځي

"۳۷۵"

چې شهامې په څهره زلفې خورې ځي یوعـالم ورپسې کاناري سورې ځــي

چــې روانه شي پـه لار دحسن شاهــه مــشتاقان ترلي ورپــسې پرې ځــي

مــحرومان هم په امید ورپسې یون کا چې له چاسره کاوشتي مسخرې ځي

پـه درګاه یې دهــغو خدمت قــبلیږي چې سرونه په لاس ایښې دمجرې ځي

ټول وګـړي دسرووینواوښــې توی کا چې په خوله یې ایښې پان وي شونډې سرې ځي

کــه زرهــیره زوره وره ســیلی راشي دسوخته کله لـه دره یې ایرې ځي

دکــړو ورځولینده چې کاندي غـرقه دبنــو غـشي په زړه مې ترپرې ځي

پـه خندا چې شي روانه مهجوران هــم **دوصال یې امید وارشي په اسرې ځي**

چې شهاکاندي ښکاره وروځې خمدارې

پــه ځګر دمــحبت تــورې تیرې ځــي

## "۳۷۶"

جان افزاو روح افـزامې شونډې ستا دي   خطرې لـه مـرګه اوس کله زما دي

په څه شان وکاندي څوک خبره حقه   پـدا دوز چې صواب ويل خطا دي

چـې په زړونوهـيڅ اثر دمـينې نه وي   هـغه زړونه نه دي کانې دبيد يادي

لـکه ته لـرې پـه حُـسن اندازونه   پـه خوبـانو کـې راوښـيه دچادي

څوک دنيا غواړي څوک دين غـواړي له خدايه   مـاځار کړي ترخوبـانو دين دنيا دي

يامـحبوب په دنيا راکړې زمـا خدايه   يامـې پورته له دنيا کړې دوه وينا دي

بـې له ياره په دنـيا وعاقبت کـې   عـاشقان لـه دواړه کونه بې پروادي

زړونه مـفت دعاشقانو ولـې ناخلـې   دانقدونه چې درکړي خداى ويړيا دي

واړه ډک بوالهوسـان دي په دنيا کې

عـاشقان چې مـحبت کانا پـيدا دي

## "۳۷۷"

هــد هدان قـرقره دار دي   دهــماى دوړاندې خوار دي

جـنس يودهـمه سـپودى   ځـنې پوچ ځـنې پـکار دي

دغـه سپي کوڅه ګـردي کا   دغـه سپي دي چې دښکار دي

بـاز تپس په يو صـورت دي   ولـيکن بيل پـه اطـوار دي

دښکار غوښې خوري بـازونهٔ   تـپسان تل مـردار خوار دي

هم هوسې دي په نورملک کې   هـم پـه چـين وپه تاتار دي

هـغه صـرفـې لړې پچې   دغـه واړه مـشکـبار دي

په عـراق هـم دي آسـونه   هم په نورملک کښې بسياردي

دنـور ملک ولـې آسـونه   هـسې کلـه پـه رفـتار دي

نـــیشکر دي پـه دنیا کـــې   هـم نلـونه ډیر بـیشمار دي
هـــغه ډک دي لـــه شکرو   دغـــه تش خالي بـــیکار دي
مـــحبته جـــدا هـــر څه
پیدا کړي کرد ګار دي

"۳۷۸"

چـــې دزړه ســـترګـې دچا دیار پـــه لـــور دي
په جـــهان کښې دهـــغه سترګـــې څـلور دي
دمـــلیـــح حـــسن دې پـــاتـــې دې لاتـــړي
غـــه مـاهیان چـې ساکـــنان دآب شـــور دي
چـــې يې اورم په عـــالم کـــې افسانې شـــوې
زما ســتادعـشق قـــصې چـــې کوراکور دي
بـــیهوده خپـله کـــاسه کـــړې ورته وړانـــدې
کـــنډولي دآســـمانونو خـــود نـــسکور دي
نـــن دهـــجرشـــپه سبا ورځ بـه دوصـــل وي
غـــم ښـادي ســره هـر کـــله خوروروردي
زه عـــاشق یم هـــیڅ مـــې بې لـــه وفـــا نه زده
بـــیوفـــا بـــوالهوســـان وي هـــغه نـــور دي
ســـپین به نشي درته زړه دهند دخلقو
محـــبته ددې تـــورو زړونه تور دي

"۳۷۹"

دواړه ورو‌ځې ســـتا چې دتیرې تورې په څیردي
تاوته دي وروځـــې ولـــې ماوته شـــمشیر دي

یــودمــینې حرف خــومــې یاد دی معــلمه
لــوستي چې مې نورووهــغه واړه زما هیردي
څــه يې کړم که ډیردي نعــمتونه په جــهان کې
بې لــه شکر لبې هر خواړه راته ګــنده هیر دي
وبــاسې که ته مې په راتــله خــپل وبه بــاسې
زه تــرې وتی نشم ســتا غــمونه راچاپیر دي
زور رابــاندې راوســت رقــیبانو چــې ته لاړې
راشه بې لــه تا داپشونګړي رابــاندې شیر دي
عــشق ظاهر دولت دی بې بــصره ولــې ناخلې
ړوند پــه سترګو مــشه خزانې درته برسیردي
حال مې راشه واوره دمجنون قصه به څــه کړې
تیر حــکایتونه چــې شــوپریده هــغه تیر دي
جنګ دغه دی غواړي پهلوان دعــشق ولاړ دی
**را دې شي مــیدان ته که ســهراب رستم دلیر دي**
بــارپــه هــر آدم دي ګــناهــونه مــحــبته
فرق دی هم داچې په چا پاودي په چاسیر دي

**"۳۸۰"**

پــه طرف درقــیبانو تل قــدم ړدي دریغه یار زمــاپــلوته قــدم کم ړدي
تربــخیله لابــد تر هـــغه کــریم دی **چې په چاباندې منت دخپل کرم ړدي**
چــې بخیل یوه کنجــکه چاته ورکا **هــم هغه وخت په خپل ځان نوم دحاتم ړدي**
بار بــردار مې خپل ګني له دې کبله پنده زما دزړه په سرد دردوغم ړدي

په ښایست چې ډېرنازیږي لـه غروره یارپــه سرباندئ دستارخپل کلـه سم ږدي
مـلایک تر هـغه ځـایه کله رسـي ترسـدري هورته که ښـه[1] ږدي خوآ دم ږدي
زه افـسر دبادشـاهی وهـم په لته چـې قدم زمـا په سر هغه صنم ږدي
ریـایی سـفرې [2]هـډونه قـبلیږي شیخ عبث قـدم په لارې دحرم ږدي
چـې ګـلرویه مـخ پنهان کا محبته
لکــه ګل په زړه داغونه دعالم ږدي

"۳۸۱"

چې دې ورکړل وخوړل هـغه دې خپل دي
هــرچــې تا کړل ذخیره هــغه دبـل دي
یود مــال وي غرضي بل دخذمت [3]خــپل
دمــخـدوم ودخــادم سره غولـول دي
چــې یې ســوی دجهنم تــراوره زیات دی
یــود وه داغــه هم دهــجرلکه سل دي
ستمــونــه دې آسـمانــه ستــمګــاره
پــه بل چـاوې کــله کلــه په ماتل دي
تــل کــنځل [4]کــوه ومــاته لــب شکرې
لـذت بخش زما دزړه خوستا کنځل[5] دي
پــه ځــه رنــګه یې وچــاوته ښــکاره کړم
چـې دعـشق داغونه پټ مې په کوګل دي
مــحبته خود خـاطر به دې پــریشان شي
چــې وزلفو ته یــې هــسې دې کتل دي

---

(۱) پنبه
(۲) سفرې = سفریې
(۳) خدمت
(۴) (۵) ښکنځل

"۳۸۲"

کـه شـمشاد وصـنوبر په قـامت سـم دي

چـې بې ګـورم سـتاتر قـده پـورې خم دي

هـغه بـایـلي چـې غـمونـه ددنـیا کـا

هـغه وګـتي چـې تل دعـشق په غـم دي

هـسې ډیردي چـې بـدنـام په بې ننګۍ شي

چـې له نـنګه نوم پیدا کا هـسې کـم دي

کـه درون بـیرون یـې وسـوزي ایرې شـې

چـې دعشق لـه اوره تبنـتي هـغه ګـرم دي

چـې ته لاړې پـه فـراق کـې دې یاران مـې

مـحـنتونـه رنـج وغـم درد وآلـم دي

پـه افـسر دعـاشـقي چـې سـربلـند شو

هـم هـغه پـه دوه جـهـانه مـحترم دي

چـې په پـتوسـترګـو سـیر دجـهان کاندي

زړه یـې جام جـهان نمای دی هـغه جم دي

کـه شاهي غـواړې ګـدای دعـشق د درشه

ګـدایان یې بـادشـاهـان دکـل عـالم دي

غـوځ په تیغ دمحـبت مې شعر اوري

چې اشعار مې په پرهار دزړه مرهم دي

"۳۸۳"

اړولـي دې دچـا په کُـشت وخـون دي

چـې چشمان دې نن پدارنـګه ګـلګون دي

په جهان ډيرې ليلا دزمانې شته
ولې واړه ستا په عشق لکه مجنون دي

په هيڅ وخت کې وهيچاوته سم نه وي
تل کاږه چې گرد شونه دگردون دي

په حساب په شمار ظلمونه بې رانغله
چې ترشماره تر حسابه ډير افزون دي

سرې لالې [1]شي سرراوباسي له خاکه
کشته گان دې ډير په مزکه چې مدفون دي

لالې [2]هم لري غم ستادسر ولبانو
چې په داغ د زړه له مزکې رابيرون دي

که دولت غواړې دعشق کړه مزکه خپله
چې هم هلته خښ [3] گنجونه دقارون دي

شراب سکي [4] دخرابات دپيرله اذنه
پدا کار رندان له پيره خپل ماذون دي

چې مې وليده قدونه ددلبرو
محبته ستا مصرع هسې موزون دي

"۳۸۴"

ستا څهره قرآن کتاب درې واړه يودي
ستا خوله عطر وگلاب درې واړه يودي

څه تعريف دې دسروشونډو دبهار کړم
لب لا لا [5] لعل خوشاب درې واړه يودي

-----------

(۱) سره لاله
(۲) لاله
(۳) ښخ
(۴) څښي
(۵) لاله

یو نظر چې کړې تمام عالم بیخود شي

ستانګاه جادو شراب درې واړه یو دي

په ناله مې دسرود نغمه ده واوره

دا نغمه چنګ ورباب درې واړه یو دي

دعشق اور داهسې وسول اوس چې ګورم

زړه ځګر مې او کباب درې واړه یو دي

دجفا په سنګ مې ولې نه پوهیږې

زما زړه ښیښه حباب درې واړه یو دي

محبته خلق لاهو دې کړه په اوښو

اوښې ستا باران دریاب درې واړه یو دي

## "۳۸۵"

ستا خبرې که شکرې نه دي څه دي **که شکرې ستا خبرې نه دي څه دي**

**چې په ماغوندې ګدای التفات کاندي** که شهي غریب پرورې نه دي څه دي

سیم وزرڅه کړم چې ښې ترسیم و زره که زرین شې سیمین برې نه دي څه دي

**چې ترې ماه په زړه داغي دي دامهرویې** په انوار که نورقمرې نه دي څه دي

ناکردې چې هسې کا په عاشقانو **معشوقې که زوره ورې نه دي څه دي**

چې سایه په ځلمو کاندي که داجونه **سر په سرپرې پیکرې نه دي څه دي**

**په افسون چې زړه دخلقو پیدا شان وړي** سترګې ستا که سحر ګرې نه دي څه دي

وروځې ستا چې خونریزي کادعالمو له شمشیره که همسرې نه دي څه دي

محبته تا په شعر ګوهر بار خپل

که پیبلي مرغلرې نه دي څه دي

"۳۸۶"

بــیدردان بــلا وهلي دي که نه دي بې غمان له عقله پلي دي که نه دي
چې خپل زړونه یې له عــشقه ودان نه کړل ویجاړ کړي هــغو کلي دي که نه دي
بیهوده دنــیا دارانو په ځــان بــاندې مــحنــتونه راوسـتلي دي که نه دي
نیک مــردان لــکه مرغه بې بال وپره وآســمان ته الــوتلي دي که نه دي
رهــروان چې ګني سهل تله په لارې پــه طریق دمــینې تلي دي که نه دي
**شهسوارا نودعشق واګې دمطلب خپل بنه مضبوط په لاس نیولي دي که نه دي**
چــې دمینې له شرابو توبه ګار شول لــه ایمــانه جاروتلــي دي که نه دي
په عـــاشق بواهوسان به غــالب نشي پشونګړي مزري ته غلي دي که نه دي

روان شوي چــې په لارد محبت دي
ومــنزل ته رســیدلي دي کـــه نه دي

"۳۸۷"

**ډیر علــمونه دعارفــو په سینه دي چې تعلیم یې زړه په زړه وي درسي نه دي**
**نیک ته نیک بنکاریږي بد ته بدځرګند شي** خــپل اعمال وهر سړي ته آئینه دي
ستا دمینې که سبب نه دی نوڅه دی خپل پردي چــې واړه راته پــه کینه دي
طــالبان چې په طلب دیار روان شي کــله اړپــه پــنجــشنبه پــه آدینه دي
نارینــه بدکــار په ځــای دي دزنانو پــاکې ښځې پــه مقام دنارینه دي
**که هرڅوقهر دریاب وي ډوب به نشي** دهـیلۍ واړه بــچي چــې شبینه دي
دزمــزم په اوبو هـــلوپاک به نشي نــاپــاکان چــې په مکه ومــدینه دي
واړه یودي که زړه نه ترې ورپــورې پــوشاکونه که زرین که پشمینه دي

لوی مقام لري چې زړونه ددردمــنو
محــبته دنامـــه دې نــګینه دي

که باطن وته نظر کړې نظارې دي — پټې کړې که خپلې سترګې ننداري دي
چې یې ګورم لکه نورهسې بلقیږي — رخسارې دي ستا که دواړه مه پارې دي
زه ګلزار ته څله درومم بوالهوسه — چې ګلزار مې دخوبانو رخسارې دي
مزدوران دي په اجرت مخلصان نه دي — عابدان چې وجنت ته یې اسرې دي
واکسیر ته کړه نظر حقیقت بین شه — چې په اصل کې د زرخاورې ایرې دي
قیل وقال دعشق کړه لهوولعب پرېږده — چې خبرې نورې وشتې مسخرې دي
ناداران کله زیبا معشوقه مومي — چې مثل دي دامشهور دخوار وخرې دي
عجب وخت دی مرني دي چې په کوزه — دهغو په سرنن کاندي قرقرې دي؟
دعاشق مال و دولت درد ومحنت وي — که څوک داغواړي راڅخه ذخیرې دي
دحجاب پرده له مخه څخو واخله — تانتلي دې دمخ په نندارې دي

داسرخي نه ده دپانو محبته
خونخوارې کا چې یې شونډې هسې سرې دي

"۳۸۹"

تل ذکرونه کړه دمینې چې حالي دي — څه به کړې نورې خبرې چې قالي دي
مې دعشق زړه به دې داغ کابوالهوسه — چې داتیز لکه شراب پرتګالي دي
ګل دباغ څه کرم چې بې له ګلرخانو — داغ ګلونه مې په زړه دنهالي دي
که تورکانې نه دي نورڅه دي دلبره — هغه زړونه چې له درده دي خالي دي
دآفتاب رویو په حُسن څه نظر کړم — له خورشیده یې مخونه په سیالي دي
خود زیبا یې نه په تازیب دکالو شي — زیبایش دنازیبا معشوق کالي دي
که نظر کړې واړه ډک دي له رحمته — جمالي یې دي صفات که جلالي دي

تل فتنې وخرخښې کاکه يې ګورې　دجـهان خلـقې واړه جـنجـالي دي
محـبته ډک په اوښـودي بانه ستا
که اوريځي تـورې داپشکالي دي

"۳۹۰"

داکـم عقل چې لـه عـشقه بي بهرې دي
ځـناور دي يـاطـفلان دګـهوارې دي
که عـشق اور نه دی حيران يم داکوم اوردی
چـې زمـا پـه زړه يـې ډکې شرارې دي
تـه آفـتاب يې په ښـايـست دهـمه واړو
کـه سپوږمۍ ده په آسمان که ستارې دي
ډير مخلوق چې په کوځه کې يې شهـيد شه
دسـرونـو هـلته جـوړې مـنارې دي
سـتا دزړه سـخته قـلعه بـه کرم مـفتوحه
چې نالې مې په دې ځای کې غبارې دي
وخـبروتـه دې خـرنګـه غـوږ نـږدم
چـې خبرې دې دغـوږمې ګوشوارې دي
په جهان کې دې دعشق داهسې شور دی
مـحبت مـحبت هـر طرف نارې دي

"۳۹۱"

که مـې کړې نه وی [1] تاسره ياري　پـه ما ځـله بـه راتله هـسې خواري
ځوهوښـياروي هومره رايشي پرې غم　دسـړي دځـان بلاشي هـوښياري

---------

(۱)

تـــل يـــې وي زمـــا پلـــووته نګـاه　چـې مدام نظر په ښکار وي دښکاري

نـــه پوهـــېږم په زړه غـــم لرم دچـا　چې زما له سترګو نه ځي خونبار ي

په فـــراق دې دعـاشق دی دااحوال　بيدار پروت تمامه شپه ستوري شماري

څـه حاجت عاشق معشوق ته دربار　زړه خود کـــاندي دمـينو ريبـاري

ځان غولوم ډيرولې څه کړم بې لـه تا　پـــه هيڅ شان نه ځـــي زمـا بـيقراري

کـــوم جهان عـــشق راته وښـوالهـي　چې مې شوه له درست جهانه ويزاري

ترهــغه تندرست وم څـوراڅـخه وې　چـــې ته لاړې پـــه ماراغـــله بيماري

محـــبته دګـــلروی په وصـــل هم

نه ځـــي ستا لکـــه بلبل آه وزاري

"۳۹۲"

چـــې ترمرګه مرېخواشي هغه نه مري　تل تر تلـه يې بقـا شي هـغه نه مـري

په عـــالم کې چې دچا دنيکی غـږ شه　نوم يې پاتې په دنيا شي هغه نه مري

ګوښه ونيوه هر چا چې له دې خلقو　تل ژوندی لـکه عيسی شي هـغه نه مـري

عشق جهان دی بل چې څـوک پيداپې کاندي　دادنيا ورته عـقبی شي هـغه نه مري

ستا په توره کې شايد آب حيات دی　چې شهيد په توره ستا شي هغه نه مري

چې عاشق شي تل حساب يې خدای روزي کا　پـه جـهان که فـناراشي هغه نه مري

دجـــهان دعـشق عـجبه کار خانه ده　چـې مولود پکښې پيداشي هغه نه مري

مې دعشق آب حيات دی که چـانوش کړه　طويل عمرې [1] خضرآساشي هغه نه مري

هـــميشه کـــلام باقـــي وي محـــبته

په کلام چې څوک ګوياشي هغه نه مري

---

(۱) عمرې = عمرېي

"۳۹۳"

مــهرومه آســمان دپاســه دي که ستوري

هــره شپه پـه غــتو سترگـو درته گـوري

لکــه قــهر پــه مريــونو خــاوندان کــا

معــشوقـان خپل عـاشقان داهـسی زوري

عــجب داچــې دي بــيرون ترشش جــهته

اوکــه بياگـوري موجـود دی په هرلوري

څـه عــجب که بـياطوفان په جـهان راشي

چــې باران غــوندې زمـا دااوښېووري

قــوت ناک په خپل قــوت دې غره نــشي

عشق پــه دم کې زوره ورکاندي کمزوري

چې خپل جنس لري کاسد څه به سودا کړي

بدکــالی کله څـوک پـيري يايې پلـوري

ډير مــلوک چې تخت نشين وتا جداران وو

مــيني وگـرزول ښې ابل سر ســرتوري

لــکه ونــه پـه ســيلي وخــوځــې تولــه

پـه هــواد هــجر زړه مــې هسې ښوري

محــبت په هــوس نشــي مــحبته

بوالهوس له مينی ځان ولې نه ژغوري

"۳۹۴"

که مشــغول شــوې په کار ونــودوگـړي

خــپل کارونه به دې پاتــې شــې نيمگـري

رقـــيبان خس وخـــاشاک دي څه يې ګورې

په جـــهان کې هـــسې ډېر ګـــرزي بـادوړي

کـــه په شونډو يې داخپـــلې شونډې کيدې[1]

ته بـــه هم لکه عـــيسی ژوندي کـــړې مړي

رابه نـــوړي خوږشمر چې اصـــل يې تريخ وي

زرغـــون کـــلـه شـــي انـــاردنـــيم پـــه زړي

مـــسلم چـــې په لويې کـــې لـــکه غر شوې

ولـــې غـــرهم عـــاقبت خـــووبـــه لـــوړي

**که نيک کار کړې که بدکارکړې اختيار ستادی**

رابه شـــي دوړانـــدې ستا کـــارونه کـــړي

زلـــفو ستالـــه هـــره ماره بيخـــطر کـــړم

اوس مـــاران راته ښـــکاريـــږي لـــکه پـــړي

دنـــيا دارسيم وزر زيات ګڼي تر هر څه

مـــحبـــت وته کـــمتر دي تر خـــسړي

"۳۹۵"

زړه مې هـــسې خال وخط يې پـــټ پنهان وړي

په شـــپه مال دچا په غـــلا لـــکه دزدان وړي

کـــه فرياد نه کـــا عـــاشق بـــيچاره څـــه کـــا

ظلـــم ستاتر کومـــه پورې په خپل ځان وړي

لـــه پنـــجې دبـــنو زړه مـــې هـــغه ستـــرګـــې

لکه بـــاز چـــې زرکه يوســـې پـــداشان وړي

---------

(۱) کنبېږدې

ستاسو دازده آخر به یې پاره کا
له جنونه چې پنجه پخپل ګریوان وړي

تل په مخ یې تارپه تار زلفې پرتې وي
دهندو نازونه ګوری مسلمان وړي

ستا عاشق به په دریاب دعشق څه زیست کا
چې یې خس غوندې دابحربې پایان وړي

داد چا پمه لاس چوګان دښایست راغی
چې دحسن ګوی له نمره په میدان وړي

غلامان هسې فرمان دخداوند نه وړي
عاشقان چې دمعشوق لکه فرمان وړي

مخ دښکلیو په آخر وخت یې ونه لید
له جهانه محبت دغه آرمان وړي

"۳۹۶"

که خوله راکړې لب شکره هرحاجت مې روا کیږي
ته حاتم د زمانې یې زما طمع له تا کیږي

ته مسجود دزمانې یې شابه هیڅوک درته نه کا
بې ادبه هغه کس وي چې قبلې ته یې شا کیږي

دایاز محمود قصه مې چې ولوسته شوه معلومه
په اخلاص چې څوک خذمت کاکه بنده وی مولا کیږي

هوسناک به عاشق نشې اوهوس به عشق و نشي
دا رښتیا هغه دروغ دي دروغ کله رښتیا کیږي

څو کعبه مقابل نه وي فاسد نمونځ دنمانځ ګذارشي

چې قبله دمخ دې وينم هله نمونځ مي ادا کيږي

پـلـيدي چــې ده ظاهـــره په اوبوســـره شي پـاکه

نجاسـت چې دباطن دی بې له عـــشقه نه پاکيږي

نن دپلارکسررا يادشه زړه مې وايي چې تضمين کړه

هـغه کسر دادی واوره چې تضمين يې له ماکيږي

«وحافظ ته دعاکانۍ چې هوري له سختو خلاص شي

ډير نجـــات د ګـنهکارو د مـومن په دعـا کيږي»

مجنون تيرشه فرهاد تيرشه په صحرا دعشق اوس زه يم

څــوچې بې دمـــحبت دی يومزري به پـــيدا کـــيږي

"۳۹۷"

ستا په غـم کې به ژوندون مې څنګه کيږي چـې خوناب دزړه له سترګو مې بهيږي

روغ په څه شان به دازخم کړې طـبيبه پـه پرهـار دزړه دارو چې نه لګيږي

بې حـــجابه په لحدمـې هـم تيرنه شه دريغـه دريغه چـې تراوسه لاشرميږي

دمـــريد زړه چې رهبر دلارې نه وي پــه پــيرانو ومــــنزل ته نه رسيږي

په سل کاله مې ارمان له زړيه نه ځي بې لـــه ياره چـــې يودم عمر تير يږي

که له درده يــې تارې وهم مـعذرويم چې پرهـار په زړه دچاوي خوخو کيږي

که په غم يې شم خاموش ســـهيدی نه شم اوکـــه چرې په فـرياد شم زهيريږي

چــرته شپه خودې بېګاده روڼا کړې چــې دې سترګې خواب آلودې معلوميږي

چې له خدايه ملقب په محبت شوم

زمـــا بــې له مـــحبته نــــه تيريږي

"۳۹۸"

په نیکی بدي دهیچا هیڅ نه کیږي **هرچې خدای کا په بنده هم هغه کیږي**

**دهجران په رنځ رنځور دی بې له وصله** پـه دارو درمان رنځور دی نه ښه کیږي

ستاپه مخ یوه شکوه نه شم کولی البته حجاب دمخ له مخه کیږي

ملاقات یې شوی نه دی ځکه نه شي کـنه نورکارونه شوي همه کیږي

زمـا زړه لکه ښیښه ستا لکه کاڼی داجوړښت به زما ستا څرنګه کیږي

مرګ ته هم وایې وصال رامعلو میږي **چې زه ومرم ستاوصال به هله کیږي**

**خدایه ورک هغه بی درد کړې له جهانه د درد منوچې په مرګ یې سخه کیږي**

اختلاط کوي بې زړه عالمو څه زده تـه یې پوه یازه پو هیږم لکه کیږي

هـغه شوخ چـې دنګا غـشي ګذار کا

ورته زړه د محبت خود نخښه [۱] کیږي

"۳۹۹"

داپه خلقو کې چې اوس آشنایي کیږي اشنایي یې مـه بوله رسوایي کیږي

پارسایي شوه اوس داهسې چې ترفسقه فـضیحته لاسوا پارسایي کیږي

هیڅوک نه پوښتي صلاح له دانایانو **دنادانو پـه هر ځـای خود رایي کیږي**

ددانـا کا رونه واړه نـادانـي شي **چـې نادان کاندي هـغه دانایي کیږي**

چـې توانا ووناتواني وربـاندې راغله چـې ناتوان وو دهغو توانایي کیږي

**چې یواز ې ګرزیدل اولـس داران شول** روخ پـه روخ داولس دارتنهایي کیږي

هـریو خردی مـزین په زیـن دزرو هـرزمان دنـا زیبا زیبـایي کیږي

په عـبرت کـه نـظرو کړې مـحبته

پدا وخت کـې تـماشا دخدایي کیږي

---------

(۱) اصل : نښه

"۴۰۰"

مــحبت لـــه محــبته نه مــړیــږي    لایــې مینه ســـواکیږي څــوزړیږي
میني اوس خوتړي دغم تیشه کړه پورته    چــې دزړه مــې عمارت واړه نړیږي
که لـــه غمه یې ساړه آهـــو نه اخلم    چې پداراضی دی لایې زړه سریږي
بې له تاځرنگه خوب راشي چــې خیال ستا    لـــکه مالگې مې په سترگو کـــې وریږي
په راتلو دې پدارنگ خاطر مې واشه    لـکه گل چې بهار راشي وغوړ یږي
زړه زماغـمگین کړې بیاوایې چې خانده    څـنگه وخاندي دچاچه زړه زړیږي

مـــحبت همدم زمـــا په هـر نـــفس دی
پرې به نږدم مـــینه څومې ســـاه غړیږي

"۴۰۱"

خـــبردار بنده به هـــله له مولاشــــي    چـــې غافل له دې دنیا وما فیها شي
که لاس پورته له دنیاوله عـــقبی کړې    داجهان هغه جهان به دواړه ستاشي
په خودي بـنده له خدایه لـــرې وزي    چې خودي شي لـرې خدای پخپله راشي
خط چې وتوکیده نور دې دمـــخ زیات شه    چې سپوږمی وي په هاله کې ښکلې لاشي
زلـــزله د زړه که څخو کړم ظـــاهره    اوس بـه دامزکه آسمان وته بالاشي
څو دې مخ پټ کړی نه دی له اغـــیاره    مـــخ دیاربـه درته کلـــه هـویدا شي
چـــې تیاره دتورروزلـفو شوه راباندې    اوس که خدای کاندي په مخ به مې رڼاشي
په هرزیان کې به دې ســـودوي خریداره    په بازارد محبت که دې ســـودا شي

ترقـــیامته په مـــیدان د محـــبت کې
کله ځوان به مـحبت غوندې پیداشي

"۴۰۲"

ژ راتلـــه يې چــې زمـــا خـــونه آباد شـــي

دانامرادزړه مـــې به هـــله پخـــپل مـراد شي

حــې دميني عـــمارت قـــايم پـــه زړه کـــا

پـــه دوه کـــونه دهـــغه محـــکم بنـــياد شي

دقـــيامت په ســـخته ورځ په خداى باور کړه

چــې دعشق په غـم کې مري هغه به ښاد شي

واويـــلا که ستا پـــه غـــم کې کړم معذوريم

ګـل چــې ويـــني بلـــبله پـه فـــرياد شـــي

پـــه دنيا کـــې لـــه ډيـــوې ډيـــوه بلـيږي

چـــې شاګرد شي څـوک دچا هله اوستاد[1] شي

کـــه بـــقا غـــواړې لـــه اصـــله جدامـــشه

چې سروباسـي حـــباب عمرې[2] بـــرباد شي

کـــه ته نوم په بـــدى ياد نـــه کړې دمـــريو

ســـتابـه هـم آخـــرته نوم په نيـــکوياد شـــي

معـــشوقه شـــيرين دهـــانه هـــغه مـــومـــي

بيـــصرفې چـــې پـــخپل سرلـــکه فـرهاد شي

زړه ســـنګين به ســـتا هم ورته پاتې نشي

چـــې په آه دمحـــبت نرم فـــولاد شـــي

"۴۰۳"

ســـتا په مخ کې ښه ادارانه اشعار شي   چــې طوطي آئينه ويني په ګفتار شي

---

(۱) استاد

(۲) عمرې= عمري

که ادنی اعلی رتبه غواړي خپل سـرخوري دمـیږي چې اجل رایشي پـردارشي

وآسـمان وتـه نـظر په غـوروکړه هـم هغه مومي لوېږي چې نګونسار شي

پـیري درغله غافـله ولې ناست یې چې سحر شي مسافر کوچ ته تیار شي

دځواني قوت دې لاړهم په هـوښ نه شوې دکیفي چې نشه کوزه شي هوښیارشي

دصدف په شان په لږکه قناعت کړې دغه لږبه لـکه دُردلـه[1] بسیار شي

حرص کم کړه چې محفوظ شې لـه زحمته اغیږلی شي هغه چې بسیار خوارشي

مـخارج پـه اندازه دمـدا خل کړه که اوبه لـه غـره رانشي وچ رود بـارشي

که طالب یې دعـزت هـنر پیدا کړه پـه جـوهر سـره دتورې اعـتبار شي

زاهـد شپه چې روڼۍ[2] وینې دخلق سکي[3] لـکه ماشي خونخواري له شب بیدار شي

شي مقبول به دمومن که دې په غاړه دسلیمان تسپو په شان محکم زنار شي

دتـسپو امام چـې وزي لـه حسابه پـه زمره دامامـانو کې په شمارشي

له سـیلی دحـوادث نشي بې ځـایه لکه غرچې ځوک په عشق کې استوارشي

په کیمیا دعشق به زرشي هم هغه زړه چې سیماب غوندې له غمه بیقرار شي

که ځان وچ لکه لرګی کا ځوک په عـشق کې لـکه ونه به تازه په برګ وبار شي

چې یې ځي اوبښې له غمه دګلرو یې دهـغه سـینه تـخته دآبـشار شي

چې دمینې کاندې کار پـه نورو کارو لـکه لاس درعشه دارلاس یې بیکار شي

پـس له مرګـه هم کرم دکریم نه ځي دهـمای پرمګس ران دشهریار شي

صبرغم په عیش بدل کاکه صابر شې وخلیل غوندې به اور درته ګلزار شي

سـست بنیاد پـاینده چانه دی لـیدلی په لږبادکه ډیرلوګی وي تار په تار شي

توره شپه دغـم چې راشي په چاباندې رفیقان یې هم جداترې سایه وارشي

په عـدم که راحت نشته طـفل ولې چې پیدا شي لـه ژړایې سریکار شي

-----------

(۱) درله = درته

(۲) روښوي

(۳) چښي

بال وپر دعــشق پيدا لکه مــرغــه کړه   چــې داهر پست وبلند درته هموار شي
زراعــت دخــيرلري بــرکت هــومره   که يوه دانه څــوک وکري خروار شي
يــوپه يواولــس په لــس وي محبته
مګر خــير چې اجرډيرې ترمقدار شي

"۴۰۴"

چــې لــه دره يــې بــدرشــي   در بــه درخــاورې په سر شي
مــقدر هــر کــار چــې نه وي   نــه پــه زورونــه پــه زرشـــي
زلــفې واخــلې چــې لــه مــخه   هــله شام بــه مــې ســحر شي
دلــسوخــــته په آه لاســوزي   اور چــې پــوکړې تازه تر شي
چــې څوک سوی د زړه پيدا کا   دآفــتاب تــر ځــايــه ورشي
چـــې خـــوږه خــبره وکړي   زړه مــې خوږلکه شــکر شي
ســتا دلاس کــه خاروخس وي   راتــه ګــل دپيــغــمبر شي
وابــه نــورم ســتالــه مــينې   کــه جــهان راته لښــکر شي
چــې په حــرص وي يا په طــمع   ســړی هلــته کــوروکرشي
که شاه مُحــسن ورښکاره کا
محــبت بــه قلــندر شــي

"۴۰۵"

چــې شهيد ديار دمينې په خنجر شي   په درجه دشهــيد انوکې اکبر شي
چې مشتاق ديار دشونډو وي زاهده   تسـلي دهغه کــله پــه کوثر شي
هم دعشق په اورخود سوزي هم مې سيزي   زړه زما کله سپند کله مجمر شي
ته مــکار يې دجــهان زه ساده دل يم   په دروغوکړې وعده زما باورشي

آشنايې چې څوک پيداکاندي له عشقه بيګانه له خويش ويار [1]وبرادر شي
څومې لاس نه رسي خولې ته يې هوس کړم حيا راشي چې مې لاس ورباندې برشي
په محشر که ليونی دی های و هوکا يوقيامت تازه قايم به په محشر شي
په شوکت دستاګدای که نظر وکا شهر يار دزماني به قلندر شي
هلته څوک ورتلی شي بې له سربازانو مرد هغه دی چې دېارتر کوځې ورشي
په درګاه دخدای مقبول به هم هغه وي دبستانو چې په چا باندې نظر شي

چې تاوويني اې هوښ رباى دخلقو
محبت له خپله ځانه بيخبر شي

"۴۰۶"

بې له تاهر يو نامرد په ما دلير شي چې ته نه يې پشونګړی راباندې شير شي
هغه غرونړۍ[2] چې اتفاق کا شي هالې ورته ناچار چې ماشي ډير شي
مقرر لکه پشوبه يې کا غلى سپې ګيدړ که ترمزري واړه چاپير شي
که ښادي لاړه غم راغی صابر اوسه چې ښادي تيره شوه غم به دې هم تير شي
که يوه نکته دميني سړی زده کا هريو علم چې يې يادوي واړه هير شي
شاه ګدای شي چې يو پوچ حرکت وکا دغه پورته زور چې ښکته راشي زير شي
سپک خصلت سړی پريباسي تردون والې که حرمت يې وي دمن په قدر سيرشي
شيريني څه کړم چې بې له شيرين لبې که شکرې وخورم هم راته ګنده هيرشي

دعاشق چې مينه ورسي کمال ته
سرتر پايه محبت زما په څير شي

"۴۰۷"

چې کنځل[3] يې له خندا سره آميزشي داتر وه خواړه عجب چاشني انګيز شي

-----------

(۱) اصل: ياور

(۲) ونړوي

(۳) ښکنځل

هــم هغو لره دوزخ دی پــیدا شوی چــې دمیني لـه شرابوېي پر هیزشي
پــه زاړه جمال به خپل یوسف څه ناز که که ښکاره ورته داستاحسن نوخیزشي
چې ابلق دنګاه خپل په جـولان کاندي هــمیشه یې هم زما په زړه مهمیز شي
ســتاله لــره تغــافله ســنګــین دلــه دښــیښې په شان دازړه مې ریز مریز شي
دلا ویز خودی چې عطرکړې پرې پورې تورګـیسودې پدا بوی لادلا ویزشي
له پنجې به یې خلاص نشې چــرته تښتې کشکې خلاص که څوک له مرګه په ګریزشي
کــه خبره حقه څوک لکه حسین کا دامخلوق به یې یزید غوندې خونر یزشي

چې هـــوا دوصـــال راشـــي محبته
لا آتش د مـحبت په زړه مې تیز شي

"۴۰۸"

په دعوې کې یوقـاضي دوړانلې وړشي چــې یووړشه عاقبت دویم به پړشي
هـــم ګــتنه په بازي ده هـــم بیا یلنه له چوګانه کله ګوی هرکله وړشي
څـان فاني کړه که بقا د ابد غـواړې هـغه نه مري چې پخواتر مرګه مړشي
که رومي وې شي زنګي په عـاشقۍ کې ســپین مخونه له غباره دغم خړشي
چــې په عقل وي کوتاه فرومـایه دي په قامت لکه نبتر څه شوکه که لوړشي
واشرافـو لـره تش اشارت یــس دی کمینه ووته تنبیه په ډانګ لـوړ شي
پــه کوڅــه به دې تر هـغه حده زاړم څـوزماپه اوښوخاورې یې چیقړ شي
ترخه نه لګی کنځل[1] هړو د ښکلیو زهــر هم دښـایسته له لاسه نغړشي

په حلقه دزلفو خپل محبت بند[2] کړه
چـــې علاج دلیونــو په زنځیر کړشي

-----------

(۱) ښکنځل
(۲) اصل : بنده

"۴۰۹"

| | |
|---|---|
| چې پابند دخط وخال شي | محبت يې په زوال شي |
| رنګ وبوی ته نظر مه کړه | چې دې مینه په کمال شي |
| کار چې عشق په یوه دم کا | نه په میاشتې نه په کال شي |
| چې دیار په غم کې خوښ وي | دهغه زړه بې ملال شي |
| په دنیا پروایې نه وي | مستغنی له زرو مال شي |
| بل مذکور نه کا هیچرې | خودعشق په قیل وقال شي |
| په دولت دخپلې مینې | که محتاج وي هم بې سوال شي |
| ددنیا فکرونه نه کا | دشهې خپلې په خیال شي |
| هم له ژبې هم له [1]زړیه | ذکروفکري[2] اشتغال شي |
| په اندوه کې یې عشرت کا | چې پرې غم راشي خوشحال شي |
| شي مصروف په کار دمینې | نورهر کار ورته جنجال شي |
| نور دعشق پر جلوه وکا | زړه یې روڼ لکه مشال شي |
| لکه نمر دعشق له اوره | چې تل سوزي بې مثال شي |
| په حرم کې یې حرمت وي | چې په تیغ دعشق حلال شي |
| چې دمینې غوټه واکا | ورته حل تمام اشکال شي |
| ورڅرګند په حال دعشق کې | هم ماضي هم استقبال شي |
| که کم بخت وبدا حوال وي | بختور وخوش احوال شي |
| هم دعشق له برکته | ګیند اطلس شړی یې شال شي |
| چې عاشق شي تر اشرافه | په حسب به ارذال شي |
| که اوبه یې وي خټولې | صافې ترآب زلال شي |

---

(۱) اصل: هم زړیه

(۲) فکریې

که هر څوسړی په خوی کې بـد کردار وبـد اعمال شي
چـې عاشـق شـي مـحبته
نیک اطوار ونیک خصال شي

"۴۱۰"

چـې دعـشق بناقایمه په کوګل شي عـمارت دزړ به هـله بې خلل شي
زړه مې هله به قرارشي په آغوش کې چـې دلبر مي همکنار وهم بغل شي
په هغو باندې قیامت هغه ساعت وي دوه مین په هرزمان چې ځبـله[1] بیل شي
چې وي یار ځنګل ودان راته ښکاریږي بې له یاره وداني راته ځـنګـل شي
سـتاله لاسه زهـر ماوته شربت وي بې له تاشربت هم زهـر هلا هل شي
عشق د زړه رنځ دی سړی په بل هیئت کا درست صورت په عاشقي کې مبدل شي
رنځ دعشق چې هلو نه راځي په فـهم کې څـه علاج يې دطـبیبو په اټکل شي
زړه زمـا چې دغـمو نوزنګ پـیدا کړ پـه شرابو دسـاقي به يې صیقل شي
که هرڅویې په شیرین شربت نهال کړې پـه لذت دنـیشکر به کلـه نل شي
خـبر دار اوسه دنیا قـمار خانه ده نیکنامـي بایلي هغه چې بدعمل شي
درست جهان که پـه خلاف مـې اتفاق کا پرې غـالب به شم که یار راسـره مل شي
خپل ترخه په عـشق خوارړه کړه محبته
چې حنظل په مـحبت سره عسل شي

"۴۱۱"

زړه مـې پـه یاروتاړه چـې یاربه زما مـل شي
دانه پوهـیدم چې به هـم دی دزړه مې غـل شي
بـحر ددنیا نه دی دریـاب، بلـکه سراب دی
خیال وخواب مـعلوم کاندي چې څـوک يې په اټکل شي

---------

(۱) اصل: ذبله

زیست سـره مې ده قـضیه رفـع یې په تیغ کړه
هر چې وي فیصل کیدونی هم نن دې فیصل شي
ستا په خـموشي مې غوټې پـریوتې پـه زړه کې
خولـه په خندا پرانزه چې هر مشکل مې حل شي
هیڅ پکـښې شک نشته چې دعشق په تیره توره
میرۀ شهـیدانو دی چـې ذبح څـوک اول شي
غـیر لکه اغزی له مینـځه ورک نه شه ګلرویه
هـیچرې ونه شه چـې وصـال دې بـې خلل شي
اور دې دفـراق زما په زړه بـل شه ویـریږم
هسې نه چـې دااورپـه تمام جـهان کې بل شي
عـشق که هر څواور دی ولې تـل نارې وهـمه
خـدایه لـه دې اوره دې زمـا سینه منقل شي
لـوی جنجال شي راته پـرانتل یې محـبته
زلفې دمحبوب چې یې په مخ باندې و لول شي
"۴۱۲"
چـې دزلفو یې ویښـته درهـم بـرهـم شي
ورقـونه مـې د زړه بـرهـم درهـم شـي
هغه زړه چې خدای دعشق په صیقل صاف کړ
آئینه شـي د سکـندر هـم جام دجـم شي
پـه شراب دمـینې جـام دزړه مـعمور کړه
چـې ښکاره پکښـي وتاته درسـت عـالم شي

لاس وبنيي[1] سترګې وغوږ دحيوان هم شته

چې پيدا په زړه کا عشق هغه آدم شي

که دعشق په اور جانباز لکه پتنګ شي

عاشقي په تا به هله مسلم شي

چې په عشق کې خطره کاله آتشه

په فرقه دعاشقانو هغه ګرم شي

هرسړی چې په ښادي ډير ښاديږي

هم هغه بسيار بسيار غمجن په غم شي

په پرهار دعاشقانو له معشوقه

که زنګار وي هم له لاسه يې مرهم شي

يارپه سرد محبت که قدم کيږدي[2]

پاس په سربه دهر چاد ده قدم شي

"۴۱۳"

| | |
|---|---|
| چې قانع لکه همای په استخوان شي | دهغه طالب دسوري بادشاهان شي |
| پيرزال به شي دوړاندې رستم هم | مقابل که يې دميني پهلوان شي |
| بادشاهان په عشق قبوله ګدايي کا | که تواناوي هم پداځای کې ناتوان شي |
| نوردعشق دچا په مخ چې لکه نمر وي | له انواره يې روښان تمام جهان شي |
| هغه مومي هغه زلفې عنبر يني | چې بې رنګ دمخ په رنګ دزعفران شي |
| که دحال له تماشوسترګې کړې پټې | استقبال ماضی به ټول درته عيان شي |
| دبتانو په څهره نظر دغور[3] کړه | چې قدرت دخدای وتاته نمايان شي |
| قصه خوان که داتازه قصه کاجوړه | زما ستا يو عجيبه به جوړ داستان شي |

---

(۱) پښې

(۲) کښيږدي

(۳) اصل: غوږ

یوزمان په جدایي کې شي سل کاله — **په وصال که وي سل کاله یوزمان شي**

مایه اوښو کړظاهر څوک خبر نه وه — **چې به پس تر نوحه بیا پیدا طوفان شي**

**ښه ګفتار چې کاطوطي په قفس پریو زي** — روشني دطبیعت دځان تاوان شي

**لکه شمع که څوک سوی دزړه پیداکا — تاریک کوربه یې تمام ورته روښان شي**

که یوسف یې وجمال وته نظر کا — آئینه غوندې په مخ به یې حیران شي

محبته ځان د زړه په وینورنګ کړه

زیات قیمت به دې تر لعل دبدخشان شي

"۴۱۴"

ترهغه چې تسکین بخش یې دلدار نشي

ناقرار زړه به زما په قرار نشي

خلاص به نشې له درد و نومحنتونو

څودې زړه په رنځ دمینې بیمار نشي

په سودا دعشق که زړه مې لیونی شه

خدای دې کاتر عمره پورې هوښیار نشي

په عوض دزویې ځان موروپلار ورکا

دګناه بدل په مور وپه پلار نشي

پدا قدردې اقراربې اعتبار شه

چې دې فرق په اقرار وانکار نشي

**چې په دام دعشق څوک پریووت خلاص ترې نشه**

پدې دام کې دې هیڅوک ګرفتار نشي

له خاطره یې جفا را باندې مه کړه

چې په ماسخې پوره داغیار نشي

زړه دچامه زیروه که مسلمان یې
زړه کعبه ده خبردار چې مسمار نشي
بختور به هسې څوک وي محبته
چې یې زړه له خپله یاره آزار نشي

"۴۱۵"

زور جداوي زیر جدازیرزور به نشي فرق یې دی دسروښېږ ښېه[1] سربه نشي
که هر څوکړې هنر ونه حکمتونه په هزارتد بیره خاورې زربه نشي
که په ملک دعراق وګرځې سل ځله په رفتار دعراقیانو خر به نشي
که هر څوبې زرغونه کړې په شربتو کال کوندې په شیرینی کې کوربه نشي
که یوسف ماه دکنعان وه ته آفتاب یې دسپوږمۍ رڼا په شان دنمر به نشي
چرې کوڼ هم شي چې وي سامع په غوږو هرچه بې غوږوسمیع دی کربه نشي
مابه سردیار ترښپو[1] دلاندی کیښود ولې څه کرم چې مې لاس پرې بربه نشي
ملک دمینې په همت چې مسخر کا په هر چابه یې بري وي لربه نشي
که هرڅوپه عشق کې څوک عالي مقام وي
محبته ستاتر ځایه وربه نشي

"۴۱٦"

چې دخلقو تل غیبت کاندي بدګوی شي
په قیامت به یې وربوز دخر بشوی شي
یوه ورخ به پرې طوفان دفناراشي
لکه نوح څه شوکه څوک په عمر لوی شي
چې څوک غواړي خپل ژوندن پس له دوستانو
خوهم دې له چې دواړومرده شوی شي

--------

(۱) پښه
(۲) پښو

په ژړاکـــې وي عـــزت دعـــاشـــقانـــو
چـــې يې اوښـــې پـــه مـــخ راشي آبروی شي
چـــې شي پټ هـغه ګــوهر مــې له چشمانو
دُرداوښــــو مــې لــه ســترګـــو واړه توی شي
پـــه يوتـــريخ حـــرف جـــداشي يارلـــه ياره
پـه طـــلاق مـــفارقـــت دزن وشـــوی شـــي
عندليب طوطي سکوت دواړه اختيار کا
هـــغه دم چې مـــحبت په ګفتګوی شي

"۴۱۷"

يکـــبينی ده داحـــد پـــيژند ګـــلي دوبـــيني ده شرک وکـــفرواحولي
بـــيلی[1] لـــه ځـانه يار په دوبـــينی ولـــې کـــيږې ځـان د پـاره ذلـلي
ددريـــاب اوبه په ډانګ نشي جـــدا کـــه هر څـــوپکې خلـل کا خلـلي
ديوه درياب څرګـــند وي ډيرامـــواج هـــغه ړوند دی چې انکار کاله جلي
هـــيولا يـــودی صـــورت مـــتعدد کـــه حکيم يې پـــدا وکړه تسـلي
چې په زړه راشي دچا دشرک زنګ بـــې وحدته يې نشـــي مـــصقلي
**کثرت شک وحدت يقين دی شي کافر** په يقين کې چې سړی شک راولـــي
لاالاالاالله ويـــل پـــه خـولـــه بـــيا دغير موجـــود ګڼل ده دغلي
مـــحبته ده مـــنکر لره پکـــار
دنـــبي ژبه يـــاتـــوره دعـــلي

"۴۱۸"

**ستاپه خيال کې درسته شپه کله څملي** شب بـيدار وي ستا دسترګو تا نتلي

--------
(۱) بيلوي

دعشق سورچرته پیاده دعقل چرته دسورو سیالي کولی نشي پلي
آباد زړه مي واړه وران کا ستا غمونه کړي غارت يې چې داړه راشي په کلي
زاهدان به په طريق دعشق رانشي هلونه راځي په لار بې لاري تللي
چې دمی دزور برداشت نشي کولی زهد اختيار کا زاهدان بلاوهلي
دعيسى او وادريس وته نظر کړه په همت سرې آسمان ته دي ختلي
په وزر وکه مرغان پاس په هواځي عاشقان دي بې وزروالو تلي
حوځپل سربه وخوري نوربه هيڅ نه وکا چې کمزوري زوره ورته نشي غلي

کل اغزي به جدانه کړي محبته
رنځ راحت سره له څايه دي ترلي

"۶۱۹"

حسرده بيامومي هله بيغمي چې پيداکاندي له ياره محرمي
زنه څه وښکوم قاصده خپل احوال چې زما حقيقت نه دی قلمي
نه آسمان لري نه مزکه داقابو زما زړه دی چې غمونه يې زغمي
شکر خدا مې کا خوشحال په آخرت په دنيا يې چې را نه کړه خورمي
زه همدم په جهان نه غواړم بل څوک. خدای دې راکاندي له عشقه همدمي
چار پايان دي خواب وخور لره پيدا عاشقي لره پيدادي آدمي
وايه خود هغه انسان دی که حيوان چې دعشق له درده نه وي آلمي
که هرڅه مې کم شي هيڅ نه لرم غم خدای په عشق مې دې رانه ولي کمي
که شې تينګ وپهلوان و ته دعشق هم دغه ده سهرابي ورستمي

محبته اوس دې شعر دیهر يو
دلپسند دعربي وعجمي

"۴۲۰"

بـې له تانه څې د زړه مـې پریشاني — راشه اې دوران خاطـر مـې وداني
دریغه ورمې کړ زړه خپل لکه مـرغه — یو هــلک وته لـه ډیـرې ناداني
خــبردار که غشي ووت له لیندۍ — رابـه نشي بـیرته بیا پـه پښیماني
کــور ودانه نه پوهیږم چې په څـه — مـستعد زمـا دزړه یـې پـه وراني
شوی نه وې که روان پخپلو ښـپو[1] — پـه مـاخله بـه راتله سرګـرداني
مه نازیږه په قوت خپل چې په عـشق — پکار نه راځـي دچـاپـهلو انــي
مرګ خوښه دی داژوندون وې څـنکدن — چـې بې یاره شـي دچازنده ګـاني
ګوری نفس وته ونه سپارې خپل ځـان — لـه لیوه به نـشي کار دچوپـاني
چې ستا مخ ته کړم نظر راشي په مـا — لکه بت په غـتو سترګـو حیراني
زما ستا په دوراوس نه وایي څـوک — افـسانه د آدم خان و درخـانـي

محـبته پـریږده اوس هـوسنا کـې
په پـیري مـه کړه کـارونه دځـواني

"۴۲۱"

مـخ لکه چې سـتادی په دانور چرته آفتاب وي
زلفې لـکه سـتادي چـرته هسې مـشکناب وي
شـه پـداسـبب عـرق عـرق له خـجالـته
ستا لـکه خوله ده پـدا بوی کلـه ګـلاب وي
سـتا دسرولبانو څـه تشـبیه ورکړم لـه لـعلو
رنـګ دلعل چـرته پداهـسې آب وتـاب وي
ورځ په موږه شپه شوه راځرګندې لکه نمرکړه
څـوبه دې دزلـفو پـروت په مخ باندې نقاب وي

------

(۱) پښو

کوڼ شم چې مطرب سرود آغاز کابې له یاره

اورم نه دچنګ نغمه نه غوږمې په رباب وي

څو چې تاپرده دخودي نه ده لرې کړې

داپرده دیاراوستاتر مینځ به تل حجاب وي

دم غنیمت شماره چې بزرګانو دي ویلي

خیال ګنه راتلونی هرچې تیرشي هغه خواب وي

ام الخبایث دي په پرهیز اوسه له میو

ولې بیخطرې سکه[1] دمینی که شراب وي

سترګه وازه څه کړم پدې سیندکې محبته

دریغه چې بقا د عمر لږلکه حباب وي

"۴۲۲"

دهر چا چې کورپه مخ کې دسیلاب وي

هغه کس به همیشه خانه خراب وي

یوه ورځ به مادخس په څیر لاهوکا

که داوښومې جاری هسې دریاب وي

خوف یې نه ځي په هجران و په وصال کې

دعاشق زړه همیشه په اضطراب وي

چې یودم آزاد له بنده دخودی کا

مشغولا دمعشوقې وي یاشراب وي

هرسړی چې غم دیار لري په زړه کې

نه یې خور وي نه یې نوش وي نه یې خواب وي

--------

(۱) چنبه

شــــپه وورځ نغـمې دخــپلي نــايې اوري

دعــاشق دغـه ســرود دغــه رباب وي

نـــور خوبان لـکه ســپوږمی شـــي بې رونقه

چـې ستا مـخ يې مـخامخ لـکه آفـتاب وي

نور ثــواب به عاشـــق څـه ګـتي تر دازيات

چـې درست عـمرې له غـمه په عذاب وي

هــرمره ډک وي مــعاني دې په هــر لفظ کې

کــه يــوه خبره وکــړې يوکــتاب وي

زه دعــــا دمــحبت غــواړم لــه خــدايه

اميد واريم چې به ځواست مې مستجاب وي

"۴۲۳"

چې مرګ حق دی عاقبت هر څوک وفـات شي

ته په عــشق ومره مـدام به دې حـيات شي

هــرعابــد چـــې پــخوانيو دخـــودی بــت

مـعبودان يــې په هــردم لات ومـــنات شي

پــه هـجران کې هــره ورځ ورځ دقــيامت وي

په وصـــال کښـې هـره شپه شپه د بـرات شي

شي عـــبث صوم وصـــلوت چـې مــينه نه وي

بـــې لــه عـشقه بيــهوده حـــج وزکات شي

**چې نيست هست ګني اوهست ته وايي نيست دی**

پـوه هـــغه ســړی په نـــفی وپه اثــبات شي

زه نصـــيب دزليـــخالـــه كـــومـــه راوړم

چـــې په خوب کې مې ورسره مـلاقات شي

غـــنيمت بـه واخـــلم زه غـــنيم به مـــړکـــړم

کـــه مـقبول يارته ددې زړه مې سوغات شي

رحـــم وکړه څـــو مشـــتاق دې لـــه حـــسرته

پـــه افـــسوس شي په ژړاشي پـه هـيهات شي

دالبنـــکر چـــې دکـــثرت دي مـــحبته

په يودم به دوحدت په توره مات شي

"۴۲۴"

شـــهيد شـــوی چـــې پـه تيغ دمـــحبت وي

همـيشه بـه پـرې نازل دخدای رحمت وي

تـــمام عـــمر تر هـــغه ساعـــته څـــار کـــړم

چـــې يوازې مـــې له تاســـره صـــحبت وي

يـــار پـــه مـــينه راغـــی صـــبرو تحـــملـــه

بـارې ستاسې دې له مـانه اوس رخصت وي

چـــې قـــامت يې تر قـــيامته هـــم سوا دی

په راتلـــو يې هـم په ماباندې قـيامت وي

چـــې په کړه وړه کې وي ښـه ښه يې مه وايه

ښـــه هغه چې ښه په خوی وپه خصلت وي

خـــوله يې ماته شه چې ســـتا ترخوږو شونډو

که څـــوک وايي دشکر وزيات لـذت وي

زه تـوبه لـه مـينو شـي كـړم ولې شيخه
كـه دپـير دمـيخانې هـم اجـازت وي

كـه حرمت دى خودهر سـړي په پت دى
دبې پـت به په جـهان كې څـه حرمت وي

الـوده وي سرتر پايه په سـرواو ښو
محـبت پخپلو وينو تل لـت پت وي

"۴۲۵"

د دلـبر وپه غـم څـويې زړه آباد وي | ترهـغه پورې خاطر دعاشق ښاد وي
احتياج څـه دى ددام زمـا و زړه ته | خود د! صيد په انتظاركې دصياد وي
اوس ديار جور وجـفاسره مې خوى شه | زهـرهم هـيڅ ضررنه كا چې معتاد وي
زه اسيرچې تل دعـشق يم خوشحال اوسـم | په قـفس هـغه تنګيږي چې آزاد وي
زړه مدام مې په بـلاد عـشق اخته كا | هـميشه د زړه له لاسه مې فرياد وي
داوبو په سرچې جوړلـكه حباب شي | ددې هـسې عمارت به څه بنياد وي
لـكه ګل وي چې يې ژبې لاندې ژبه | پـه خبره دهـغه څـه اعـتماد وي
چې په تاشيداوي اې پـه خولـه شيريني | سرې (1)مات به هميشه لكه فرهاد وي

آخـر نـرم بـه په آه دمـحبت شـي
كه هر څويې زړه كرخت لكه فولاد وي

"۴۲۶"

الـبته هـغه لـبان به دلـپسند وي | چـې يوه شونډه شكريې بله قند وي
نشته هيڅ داهـسې خوږ بې له خوبانو | نيشكر غـوندې شيرين يې چې بندبند وي
قـسم واخـله له مـابې دستاله زلفو | كه لـه چـاسره رشته يامې پيوند وي

--------
(۱) سرېې

خوري سوگند زما دسر په فراغته چې رضايې د دروغوپه سوگند وي
چې ترپلاره نيکنامي زياته پيدا کا مقرر چې پلار دپلار هغه فرزند وي
چې دخلقو پرورش دپاره گرزي **دآسمان په نشان هم هغه سربلند وي**
هر آزاد چې په هيڅ دام نه اسيريږي **شي بندي به که د زلفويې کمند وي**
**دعاشق په شان چې سوی لری په زړه کې آفتاب څکه په تمام جهان څرگند وي**

معلوميږي چې دعشق دولت يې بيامونډ
محبت چې بې دولته دولتمند وي

**"۴۲۷"**

**که گرمي وي خوپه ورخ دهربازار وي** يوبازار دميني تودليل ونهار وي
زلف ورخ دمحبوبانوعجب جنس دی **چې عالم شام وسحري[1] خريدار وي**
ستم وړشي داغزي دگل دپاره يار دپاره ورم جفا چې داغيار وي
غم مې نشته که تمام عالم اغيار شي له اغياره څه پرواده که يار يار وي
**چې گدای چرته حاجت لره روان شي** پرې دسپيوغپيده شوروکو کار وي
ليوني په هلکانو کې چې گډشي له چاپيره يې دکاني پرې گذار وي
وصل يې هلو نشي موندبې رقيبانو په بهار کې هم له گله سره خاروي
چې وي دخل يارکره درقيبانو **خواه نخواه عاشق ددوی به منت باروي**
هوښياري زياته سړی بې حميت کا **غول خواره شي کلاغان چې ډيرهوښيار وي**
سپک ترخسه يې گنم په عاشقی کې که پندونه دانده مې په سربار وي
**نور هم غم که لږوي لږ ډير وي ډيروي مکر غم دعشق که کم وي هم بسيار وي**
**تابه ستايم په هررنگ لکه بلبله که په خوله مې لکه گل ژبې هزار وي**
کار دمينې هريو خام نشي کولی عاشقي کاندي هغه چې پخته کار وي

---
(۱) سحريې

چې وغم وته لار ورکا په خاطـر کې دهـغه عاشق معـشوق وته به لار وي
چـې دیار کوڅه بهار لـري واعـظه کلـه باغ به دجـنت پدا بهار وي
تل آرمـان به دجـنتِ لـکه آدم کا پاتې شوی دخپل یارچې ترې دیار وي
دچشمانو نورمې زیات لکه رانجه کا ستادلارې چې په سترگو مې غبار وي
نن چـې وار دې دی موندلی کا رتمام کړه خدای خبرچې وسبا ته دچا وار وي
پرهیزگاروم ولیکن چې یار ساقي شه له پرهیزه اوس زما دې استغفار وي
که سکون يې که قـرارېي زمـا ته يې بې لـه تامی نه سکون وي نه قرار وي
زرپـکار وي دمـــینوصـدقې لـه مـال دولت بې له مینه څه پکار وي
کـه هر څومې هـمیشه دلآزاري کا لـه دلبرو زړه زمـا کله آزار وي
هـغه خاندي په تسپودتسـبیح خوانو چـې په ناره ستا د زلفوېې زنار وي
هـغه تل باغ وبهار لـري په کور کې چې محبوب يې گل اندام وگلرخسار وي
پس له مرگه مې مدفون هـسې ځای کړئ چـې مزار مې ددلبر په رهگذار وي
افـلاطون لقـمان هغه وي محـبته
چې له عشق ومـحبته خـبردار وي

## "۴۲۸"

صـنوبر هـسې ویـاروته ولاړ وي خدمـتگار لکه سردار وته ولاړ وي
نامـردان ځان غـرې[۱] لـه هره کاره مردهغه دی چې هرکاروته ولاړوي
دگـدای دې هـسې لـویه استانه وه چـې بادشاه يې ودرباروته ولاړ وي
وي عـزت مـې په فـرقه دعـاشقانو ستا غمونه چې مـا خواروته ولاړ وي
ستا دمـخ په تماشـا هـسې ولاړ یم نندارځـي لکه گـلزار وته ولاړ وي
خـوبان هسې وي ولاړ زمـا په فـکر صـیادان لکه چې ښکار وته ولاړ وي

---------

(۱) غرړوي

لکه نمر ځـخوله بامه خپل جلوه کړه     مـشتاقـان دې وديداروته ولاړ وي
محـــبت چې ليونی دی دنيا څه کا
ددنيا فـــکر هـــوښيار وته ولاړ وي

"۴۲۹"

که رضـــا دپاک الله ده څومې دم وي     ستاپه عـــشق کې به ثابت مې دم قدم وي
جام دمی راته ښکاره درسته خدايي کړه     تردازيات به څـه کمال دجام جم وي
ستا د تورې چې زخمي يم لاغو ځيږم     شي پـرهارلره مې مالګه که مرهم وي
چې پـه غم کې يې خوښيږم دعاغواړم     الهـی په زړه مـې تل دمينې غم وي
دهرشي زياتي کمی په جهان شته دی     مګـرعشق خوچـې شي زيات بياکله کم وي
دنيازرده دين جنت دی مينه خدای ده     ته هـغه پکښـي کړه غـوره چې ا هم وي
محبت يم که مالک دملک ومـــال شم
عـــشقبازي راته تر هـــمه مقـــدم وي

"۴۳۰"

هـــميشه مي پيوسته ســروزنګون وي     بې له ياره تل زماخاطر محزون وي
عاقـبت به په قدم يې جـبين کيږدم[1]     ســرنثاربه يې ترښـپوکړم که ژوندون وي
لــکه ځان به ګرد شونه را عـــطا کا     تردازيات بـه نورڅه مهر دګردون وي
زمـــانه لـــه دوه ميـــنو خـــالي نشي     هـميشه په جهان يو ليلا مجنون وي
وهــغوته چې رښـتيني عـــاشقان دي     پـه دنياو په عقبی دوزخ بيلتون وي
په نکريزو لاس دې سره بار ديګـر کړل     ګوری بيابه نن دچادې کړی خون وي
لکه ګل چې چاک ګريوان لري له غـمه     زړه يې وي پـاره پاره وينې لړمون وي
خلاص به نشي هــلو څوک د مـرګ له لاســه     که پـــنهان په سل کوټو کې اندرون وي

---

(۱) کښېږدم

محبـــت رشته لـــه مهـــرو مينې كاندي
دهـــر چاله خپله جـــنسه پيوستون وي

"۴۳۱"

ځــه ژوندون به مې دمينې په لنبو وي دآتش په منځ دخس عمر به څووي
**ته بې مثله هسې روغ شوې چې پوهيږم** خود صانع به ستا دمخ په نندارو وي
لکه عشق په زړه مې دم په دم زياتيږي افـزايش داورهـم هسې په ورو ورو وي
**دعــشق رنځ لرم دارودرمان يې څه کرم** چــې دارنځ كله قـابل درغـيدو وي
دلِيا پــــه حرف تــل حلالـه يې[1]مې ستاپه ژبه شه حرام كه لفظ داو وي
**زه خوغوارم چې قدم مې په سركيږ دې**[2] ولـــې كله به دې دا په ماپيرزو وي
كــــه بې علم جــاهلانوته شاعــر شې وعـــالم وته جاهـل په ګـفتګو وي
كه ومورِک[3] وته پشولـكه مـزرى شي دمـزري دوړاندې هـم هغه پشو وي
ســـرمـــدام دســـر بلنـــد و مـــحبته
په كلام كې ستا دوړاندې به فرو وي

"۴۳۲"

عـــاشقان لـه بود وبـــاشه آسوده وي غم ديارخوري له معاشه آسوده وي
دهـــــيچا پكار دعـــشق خبره ناوري لــه صلاحه له ګنګاشه آسوده وي
**خاكستري**[4] **فرش خبنته يې بالـــين شي** لـــه بالبنـــته له فـراشه آســوده وي
**نه يې غم وي دافلاس نه نعمت غـــواړي** لـــه منعمه له قــلاشه آســوده وي
ددنيا لـــه خلقو لاس دطلـب پـرې كا بنيې[5]كاماتې له تلاشه آسوده وي
نه له چاسره كا جنګ نه خرخښې كا لـه كينې ولـــه پرخاشه آسوده وي
غـورِپه فحش وبد ويل دهـيچانه ږدي لــه بدګـويه له فـحاشه آسوده وي

-----------

(۱) حلالوي
(۲) کښيږدي
(۳) اصل: مکک
(۴) خاکستريې
(۵) پښې

وي محفوظ په پيراهن دعــرياني خپل   لــه لـباسـه له قـماشه آسـوده وي

په کــلام کــې محبت لکه آفتاب دی

لــه آفــرينه له شــاباشــه آسوده وي

"۴۲۳"

چــې په عشق کــــې فــرزانه وي   وعـــالـــم تــه ديـــوانـــه وي

يــګــانـــه دخــداى هـــغه دی   چــې له خــلـقه بـيګـانه وي

چـــې هـــوښـــيار وځـــان ته وايـــي   تل پـــه مـــيو مـــســـتانـــه وي

چـــې شي ډوب په ســـيند دميـــنی   دهــر بـــحـــر دردانـــه وي

عــــيش روزي بـــه دهـــغه شـــي   چــې له غـــمه هـــمخانه وي

دبـــلا غـــشـــي چـــې راشـــي   هـــم عـــاشـــق يې نښـــانه وي

دام درم د داغ دمـــيــــنـــې   دعـــاشـــقـو خـزانـــه وي

ځـــان جـــهان عاشـــق يې څـــه کا   ځـــان جـــهان يې جـانانه وي

حـــال دهـــر چـا مـــحـــبته

چـې ماضـــي شي افسانه وي

"۴۲۴"

چــې خالي له مــحبته ديـــار نه وي   دهـــغه به يوساعــت هم قرار نه وي

وشهې ته يې مــوجره[1] کله قبليږي   چې يې سرپريکړې پروت په دربار نه وي

څـــو قـــبول نه کا اغـــزی د مغيلانو   دهـــغه حاجي کعبې وته لار نه وي

يوه ورځ به عاقبت پرې خزان راشي   هـــميشه به شګـفته داګـلزار نه وي

هغه زړه له پريشانۍ بـه تار په تار وي   چې پېيلی يې د زلــفو په تار نه وي

عاشـــق نه کاندې ويسا په دنيا دارو   دهــوښـيارو ليونو سره کار نه وي

--------

(۱) مجرا

څو چې يار دی منتظر دمرګ مې مشه   مړبه هله شم رقيبه چې يارنه  وي
**په پرهار خپل څه مرهم کېږدم [1] طبيبه  چې مې هيڅ مرهم کارګر په پرهار نه وي**

چې دعشق دولت يې نه وی محبته
په دنيا کي به بل هسې څوک خوار نه وي

"۴۳۵"

وعاشق ته د دوزخ هيڅ ويره نه وي   خطرنه کاندي له اوره دعشق سوي
**په شروع دعشق ومرګ وته نژدې شوم**   داآغازې[2] دی انجام به يې لاڅه وي
او ده ويښ شي ولېکن نه بيداريږي   **لکه بت په غتوسترګو چې اوده وي**
**ډيرې سرې وينې به توی کړي پدې لاسو   په نکريزو چې دې سره کړل خپل ورغوي**
څو دشرک توروالی لرې له زړه نشي   غزاوشوه که په ږيره سپين ويښته وي
عاشق کله وي بيغمه چې عاشق شي   تل غمونه په حصه کې هم دده وي
زړه اوژبه موافق وي دميخوارو   رابې شي په خوله هغه چې يې په زړه وي
**هم صحبت دنيکونيک شي کرچه بدوي   هم صحبت دبد وبدشي کرچه ښه وي**

محبته مري هغه چې ژوندون غواړي
چې پخواتر مرګه ومري تل به ژوي

"۴۳۶"

**زما ستا به داصحبت وي که به نه وي   له روزګاره به مهلت وي که به نه وي**
داصحبت ديوه دم غنيمت شماره   خدای زده بيابه فراغت وي که به نه وي
نن خوست دې دبوسې وماته وکړ   هميشه به دې داست وي که به نه وي
زړه له تامې به کړپورته ولې دريغه   چې دعشق به اجازت وي که به نه وي
نن خووايې سبا خوله به دله[1] درکړم   ولې ګانده به فرصت وي که به نه وي

---------------

(۱) کښېږدم
(۲) آغازې = آغازيې

اوس خوښه خصلت لري مخې له ګورم    چې به ستا هسې خصلت وي که به نه وي
چې قامت دې له ماپټ شي راته وايه    چې راباندې به قيامت وي که به نه وي
سرو يېريا مې دله [1]دركړاوس وتا ته    پداهم به مې قيمت وي كه به نه وي

چې باز پرس له محبته شي په حشر كې
ستا جمال به يې حجت وي كه به نه وي

"۴۳۷"

عاشقان چې معشوقان هورې هورې وي
بلبلان چې ګلستان هورې هورې وي
عاشق مونده شي دمعشوقو په ټولي كې
هربو راچې ګل پريوان[2] هورې هورې وي
ليونى يې اختلاط نه كا له خلقو
مجنونان يې چې بيابان هورې هورې وي
نصيحت كه دناصح ناورم معذوريم
زړه زما چې مې جانان هورې هورې وي
هم په تاټولى وي جمع دخوبانو
لښكريان چې يې سلطان هورې هورې وي
لكه ستالب ودندان هسې دچا دي
لعل ودر چې يې وي كان هورې هورې وي
سرمې پروت وي په ميدان كې ستا دزلفو
البته ګوى چې چوګان هورې هورې وي
كښت د زړه نه سرسبز يږي بې له اوښو
زراعت شين چې باران هورې هورې وي

-------------

(۱) درته
(۲) پريمان= فريمان

دګلـــشن همیشه کـــاروي له ګـــلونو
محبت چې محبوبان هورې هورې وي

"۴۳۸"

زه بـــه پریـــنږدم دمـــینې بـــادشاهي چـــې له عـــشقه ده زما عـــالي جاهي
یوساعت مـــحبوب له مانه کړې جدا دحـــبیـــب لـــه بـــرکتـــه الـــهی
ته آفتاب یې په کمال دښایست توب څـــوک جمال ته دې کتی شي کماهي
چې عاشق یم دی له عـــشقه مې ژوندون عـــشق دریاب دی ناپایاب زه یې ماهي
زه به وانـــه وړم هرګز له مینـــو شي کـــه هـــر څـــوشي دشرابـــو مـــنا هي
په مـــحشر کې به هم ستاوي شاهدان زه بـــیکس یم زما څوک به لې ګواهي
پـــه کونین کې هـــم هغه وي آسوده چـــې دعشق پرې باندې راشي تباهي
دریـــغه اوښومې دسترګو ستا په غم کـــړه مـــخلوطه سـفیدي وسـیا هي
یو دعشق په طریق یون دی هـــدایت نورپـــه هرې لارې تله دي ګمراهي

یاربـــه راولي که خدای کا تر بیګاه
مـــحبته ســـتا نالـــه ســـحر ګاهي

"۴۳۹"

چـــې مې وکړه آشـــنا یي څـــه پـــرواد رســـوایي
چـــې وصـــال راکاحیات نـــورمـــې وژني جدایي
طـــالـع نه کـــاندی مـــدد و مـــې کره بخت آزمایي
کـــشکې یارکاندی بـــدل پـــه وفـــا بـــیوفـــا یي
عـــاشق نه پـــیري هـــرګز بـــادشاهي پـــه ګـــدایي

چــې دعشق لري هوس | هغه پريږدي خود رايي
دابد نوم چې دی خودرای | پــه عاشق کلــه ښايي
تل دمــينې پــه ســودا | عــاشقان وي ســودايي
وي مـشغول پکاردعشق | پـريږدي شغــل دنيايي
شي بهــتره ترهــر څـه | ورتــه خپله شــيدايي
بې له عشقه ګنې هيڅ | څـه شيخي څـه ملايي
ځـان کابې ســروسامان | واخلني بې ســروپايي
شــې په زړه ورته خوږه | بــې برکي بــې نوايي
له جنونه خپل وی خوښ | شــي ويزار لــه دانايي
اختلاط پـريږدي دخلـق | وی خوشحال پــه تنهايي
وداني تــه نه کــامـخ | هــميشه وي صحرايي
مــی دعـشق نوشي مدام | يــوپلو کــا پــارسايي
دهــر چا کــړي تسـلي | اې دلــبره هــر جــايي
درست جهان دې کړ روښان | لــکه نمر په روښــنايي
په هررنګ کې کړي ښکاره | رعــنايــي و زيــبايي
وينــی تاپــه هــر طرف | چــې لري څوک بينايي
له کــمنده دې دعــشق | څوک نه غواړي رهايي
همـه ستادي آرزومــند | واړه ســتا تمــنا يــي
عــاشــقي پــخپل تلاش | چــامونــدلې ده بــايي

څوک يې نه مومي په کسب
مـحـبت دی عـــطايــي

"۴۴۰"

زړه په هـــرســـاعت مینـــه دیارمې فـــرمایي

زه هـــم هغه کار کړم چې دی کارمې فرمایي

یارچـــې څـــه ارشاد کا په لـــیمه یې قـــبلوم

زه یې ګـنم سهل چـــې دشـــوارمـــې فرمایي

هـــرچـــې لیـــونې دي راتـــه وایـــي لـــیوني

هـــرچې هوښـــیاري لري هـــوښیار مې فرمایي

ماخـــوبه زاهده په لاس واخـــیستې تســـپې

څـــه کړم تورې زلـــفې یې زنار مـــې فـــرمایي

زه خو محتـــسبه وکړم درنګ پـــه مـــینو شي

پـــیردمـــیخانې ولـــې تلوار مـــې فـــرمـــایي

نه دچـــاویل کړم نه مـــې کار دی چـــاسره

هـــم هـــغه کوم چـــې خپل دلـــدار مې فرمایي

پـــیرمې دطریق دی هـــم رهـــبر مې دی هغه

هـــرمرشد چې تلـــه دعـــشق په لارمې فرمایي

څوان د محبت یم هم هغه کړم کاروبار

هـــرچې محبـــت په کاروبارمې فرمایي

# چاربیتي

"۱"

ته یـوځله خـومې ترکـوره راشه　　چـې غـم رانشي بیا زما په خونه

*　*　*

سبا بیگازه ستا په خـیال کې یمه　　بـانه دې تور په زړه کې یاد ومـه

ته راشــه جانه ستا بــنو له غــمه　　ترڅـو به ځي زما په زړه سیخونه

ته

یو ځله

نه لــه دوزخه دی زمــا په زړه غم　　نه لــه سـختونه دقـیامت ویریږم

پــه هر زمان په هر ساعت په هردم　　لــه تا امــان غـواړم دیار بـیلتونه

ته

یوځله

تــه خووتــلــو ته اوس تیار ولاړې    بــیا راته وایې چــې ته څـله ژاړې

خــداې دې نه کا که دلبره لاړې    پــه مابه راشــې دجــهان غمونه

ته

یوځله

څــه مې پوښتې له ډیره درده غـمه    په رنګ دګل زه خپل ګریوان څیرمه

چــې راپه یادې شــې زما صــنمه    هـغه دې سرې شونډې لکه ګلونه

ته

یوځله

شپه (مې) شب قــدر به شهې هله وې    چې راشې ته اودغــیردخل نه وې

ته دســپوږمې پـه شان اوتاسره وې    **پــه رنګ دستوریوستا همزولې جونه**

ته

یوځله

یوازې زه نه یم داتــول وګـــــرې    دې ســتا د تورې واوبـوته ترې

که غواړې سرزما یوسر خوځه دی    **تمام مــخلوق به درکا خپل سرونه**

ته

یوځله

چــې کبربددی ډیر پداجــهان کې    **نور راشه څه کمې دی ستاپه شان کې**

محبت ځان کړخاورې په میدان کې    چې ســتا پرې ولــګې دآس سمونه

ته
يو ځله

"۲"

نه بـادشاهي غواړم نه تاج اونه تخت    تاغواړم اې د درست جهان ملوکې

*    *    *

پـــري يې اوکـــه دجـنـت ته حورې    چـې په خوبي په حسن بې قصورې
داوروځـې ستا دي که تيرې دې تورې    بـانه دې دي که دنيزو دي څوکې

نه

بادشاهي

ترحـــورې به يـــې په مـــزکه باندې    خدای دې هـسې شپه روزي مې کاندې
چې ته خوب کړې په کټ زمـا دوراندې    زه ناسـت وهم په بنپو[1]دې نرمي موکې

نه

باشاهي

چـې شنې جوړې اغوسـتې ته راتللې    مـــاپه داژبه ســـتا به بنـپي [2]ځتلې
اوس مې ياديږي[3] خوله دې پان خوړلې    چې شنه طوطيان ووينم سرې مبنوکې

نه

بادشاهي

چـــې کرم غواړم په غضب هله شې    چـې مـهر کړم طلب په قـهر ته شې
پـــه لار درحـــم ووفـــا رابه نه شې    بـــيرحـــمي بيوفـــايي بېـــسلو کې

نه

بادشاهي

-------------

(۱) پنبې
(۲) پنبو
(۳) اصل:ياديږي

گـمان دســحر مــه کړه بدګــمانه داکــوډي ستا دمــحبت دي جانه

عــاشق دې اوس رغيږي واوره مانه که ته لــه خپلې خولې پرې دم وپوکې

نه

باشاهي

# لغتنامه

د نواب محبت خان دیوان ځینې داسې پښتو، فارسي، هندی او عربي لغتونه لري چې ښايي ځینو لوستونکيو ته پرې پوهېدل ګران وي نو ځکه مې له عامو لوستو تکیو سره دمرستې په خاطر د دیوان ځینو لغتونو ته له عامو فرهنګونو څخه معناوې ورکړې دي. همداراز داهم باید یاده کړم چې د نواب په دیوان کې ځینې داسې لغات هم وو، چې ما یې زما ترلاس لاندې فرهنګونو کې معناوې پیدا نه کړې.

- دوشاله ( غ ۱) : شال، دوپټه شال، دوبره شال، کشمیری شال، ښځینه شال ( تشریحی قاموس)

- کونین( غ ۲ ) : دوه جهانه، دنیا و آخرت ( تشریحی قاموس).

- بارياب ( غ ۲ )؛دباچا حضورته ورتګ؛د پاچا په حضور مشرف کېدل.

-ثقلین (غ۳) : دواړه جهانه، دنیا و آخرت ( تشریحی قاموس).

- شهرګ (غ۳) : ښارګ: د مری غټ رګ، حبل الورید: د غاړې لوی رګ چې د زړه څخه سرته پکې وينه ځي او په غوڅو لويي انسان مري.

- شها،شهی(غ۳): محبوبه ، معشوقه، ( تشریحی قاموس).

- طره (غ۳) : شمله، جوغه، شلکی ( تشریحی قاموس).

- قدسیان (غ۴) : ملايکې، پربښتې ( تشریحی قاموس).

- مفاجات(غ۹):ناڅاپه راتلل، نابېره حمله کول، بې خبره پرچا ننوتل ( عمید)

-زهرخند( غ ۹) : د قهر او غضب خندا (عمید).

- دوڅار ( غ ۱۰): څرګند، ښکاره، جوت ( تشریحی قاموس).

- تارو ( غ ۱۱): یو مرغه دی، چې دمرغۍ په اندازه غټوالی لري، رنګ

يې ځړ او تورتورتکي لري ( تشريحی قاموس).

- تنزری( غ۱۱ ) : تمخری، تمرزی يوه مرغی ده، چې خونده وره غوښه لري( تشريحی قاموس).

- اعجاز ( غ ۱۱ ):فوق العاده کارکول،معجزه ښوول ( تشريحی قاموس).

- هېر ( غ ۱۳ ) ځل، کرت ( زړه پانګه).

- ترو ( غ۱۵ ) : ترې، ترينه، له، ورڅخه ، څنی ( تشريحی قاموس).

- هډو ( غ ۱۵ ) : هرګز، بالکل( ظفر)

- واکې ( غ ۱۵ ) : جلب.

- لغام ( غ ۱۵ ) : لجام : لګام = قيضه.

- خرام ( غ ۱۵ ) : د ناز رفتار.

- به ( غ۱٦ ) : ښه، غوره، په زړه پورې.

- شندې( غ ۱۷ ) : ملنډې، ريشخند.

- کاسد ( غ ۱۷ ) : بې رونق، بې رواج.

- پاييدل( غ ۱۸ ) : تر زياتې مودې پورې پايښت او ژوندی کول، ژوندی پاتې کيدل، اوسيدل، مېشتېدل ( تشريحی قاموس).

- ورد ( غ ۲۱ ): ذکر، دعا، د قرآن هغه برخه چې هر ٥ ورځ او هره شپه يې څوک لولي.

- ويرپا( غ ۲۴ ) : وړيا، بې بيې.

- کندی کودری ( غ ۲٦ ) ګندی: دوړيو بياسته ، دوړيوپړی؛ کودری: کودړی، کودی ( تشريحی قاموس).

- لوني ( غ ۲٦ ):شيندي، پاشي،مصدر يې لونل،شيندل، اچول، پاشل دی.

- شرار ( غ ۲٦ ) : د شرجمع، بدکاره، فسادي.

- بـامڼ ( غ ۲۶ ) : بـامبڼ، پنـډت، بـرهمن د هنـدوانو مـذهبي مشـر ( تشریحی قاموس).

- درم : ( غ ۲۶ ) : درهم، دیوې لرغونې یونانی سکې نـوم دی، چـې دیوې ټنګې ارزش یې درلود ( تشریحی قاموس).

- دینار ( غ ۲۶ ): یوه سکه چې په رومیانو، عربـو او عجمـو کـې یـې رواج درلود. په اسلامی شریعت کې دینـار د سـروزرو هغـه مضـروب دی، چـې یومثقال تول ولري ( تشریحی قاموس).

- جاروزه ( غ ۲۷ ) : اصـلي معنـا یـې توبـه کـول، خـو مجـازي یـې: ګرزیدل، ستنبدل ( زړه پانګه).

- اننی معکما ( غ ۲۷ ) : په تحقیق چې زه له تا سوسره یم .

- ورژني ( غ ۲۹ ): مصدر یې و رژل دی چې د قیمه کول، وریتـول او سرځول معناوې ځنی مرادیږي ( ژبپانګه).

- اعراب ( غ ۲۹ ): سم بیان؛ فصیحې خبرې کول او هم دحروفو او کلمو حرکاتو، لکه : پیښ، زور او زیره مداوشد په معنی راځی ( عمید).

- اسلوب ( غ ۳۱ ) : لاره ، روش، طریقه، روش، شیوه ( عمید).

- زیریدل ( غ ۳۱ ): خوابدی ، غمجنیدل، خپه کیدل.

- سالک ( غ ۳۱ ) : پیرو، پارسا، زاهد، د صـوفیانو پـه اصـطلاح هغـه چاته سالک ویل کیږي، چې دپیر او مرشد په لارښـوونه خـدای پـه لارکـې سـیر وکړي،دنفس دپاکی پړاوونه اودسیرو سلوک مراتب یې وهلي او تیرکړي وي ( عمید).

- مجذوب ( ع ۳۱ ) : جذب شوی، عاشق، زړه بایللی ( عمید).

- سوا ( غ ۳۳ ) : زیات، علاوه ( فیروز اللغات)

- ستی ( ۳۶ ) : پاکه ښځه، هغه میرمن چې له خپل مړه میړه سره یو

ځای ځان سیزي؛ د پاربتی لقب ( هندی – اردو لغت).

- آزار( غ ۳۸): رنځ ، مرض ، درد ( عمید).

-بحاث ( غ ۳۹): ډېر بحث کوونکی ؛ کنجکاو ( عمید).

-روح القدس( غ ۴۰)؛ پاکه اروا؛ پاک روح (عمید).

- قلنګ ( غ ۴۱): مالیه ، باج، کلنګ، د ملنګ نذرانه ( تشریحی قاموس).

- داج ( غ ۴۱): تیاره ؛ ډېره تیاره شپه ( عمید).

- د راج ( غ ۴۱) : د زرکې په څېر یو ما رغه دی، چې وزرې یې تور او سپین خالونه لري. غوښه یې خونده وره ده ( عمید).

- زجاج ( غ ۴۱) : ښیښه ( عمید).

- سراج ( غ ۴۱) : څراغ ( عمید).

- راج ( غ ۴۱): ۱- سلطنت، حکومت ۲- اختیار ۳- دربار، شاهی دربار( فیروز اللغات).

- قوج ( غ ۴۲): قیچ، قوچ، جنګي ګډ، یوډول مږ چې کاږه او غښتلي ښکرونه لري.

- حرم( غ ۴۲): د کعبې شریفې دننه؛ د کعبې شریفې چارچاپېر ( عمید).

- دیر ( غ ۴۲): سومعه، هغه ځای چې راهبان عبادت پکې کوي ( عمید).

- عوج ( غ ۴۲): په پخوانیو داستانو کې راغلي دي چې یو لوړ دنګ سړی و، موسی کلیم پرېنډی پرهمساووﷺاو مړ یې کړ، څوک چې لوړقد ولري، له هغه سره یې تشبیه کوي ( عمید)

-بروج( غ ۴۲) : د برج ( میاشت ) جمع ( عمید).

-لجوج ( ج ۴۲): جنګره، لجباز، په عناداو مخالفت کې سرزوری.

- صبیح ( غ ۴۴): ښایسته، پی مخی، د جمال خاوند ( عمید).

-فسیح ( غ ۴۴) : پراخ ، پراخ ځای ( عمید).

- فرسخ ( غ ٤٦) : فرسنګ، عربان درې میلوته یو فرسخ وایي.

-برزخ ( غ ٤٦) : د دوو ځیزونو په منځ کې حایل، د دنیـا او آخـرت ترمنځ عالم؛ له مرګه ترقیامته؛ هغه څه چې دوو مخالفو ځیزونو ترمنځ حایل وي.

- تیزل ( غ ۴۸): پرې سپریدل، په قاموسونو کې د ځغلـول پـه معنـی راغلی دی؛ ( زړه پانګه) محبت خان هم په وروستی معنی استعمال کړی دی..

- اشرار( غ ۵۵) : بدان، بدخلک، بدکاران.

- ابرار ( غ ۵۵ ) : نیکان، نیک خلک.

- ستار ( غ ۵۵) : د عیبونو پوښوونکی، پـرده پـوښ، د الله تعـالی لـه صفاتو څخه یو صفت.

- غفار ( غ ۵۵) : بخښونکی، دلوی‌ښتن له صفاتو څخه یو صفت.

- پاړو ( غ ٥٦): پاړوګر، هغه سړی چې د ما رانو اوده لري.

- عندلیب ( غ ٥٦) : بلبله، بلبل هزارد استان.

- کرخت ( غ ۵۸): بې حسه؛ بې شعوره؛ د بدن غړي چې سست وي.

- ساوڼ ( غ ۵۹) : دهندی ځلرمې میاشتې نوم ( هندی — اردو لغت) د هندوستانی کال ځلورمه میاشت،د برسات میاشت ( فیروز).

- کوثر( غ ٦٢) : په جنت کې دیوه رود نوم.

-عرعر ( غ ٦٢): یوه لوړه اِو تنه وره ونه ده، چې لوړوالی یې تر شـلو مترو پورې رسیږي.

- رندانه (غ ٦٣): بې باکه؛ بې قیده، د متصوفینوله نظره هغـه څـوک چې باطن یې له ظاهره پاک او سپیڅلی وي.

- ټکی ( غ ٦٤):په زړه پانګه کی یې دنخښی منځ دایره، معنی ورکښلې ده.

- سفله( غ ٦۴) : پست، ټيټ، ناکس او پست فطرت.

- بتپر ( غ ٦٩) مرز (زړه پانگه )

-کوډې ( غ ٧٠) : جادو.

- کوږ ( غ ٧٠): انگور.

. - کال کونډي ( غ ٧٠): په زړه پانگه کې د دولت لـوانی ديوبيـت پـه استناد دالغت راغلی دی او معنی يې ورته د ستمبول، کچـه ختکـی کبنـلې ده. خود محبت خان له بيت څخه ښکاری چې کالکونډی ونه لري او ختکی ونـه نـه لري، نو ځکه دابه انگوروته ورته وي او دانې به يې تږخې وی.

- خناس ( غ ٧١): شيطان، بدکاره ، او شيطان صفته سړی.

- شناس ( غ ٧١): = شناز.

- قرطاس ( غ ٧٢): کاغذ.

- څربښت( غ ٧٢): چاغوالی؛ څاربه ، څورب، غټ، غوښن ( وييزيرمه).

- ا ماس ( غ ٧٢) : پړسوب.

-بيت ( غ ٧٢): کور.

- بخره ( غ ٧٣ ): برخه .

- دوال ( غ ٧٣): ديوال، ديوار.

- څړه ( غ ٧٥) : يوازې ، تنها- گوښی ( زړه پانگه ).

- کرگس( غ ٧٦ ) : کجير، يوغټ الوتونکی مرغه دی، قوی منبو که لري اوغښتلي منگولې لري ( تشريحی قاموس).

- فريدون( غ ٧٧): د پيشداديانو د سلسلې يو پاچا و . ( فرهنگ معين).

- کيکاووس( غ ٧٧): د کيانيانو د سلسلې دويم پاچاو ( فرهنگ معين).

-فلوس ( غ ٧٧): فلس : توري پيسې، وړې پيسې، فلزی سکه.

- پېرل، پېري( غ ۷۷): = پيرودل = اخيستل .

- چشم خروس( غ ۷۷): کنايه ده سروشرابو ته چې د خُراسانو په رنګ وي.

- عبوس ( غ ۷۷): ډېر تريووچولی؛ دو چولي ګونځې.

- قمطرير( غ ۷۷): شديد، سخت، ګران.

- معاد( غ ۷۸) : بېرته ګرځېدل؛ بازګشت؛ د بيرته ګرځېد وځای، د آخرت عالم.

معاش ( غ ۷۸): ژوند؛ ژوندکول، د ژوند کولو وسيله.

قلاش ( غ ۷۸): وور، تيت.

مهوش( غ ۷۹): ښايسته، ښکلی، لکه سپوږمی.

- رصاص ( غ ۸۰) : سرب ، قلعي.

- غواص ( غ ۸۰): او باز؛ هغه څوک چې د صدف او مرغلرو د را ايستو لپاره تر اوبو لاندې ځي.

- استخلاص ( غ ۸۰): خوشی کول ،آزادول، خلاصول.

- مرتاض( غ ۸۲): رياضت کښ، هغه څوک چې د نفس د صفايي لپاره رياضت کوي

- اغماض(غ ۸۲) ، سترګی پټول.

- انبساط ( غ ۸۲) : پلنيدل، خلاصيدل.

- انقباض ( غ ۸۲) : نيولی ، نيولی شوی، نيول.

- سواد ( غ ۸۲): توروالی د سپينوالی ضد، په عام ډول د ليک لوست توان درلودل.

- بياض ( غ ۸۲): سپينوالی، سپين، په عام ډول دفتر ته هم ويل کيږي.

- بِساط( غ۸۲): د او ارو لو هر څیز، لکه فرش، دسترخوان او پراخې زمکې ته هم وایه شي.
- مستحسن( غ ۸۲): نیک، د منلوور.
- اخلاط ( غ ۸۲): سره نغښتی، یوځای شوی. ګډ وډشوی؛ پخوانو: وینې، بلغم، صفرا او سوداته اخلاط اربعه ویلی.
- محظوظ ( غ ۸۵): خوشبخت، بهره مند.
- صهبا( غ ۸۵): سره اوسپین، سره اوسپین سره ګډ؛ خمر، انګوري شراب چې سره والی ته مایل وي.
- استانه ( غ ۸۷) : درګاه ، مجازی معنی یې دربار او بارګاه ده.
- خشوع( غ ۸۸): فرمانبرداری کول، له خوارۍ او زارۍ چاته داطاعت سر ټیټول.
- خضوع( غ ۸۸): تواضع کول، تواضع.
- متبوع( غ ۸۸) : پیروي شوی.
- ایاغ( غ ۸۹): جام، له ترکی څخه اخیستل شوی دی.
- کلاغ( غ ۸۹): کارغه، کوړاغ.
- اُلاغ ( غ ۸۹): خر، له ترکي څخه اخیستل شوی دی.
- ګزاف ( غ ۹۰): ډېر، بې شمېره، بې حده.
- چنه( غ۹۰) سپر.
- وضیع ( غ ۹۱): پست، ټیټ.
- ربیع ( غ ۹۱): پسرلی، د پسرلي موسم .
- خریف( غ ۹۱): منی، د مني فصل.
- تالیف ( غ ۹۱): په الفت کې سره را وستنه، د دووڅیزونو ټو لول او

سره یوځای کول ( تشریحی قاموس).

- اِشراق: غ ۹۲): ځلیدل، روښانیدل، د لمر راختل.
- پاسي ( غ ۹۲): په هندي کې د : په دارخیژول ( پهانسی) او نورې معناوې هم لري.
- انا ( غ ۹۲): زه ( عربی).
- میثاق ( غ ۹۲): عهد، پیمان.
- فایق( غ ۹۳): ډېرښه، وچت، اعلی، لوړتیا لرونکی ( ظفر).
- سارق ( غ ۸۳): غل.
- منجنیق ( غ ۹۵): یوه آله ده، چې پخوا به یې په جنګونو کې د اور اویاکاڼو د غوځارولو لپاره کاروله.
- دقیق ( غ ۹۵): ګران، سخت، پیچلی، باریکه نکته.
- لولاک ( غ ۹۶) که چیرې ته نه وای.
- فتراک ( غ ۹۶): هغه تسمه چې د آس د زین شاته یې ځړوي او څه پرې پورې تړي.
- ژواک ( غ ۹۶): ژوند ، ژوندون. ( وییزیرمه).
- فرحناک( غ ۹۶): ښاد، خوشحال ( عمید).
- نرناحقه ( غ ۹۸): ناحق ، پرناحقه ( ژبپانګه).
- څخو ( غ ۱۱۱) لږ اندازه، لږ څه ( زړه پانګه).
- حد ( غ ۱۱۱) : د مجرم او ګناهکار شرعي مجازاتول، لکه د شرابخور په شلاخو وهل.
- هذب ( غ ۱۱۸): شکنجه شوی، په رنځ و عذاب کې.
- ذابح ( غ ۱۲۳): حلالوونکی، ستونی غوڅوونکی.

- دواب ( غ ۱۲۳ ): ځلوربولي، باروړونکي حيوانات ( عميد).
- پريوش ( غ ۱۲٦ ) دپري په څېر، لکه پري، پري مخی، پري پيکره.
- سلاسل ( غ ۱۲۹ ): زنځيرونه، سلسلې.
- بوټ ( غ ۱۲۹ ): په زور را ايستل شوی ( وييزيرمه).
- ويسا : محبت خان ورته آخرته (ه) ورکړې ده، د ډاډ او باورمعنی لري.
- اِکسير ( غ ۱۳۷ ): د کيميا ګروپه اصطلاح هغه جوهر چې د جسم ماهيت تغييروي؛ په مجازي معنی هر ګټه ور څيزته اِکسير وايی؛ د متصوفينو په اصطلاح د کامل پيرنظر چې د شخص ماهيت تغيير وي.
- چوګان ( غ ۱۴۱ ): هغه لرګی چې توپ پرې وهی، لاستی يې سم او نری وي او سريې پلن او کوږ وي.
- سمور ( غ ۱۴۲ ): د ګيدړې په څير غوښه خوړونکی حيوان دی، پوستکی يې پوست، توروالی ته مايل سوروي؛ له پوستکي يې د دستکشو او نورو ژمنيو کاليو د استر لپاره کار اخلي.
- سنجاب ( غ ۱۴۲ ) : له پيشوورکی تي لرونکی حيوان دی؛ پوستکی يې ګڼ پاسته شينوالي ته متمايل ويښتان لري؛ له پوستکي بې د ژمنيو کاليو د استر لپاره کار اخلي.
- خاتم ( غ ۱۴۳ ): ګوتمۍ، د ګوتمۍ غمی.
- غُراب ( غ ۱۴۸ ): کارګه = کارغه، کوړاغ.
- هپه ( غ ۱۵۰ ): په غلوپسې په چيغه وتل ( وييزيرمه).
- ايذا ( غ ۱۵۹ ): اذيتول، آزار رسول.
- پيرزال ( غ ۱۵۹ ): زوړ، زياتره د زړو ښځو لپاره راځي.
- آشوب ( غ ۱٦۴ ): فتنه ، شوروغوغا.

- لخت جگر ( غ ۱٦۴ ): دځيګر ټوټه.
- هپه ( غ ۱٦٦ ): زړه پانګه کې يې ( هپه ) ته کښلي دي: هغه ډله چې په غلو پسې وتلې وي، خو د محبت خان په غزل کې هپه دا معنی نه لري؛ په ظفر اللغات کې يې هپه د کوښښ په معنی اخيستی دی.
- جپه ( غ ۱٦٦ ): ذکر، وظيفه تسبيح ويل، ورد( هندی- اردو لغت).
- پشکال ( غ ۱٦٦ ): برشکال د باران موسم .
- برسات ( غ ۱٦۹ ):دباران موسم ( فيروز) برشارت: د اساړه له ۱۵ مې د بهادون د مياشتی تر ۱۵ مې ( هندی-اردو لغت).
- صهبا( غ ۱٦۹ ): سره او سپين سره ګډشوي، انګوري شراب چې سره والي ته متمايل وي.
- مـاوت ( غ ۱۷۰ ): دهنـد د نيمـې وچـې ديـوې فوکلـوري کيسـې ( پدماوت) يو قهرمان .
- الست ( غ ۱۷۳ ): آيانه يم، دازل ورځ ، هغه زمان چې ابتدا نه لري.
- صفدر( غ ۱۷۹ ): د جنګ په ورځ د دښمن د صف برهموونکی، صف ماتوونکی، زړه ور، جګړن.
- دارالسلام ( غ ۱۸۰ ): د سلامتی سرای، جنـت، د بغـداد او دمشـق.د ښارونو لقب.
- طلعت ( غ ۱۸۱ ): رويت ، ديدار.
- هټ ( غ ۱۸۵ ): د کان .
- بې وټ ( غ ۱۸۵ ): بې غشه.
- زمچ ( غ ۱۸٦ )زمج : يو ښکاري الوتکی دی چې له بـازه کـوچنی وي او رنګ يې سور والي ته متمايل وي، ښايي ترمتی سرې زمج وبولی.

- سهېدل ( غ ۱۹۰ ): تشعشع کول، ورانګې خپرېدل؛ خپرېدل ( ژبپانګه ).
- عسس ( غ ۱۹۷ ): ساتونکی، ګزمه، د شپې ګرزېدونکی.
- پارسا ( غ ۲۰۱ ): پرهيزګار، زاهد، پاک لمنی.
- رعنا ( غ ۲۰۱ ): خودبينه، ځان جوړونکې ښځه، نادانه او سسته ښځه.
- کنډ ( غ ۲۰۲ ): د محبت په دې غزل کې ( کنډ ) د( قند) خوږو په معنی راغلی دی.
- پنډ ( غ ۲۰۲ ): راټول ، راجمع، راغونډ.
- ارهنډه( غ ۲۰۲ ): ديوې ونې نوم دی، چې په تودو سيموکې پيداکيږي ( تشريحی قاموس ).
- څنډ( غ ۲۰۲ ): محبت خان په خپل غزل کې ( سنډ = سو نډ ) د څنډ په ليکدود راوړی دی، سونډ زنجبيل ته وايه شی او هم سونډ يونبات دی چې لښتې يې تر دوومترو پورې اوږ ديږي. د افغانستان په شرقی سيمو کې دالښتې د ميزان په مياشت کې ريبي او بيا ددې لښتو ګيډۍ د اوبو په ډنډونو کې ښخوي؛ تر څو ورځو وروسته د سونډ له لښتو تارونه راباسي او رسۍ ترې جوړوي .
- فندق ( غ ۲۰۵ ): د بيرې په شان يوه سره ميوه او هم د ګوتوسرونه چې په نکريزو سره وي ( ظفر ).
- سروپای ( غ ۲۰۵ ): خلعت ( زړه پانګه )؛ خلعت: ګنډل شوې جامه چې ديوستر شخص له خوا چاته انعام ورکول کيږي ( عميد ).
- قلاش ( ۲۰۹ ): تيټ، پست.
- علم ( غ ۲۱۰ ): رايت، پرچم، بيرغ، نښان، نښانه.

- ترو ( غ ۲۱۱ ): نو ( زړه پانگه).
- رجال اللغيب ( غ ۲۱۲ ): ابدال، صالح خلک.
- ناکرده کار ( غ ۲۱۳ ): د محبت خان په بيت کې د نوکار او نابلد معنی ورکوي.
- خلاملا ( غ ۲۱۴ ): صاف، بی ريا، ربنتونی. ( تشريحی قاموس).
- پاړه ( غ ۲۱٦ ): تشريحی قاموس چې دغه لغت ته کومې معناوې کښلې دي يوه پکی ( لويه غلطی) ده، امکان دې ولري چې د محبت په دې غزل کې راغلي ( پاړه) دغه معنی وښندي.
- خراړه( غ ۲۱٦ ): خړرنگې مرغی، سپيره مرغی، سا رايي مرغی.
- هول ( غ ۲۱٦ ): خوف ، ويره، ډار، بيم.
- مښگيرک ( غ ۲۱۸ ): يوښکاري مرغه دی چې مږکان اوخزنده ښکار کوي، مرکبه کلمه ده: ( مږ + گيرک) ( زړه پانگه).
- شهباز ( غ ۲۱۸ ): ستر سپين باز، دبازيوډول، چې د قوي مښوکې او پياوړ و پنجالو لرونکیوي، پرونه يې زيړ خرمايي يا سپين وي، دالوتونکو د ښکار لپاره روزل کيږي ( عميد).
- نوخيزه( غ ۲۱۹ ): تازه راوتلې، نوې ځوانه؛ تازه نيالگی ( عميد).
- سالوس ( غ ۲۲۳ ): مکار، هيله گر، رياکار، غولوونکی ( عميد).
- ناقوس ( غ ۲۲۳ ): ډيرسترزنګ، چې معمولاً په کليسا وو کې وي ( عميد).
- لخت دل ( غ ۲۲۴ ): د زړه ټوټه.
- قد عرعر ( غ ۲۲۵ ): عرعر يوه ښايسته او تناوره ونه ده؛ لوړوالی يې ۲۰ مترو ته رسيږي ( عميد) قد عرعر د عرعر هسې د لوی قامت لرونکی.

- اوفوبالعهد ( غ ۲۲۸): په وعدې وفا کول.
- دلق ( غ ۲۲۹): خرقه ، پوستین، د د رویشی جامه.
- ساهو ( غ ۲۳۸): آزاد، نره، سوچه، بادار ( وییزېرمه).
- قسط ( غ ۲۴۰): ۱- برخه ، حصه ۲- محصول ۳- انصاف ۴- د قرض په ډول څه ورکول ( ظفر ).
- سخط ( غ ۲۴۰) : پرچا خښمېدل.
- نمط ( غ ۲۴۰): طریقه، روش ، رویه.
- شط ( غ ۲۴۰) : د رود کرانه، لوی رود چې بحرته ورتوییږي.
- مضغه غ ۲۴۱ دغوښې ټوټه، څه شی چی په خوله کې ژوول کیږي.
- څپیاکه ( غ ۲۴۴): (۱) تپی،(۲) دو مبکی ( تشریحی قاموس).
- متیاکه ( غ ۲۴۴): کلک ، بی ثمره، بی حاصله ( زړه پانګه).
- سکه ( غ ۲۴۵): ۱- نو، څکه، ګویا، لکه چې ( زړه پانګه) ۲- زیاته تنده( زړه پانګه).
- موزي ( ۲۴٦): ناراسته، لټ ( ظفر اللغات).
- څورب ( غ ۲۴٦): چاغ، مزی، غټ ( تشریحی قاموس).
- ابلق ( غ ۲۴٦): هر دوه رنګه څیز، په ځانګړی ډول تور او سپین ؛ هغه اسپ چې په بدن کې یې سپین ټکي وي.

- ځګ ( غ ۲۴٦ ): کپ ، کف، سپین پوک شی چې کله کله د اوبو د پاسه لیدل کیږي، یا په خاصو مواردو کې دانسان او حیوان تر خولې راوزي ( تشریحی قاموس).

- تأمل ( غ ۲۴۹ ): فکر کول، درنګ کول، دقت کول ( عمید).

- طهور ( غ ۲۴۹ ): پاکول، هغه څه چې دپاکی سبب کیږي.

- هیږه (غ ۲۵۰ ): کرته، ځله ( زړه پانګه).

- نحن اقرب الیه (غ ۲۵۱ ) : تاسوته نزدې یو.

- نص ( غ ۲۵۲ ): معتبر کلام، صریح او څرګند کلام چې یوازې یوه معنی ځنی استنباط شي ( عمید).

- ځبله ( غ ۲٦۵ ): یوتربله، په خپل منځ کې ( زړه پانګه ).

- شناس = شناز ( غ ۲٦٦ )؛

- نغرل ( غ ۲٦۹ ): په سرابښ خوړل، زعمل ،د غصی زعمل.

- قالوبلی ( غ ۲۷۱ ): وې ویل بلی. د آدم (ع) سورة ته اشاره.

- ستوه ( غ ۲۷۲ ): ستړی، خسته، نیولی، تنګ شوی ( عمید).

- کرخت ( غ ۲۷۸ ): بی حسه، بی شعوره ( عمید).

- ترمې ترمې ( غ ۲۹۲): خورروور، دانه وانه ( وییزیرمه).

- برقع ( غ ۲۹۳): روبند، نقاب، هغه تکه چې ښځې پرې خپل مخ پټوي ( چادري).

- بصل ( غ ۳۰۰): پیاز ( عمید).

- ریب ( غ ۳۰۴): شک، گمان، تهمت ( عمید).

- عبیر ( غ ۳۰۴): خوشبویه دارو، له مښکو، کافور مخلوط جوړشوي دارو ( عمید).

- پوتي ( غ ۳۰۸): لمسي ( فیروز اللغات).

- تنبل ( غ ۳۰۴): تمبل ، دریه، داریا، چمبه، دریاګی ( پښتو تشریحی قاموس).

- رصاص ( غ ۳۱۶): قلعي، سرپ ( عمید).

- ټکلی ( غ ۳۱۹): ټېرایستل، ټګی کول، کرکه کنول ( وییزیرمه).

- کوثر ( غ ۳۳۲): هرډېرشی، ستر او خیررسوونکی سړی او په جنت کې دیو شهرنوم.

- سپیازې ( غ ۳۲۵): بې خایه ( تشریحی قاموس).

- ځړه ( غ ۳۲۷): یوازې، گوښی، ځانله ( وییزیرمه).

- دولاب ( غ ۳۲۷): د څاه څرخ، هره هغه آله چې پريو محور وڅرخي ( عميد).

- چور ( غ ۳۳۱): غل، ناسور، پوښلی سوری، هغه سپینوالی چې د نکریزوله ایښوولو وروسته پاتې شی ( فیروز).

- سخ ( غ ۳۳۲): خوښي ، خوشحالي، نیکمرغي ، بخت ( وییزیرمه).

- پهر( غ ۳۳۲): د (پ) په زور، دشپې ورځې اتمه برخه ؛ د (پ) په زیر ترډې وروسته( فیروز).

- بوټ( غ ۳۳٦): په زور راایستل شوی ( وییزیرمه).

- فرهنګ ( غ ۳۳۴): علم، پوهه، ښوونه او روزنه، دیوقوم یا ملت علمی او ادبی آثار ( عمید).

- دیر ( غ ۳۳٦): صومعه، هغه ځای چې راهبان پکښې اوسي او په عبادت اخته وي ( عمید).

- رفو ( غ ۲۴۱): دیوې شلیدلې یا سورې شوې جامې یا ټوټې داسې سره ګنډل، چې په آسانی سرې پرې پوهیدلی نشي.

- وحدت( غ ۲۴۱): یګانه ګی، د کثرت ضد، عرفانی اصطلاح ده چې د عرفاوو په فرهنګ کې خپله معنی لری، محبت خان هم دغه اصطلاح په عرفانی معنی راوړی ده.

- کثرت ( غ ۲۴۱ ): ډیروالی، ډیریدل، کثرت هم په عرفان کې خپله معنی لری او محبت خان دغه اصطلاح هم په عرفانی معنی استعمال کړې ده .

- پشو نګړی ( غ ۲۴۳ ): پشنګوړی، د پشي بچی .

- ستانه ( غ ۳۴۳ ): روحانی، بزرګ، د روحانی کورنی غړی ( تشریحی قاموس ).

- قعر ( غ ۳۴۴ ): تل.

- شکر خند ( غ ۳۴۷ ): خوږه خندا، مسیدل، د شونډو لاندې خندا ( عمید ).

- سهل ( غ ۳۵۹ ): زغم لرل، تحمل کول ( زړه پانګه ).

- ترهیدل ( غ ۳۵۹ ): ببریدل، ویریدل، ډاریدل، و ار خطاکیدل.

- ختول ( غ ۳٦۱ ): له ختو سره ګډ، خیرن، ناپاک ( ژبپانګه ).

- زمول( غ ۳٦۱ ): مړاوی، کمزوری ( زړه پانګه ).

- فلوس ( غ ۳۷۰ ): د فلس جمع ده او د فلس معنا یې کبنلی ده پشیز؛ توري ایکی، فلزي سکه چې زیاتره په عراق کې رایجه ده.

- مورچي ( غ ۳۷۴ ): مورچه، مورچل، سنګر ( ژبپانګه ).

- خدنګ ( غ۳۷۴ ): یوه ونه ده چې کلک لرګی لري او له دې لرګي څخه نیزه، غشی او د آس زین جوړوي( عمید ).

- وشتې ( غ ۳۷۵ ) ټوکې، مسخرې ( زړه پانګه )

- هدهد ( غ ۳۴۷ ): د سلیمان مرغه، خاکي رنګه الوتونکی دی، چې زیږ، تور او سپین خالونه لري؛ له کوترې وړوکی دی ( عمید ).

- قرقره ( غ ۳۷۷ ): څوڼدی ، طره، جیغه ، تاج او هم یو ډول زانه.

- سوره ( غ ۳۸۰ ): د سلارونه: وايي چې په اووم آسمان یا جنت کې د عرش ښي څواته یوه ونه ده.

- هورته ( غ ۳۸۰ ): هلته، هله، آخوا، زیات ( ژبپانګه ).

- شمشاد ( غ ۳۸۲ ): یوه ونه ده چې ګردې وړې پاڼې لري او تل شنه وي، لرګې يې ډېر کلک وي چې د ظریفو لرګینو څیزونو په جوړولو کې ترې کار اخیستل کیږي.

- صنوبر ( غ ۳۸۲ ): دناجوله کورنی څخه یوه ونه ده، چې تل شنه وي؛ زینتي ونه ده؛ لوړوالی يې تر ۳۰ متروپورې رسیږي.

- ګردون ( غ ۳۸۳ ): څرخ، آسمان ته هم ویل کیږي ( عمید ).

- **جاروتل** ( ۳۸٦): **توبه کول ، جارایستل، ستنبدل** ( زړه پانګه).

- **نتل** ( غ ۳۸۷)؛ مهارول، ایلول، زبونول ( زړه پانګه).

- **ځبله** ( ۴۱۲): **یوتربله، په خپلو کې، په خپل منځ کې** ( زړه پانګه).

- **هلاهل** ( غ ۴۱۳): **افسانه یی او موهوم حیوان دی چې وژونکی** زهرلری او د انسان وجودته په رسیدو سره سړی مري او یوډول زهري بوټی هم دی چې له ریښې څخه یې د ړدن دانی په اندازه وخوړل شی سړی وژني.

- **کُوَر** ( غ ۴۱۴): **انګور**.

- **خربشوی** ( ۴۱٦): خنزیر، سوډر، سپک، بې آبه .

- **عندلیب** ( غ ۴۱٦):**بلبل هزار د استان**.

- **ذلل** ( ۴۱۷): ضرر، تاوان، تاوان، نقصان.

**ام الخبایث** ( ۴۲۰): **د مر دار یو اوپلید یومور.**

**یادونه: ډیروورسته راته ښکاره شوه، چې ځولغتونه تکرار راغلي دي.**

# Pashto Poetical works of Nawab Muhabat Khan of Lucknow

Compiled
By
Zalmay Hewadmal



Published
By
Academy of Sciences of Afghanistan

Education press
2005